# ګلدسته

د

## عبدالقادر خان خټک

(د ګلستان پښتو ژباړه)

دافغانستان دعلومو اکاډمي
دپښتو څیړنو نړیوال مرکز

د محقق سید محی الدین هاشمي په زیار

دعبدالقادرخان ختټك دګلدستې ددرېي سومې کالیزې
دنمانځنې دعلمې څېړنيز سيمينار په وياړ

# ګلدسته

# د
# عبدالقادر خان ختټك

## دسعدي (رح) دګلستان پښتو ژباړه



دافغانستان دعلومو اکاډمي
دپښتو څېړنو نړيوال مرکز
دتاليف او ترجمې څانګه

دمحقق سيدمحى الدين هاشمي په زيار

# دکتاب پېژندنه :


| | |
|---|---|
| دکتاب نوم: | ګلدسته ( دګلستان پښتو ژباړه ) |
| ژباړن : | عبدالقادرخان ختټك |
| مهتمم: | محقق سید محی الدین هاشمي |
| خپرونکی: | دافغانستان دعلومو اکاډمي دخپرونو ریاست دپښتو څېړنو نړیوال مرکز |
| کمپوز او ډیزاین: | عبداللطیف " احمدي" |
| دچاپ نوبت: | څلورم |
| دچاپ کال: | ۱۳۸۳ لمریز هجري |
| دچاپ شمېر: | ( ۱۰۰۰ ) |
| دچاپ ځای: | آزادی مطبعه، کابل- افغانستان |

# لړ لیك

سرلیك | مخونه


| | | |
|---|---|---|
| پیشگفتار | معاون سرمحقق عبدالباری راشد | الف_ج |
| سریزه | سرمحقق نعمت الله اندړ | د-ح |

دعبدالقادرخان ختك ژوند ... محقق سیدمحی‌الدین هاشمي
لومړی- څلورڅلویښتم

| | | |
|---|---|---|
| مقدمه: | ډاکترعظیم شاه خیال بخاري | ۱-۶۲ |
| دګلدستې متن | | ۶۳-۴۱۲ |
| دیباچه | | ۶۳ |
| اول باب: | په بیان د خوی‌خصلت دبادشاهانو | ۸۸-۱۵۸ |
| دویم باب: | په بیان د خوی‌خصلت ددرویشانو | ۱۵۹-۲۱۶ |
| دریم باب: | په بیان دقناعت | ۲۱۷-۲۵۸ |
| څلورم باب: | په بیان دخاموشۍ | ۲۵۹-۲۶۹ |
| پنځم باب: | په بیان دعشق او ځوانۍ | ۲۷۰-۳۱۰ |
| شپږم باب: | په بیان دضعف د پیرۍ | ۳۱۱-۳۲۱ |
| اووم باب: | په بیان دتاثیر دتربیت | ۳۲۲-۳۵۸ |
| اتم باب: | په بیان دادبونو دصحبت | ۳۵۹-۴۱۲ |

بِسۡمِ اللهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

# پیشگفتار

## داکتاب چې ګلدسته دګلستان دی
## ګل چیني کا عبدالقادر ختك

مرحوم عبدالقادر ختك شاعر پارسا و عاشق راه خدا(ج) و معنویت که میسراید:

لکه زه په یار مفتون یم بل به نه وي مفتون هسې
لکه زه پسې محزون یم بل به نه وی محزون هسې

او ابر مردیست متفکر که درنظام هستی، عالیترین ارج را به امر تفکر که اساس همهٔ آگاهیها، شناخت ها، اختراعات، اکتشافات و ابتکارات عجیب و غریب بشریست میدهد، وبرای شناختن هرچه دقیقتر هستیو خالق هستی همیشه سر بجیب تفکر است.

او عینک زانوی خودرا که متکای درب ورودی دستگاه تفکر است، جام جهان نمای خویش میخواند و درست میگوید:

آ ئینه د خپل زنګون وماته جام جهان نما شوه
ځکه سر لرم تل اینبی دفکرت په زنګون هسې

آری! گلدسته، گلچین گلستان سعدی رحمة الله علیه، شاهکاریست_ ادبی، علمیو عرفانی، بقلم توانای عبدالقادر ختك فرزند شاعرنامدار زبان سوچهٔ پښتو خوشحال خان (ختك) رحمة الله علیهما که از زبان فصیح و شیرین فارسی با حفظ حلاوت و امانتداری بزبان ناب پښتو، سه صدسال قبل برگردانیده شده.

این اثر یکی از گرانبها ترین آثار ارجدار زبان پښتو است که درهشت باب بخشی از فرهنگ و تعالیم اسلامی را از گلستان فیضبار سعدی(رح) درکمال فصاحت و بلاغت و حفظ امانت در ترجمه

، بیرون آورده و بدسترس استفاده و استفاضه و لذت گیری ادبا و گویندگان ملیونی زبان کهن پشتو، قرار داده است.
باب ها که عبارت اند از بیان :
- خوی وخصلت شاهان
- خوی درویشان
- فضیلت قناعت
- خاموشی
- عشق وجوانی
- پیری و زهیری
- نقش تربیت

وآدب صحبت وحکمت ها، هر یک حاوی پند ها و اندرز های جاویدانه ای اند، که عمل به هر کدام، ضامن نجات ورستگاری انسان است.

از مقایسه متون گلستان سعدی(رح) وگلدسته قشنگ آن که بدست گلچین مرحوم عبدالقادر خان ختټ انتخاب و ترجمه گردیده، به وضوح برمیآید که ؛ عبدالقادر خان ختټ (رح) شاعربزرگ پښتو زبان چه تسلطی برزبان شیوای فارسی وچه سیطره ای برفرهنگ عظمای اسلامی داشته و توانسته است، گلهای خاص و بینظیر گلستان رابا رنگ وبو و ساختار های زیبای ادبی، شعری و صوری و معنوی آن، برای برادران و خواهران پښتون هنرمندانه بسته بندی کند و ملیونها انسان تشنه بحقایق و معارف الهی را از آن سیراب سازد.

بطور نمونه نخستین جملهٔ گلستان سعدی را با ترجمهٔ آن ذکر میکنیم:
(( منت خدای را عزوجل که طاعتش موجب قربت است ، و بشکر اندرش مزید نعمت ، هر نفسی که فرو میرود ، ممد حیات

است ، وچون بر میآید مفرح ذات، پس در هر نفس دونعمت موجود است وبر هر نعمت شکری واجب...))

(( ثناصفت خدای لره جل جلا له عم نواله ،چې طاعت يې موجب د قربت دی، او شکر يې په نعمت سبب د زیاتیدو د نعمت ، هره ساه چې کښته شي، مدد دژوندون ده ، چې را پورته شي خوښي د وجود ، پس په هر نفس کښې دوه نعمته دي موجود ، په هر نعمت شکر لازم ...))

دیده میشودکه ترجمه با عین سبک وحتی عین طنین و آهنگ کلمات و جملات وبارعایت کار برد حد اقل عبارات نگارش یافته که در متن گلستان بکار رفته است واین شیوه از نادرات و شهکارهای فن ترجمه بشمار میرودو بدون تردید نشانگر سلطه و حاکمیت عالی مترجم برهر دو زبان وفرهنگ ملت های منسوب مترجم و مؤلف است.

باتوجه به ارزش علمی ادبی این گنجینهٔ معرفت بزبان بزرگ پښتو و نیاز مبرم نسل نو به معنویت وآگاهی های عرفانی، خدا(ج) را سپاسگزارم که اکادمی علوم افغانستان توفیق یافت تا به تجدید چاپ آن اقدام کند.

آرزو مندم انتشار این اثر گهر بار وسیله باشد برای هدایت افکار عامهٔ مسلمانان منطقه.

بااحترم

**معاون سرمحقق عبدالباری " راشد"**
**رئیس اکادمی علوم افغانستان**

# سریزه

دپارسي ژبې او ادب پياوړی ليکوال او شاعر سعدي شيرازي (رح) ( ۵۸۱ - ۶۹۱ يا ۶۹۴ ه ق ) چي له کوم لوړ نوم ، شهرت او عا م ټولنيز مقبوليت نه برخمن دی ، ښايي چې د تاريخ په اوږدو کې په نړيواله کچه د ډيرو لږو ګوتو په شمير شخصيتونو دغه ويا ړ په برخه شوی وي.

د سعدي (رح) د لوړ نوم او شهرت بنسټيز لامل هغه شهکار آثار دي چې د خپلو لوړو علمي ، اخلاقي او ادبي ارزښتونو له مخې يې د خلکو فکرونو او زړونو ته لار کړې او دده نوم يې تلپاتې ګرځولی دی.

دنوموړي په منظومو او منثورو آثارو کې تر ټولو مشهور اثر ګلستان ( ۶۵۶ هجري قمري تأليف) دی چې پر اخلاقي ، تعليمي او نورو عامو ټولنيزو معنوي ارزښتونو او ښيګڼو بر سيره د ژبني فصاحت او بلاغت ډيره غوره بيلګه ده .

داثرله پيړيو پيړيو را هيسې د سيمې په هيوادونو ، په ځانګړې توګه ايران ، افغانستان ، تاجکستان، ازبکستان ، پاکستان، هندوستان او نورو کې په کورونو ، جوماتونو ،

مدرسو ، ښوونځيو او پوهنځيو کې لوستل کيږي او خلک يې له لوستلو پند او خوند اخلي.

ګلستان د سيمې دهيوادونو له ژبو برسيره د نړۍ په لويو او پرمختلليو ژبو هم ژباړل شوی دی، چې داسلامي دايرة المعارف، دليکنې له مخې يې دفرانسوي ژبې ژباړه په پاريس کې دAndrcdu Ryer له خوا په ۱۶۳۴ م کال، په لاتيني ژبې په امستردام کې د Gentius له خواپه ۱۶۵۱ م کال ، په الماني ژبې د Olearius له خوا په هامبورګ کې په ۱۶۵۴ م کال، او په ۱۷۷۴ م کال په انګليسي ژبې د Sullivan له خوا ژباړل شوی دی.

د سيمې دهيوادونو په ژوند يو ژبو کې يوه هم پښتو ده چې پکې د يوې علمي ، ښوونيزې او روزنيزې اړتيا له مخې په بيلا بيلو وختونو کې د بيلا بيلو ليکوالو له خوا ددغه علمي ، تعليمي، اخلاقي ادبي اثر ژباړې شوي دي.

د ترلا سه شويو معلومو اسنادو له مخې په دې لړ کې ترټولو ړومبۍ او غوره ژباړه د پښتو ژبې د پياوړي شاعر ، ليکوال او عارف شخصيت عبدالقادر خان ختټک ( ۱۰۶۳- ۱۱۲۵ هـ ق) ده . نوموړی په ۱۱۲۴ هـ ق کال د سعديؒ له دغه ګلبڼ څخه ډير خوشبويه ګلونه را ټول کړي او خپلو پښتنو ته يې ترې يوه ښکلې او رنګينه " ګلدسته " جوړه کړې ده.

عبدالقادر خان ختک چې د ګلستان ژباړې ته "ګلدسته" نوم ورکړی ، په سریزه کې ددغه اثر د ژباړې د اړتیا او اهمیت په اړه لیکي:

" بعضې دوستانو راغخه ګلستان کتاب لوست ، ډیر به یې راته ویل چې د عربي د فارسي کتابونه ډیر دي، اما په پښتو ژبه کې کتابونه د پښتو نشته . ستا قوت د تصنیف د ترجمې البته شته ، که تصدیعه په ځان قبوله کړې، ګلستان کتاب چې مطبوع او مرغوب دخاصو عامو دی، هم یې لوی سړي ګوري نصیحت ترې اخلي، هم یې هلکان لولي برکت ترې اخلي، اساني ډیره وشي. اکثر خلق یې متن ولولي، دویم ځل یې معنا ، که په پښتو ژبه ترجمه شي، پښتنو ته به آسان شي، فایده به یې لویو، هلکو ته ورسي. زما هم بل شغل در پیش نه و، فارغ ناست وم . په شهر رجب کې شروع شه،په رمضان کې په کوتاه عبارت په طریق اختصار په اتمام ورسیده. "

( د پېښور چاپ د ګلدستې سریزه . ۷۳-۷۴ مخونه )

عبدالقادر خان ختکؒ د سعديؒ د شاهکار اثر " ګلستان " ژباړه له ټولو لفظي ، معنوي، ادبي ظرافتونو او نزاکتونو سره په ډیره خوږه ، روانه ادبي رنګینه ژبه په داسې شاهکارانه انداز کې کړې چې د نوموړي د لوړ علمي او ادبي استعداد ډیره ښه پیژندويي او ځرګندويي ورڅخه کیدای شي.

دعبدالقادر خان ختټك دغه ژباړلی شاهکار اثر، چې دمخه د پيښور د پښتو اکيډيمۍ له خوا په بيلا بيلو کلونو کې درې ځله چاپ او خپور شوی دی او اوس يې چاپي نسخې ډيرې نه موندل کيږي، دافغانستان دعلومو اکاډمۍ د پښتو څيړنو نړيوال مرکز ددې تکل وکړ چې ددغه مرکز له خوا د جوړ شوي د عبدالقادر خان ختټك د ګلدستې ددرې سومې کاليزي د علمي ـ څيړنيز سيمينار په وياړ د پيښور د پښتو اکيډيمۍ د چاپي نسخې له مخې بيا چاپ او خپور کړي. نو له همدې امله يې د مرکز علمي غړي محقق سيدمحی الدين هاشمي ته دنده ورکړه چې ګلدستې د چاپي نسخې ليکدود له پيښور ي پښتو ليکدود څخه دافغانستان په معياري پښتو ليکدود را واړوي او نور دې هغه ديو علمي امانت په توګه کټ مټ چاپ ته چمتو کړي. دا چار د نوموړي په زيار او اهتمام ترسره شوه او دادی د ګلدستې چاپي نسخه تا سو درنو لوستونکو ته دروررسيده .

دافغانستان دعلوماکاډمي د پښتو څيړنو نړيوال مرکز په داسې حال کې چې په لومړي ځل له قلمي نسخو څخه داروانشاد خيال بخاري په مقابله ، تصحيح ، سريزه او زيار د پيښور پښتو اکيډيمۍ له خوا د ګلدستې چاپ او خپراوي کار ته په درنه سترګه ګوري، د يو علمي اکاډميك امانت په توګه د علم پوهې او ادب مينه والو د استفادې له پاره ګلدسته د څلورم ځل له پاره يوازې د ليکدود په بدلون او دعبدالقادر خان ختټك د هر اړخيزې پيژندګلوۍ په زياتولو

سره خپروي. په هیواد ، سیمه او نړۍ کې د سولې،
سوکالۍ،علمي، فرهنګي پرمختیاوواوبریالیتوبونو په هیله
په درنښت
سرمحقق نعمت الله " اندړ"
د پښتو څېړنو دنړیوال مرکز رئیس
کابل ، دتلې لومړۍ، ۱۳۸۳ لمریز کال

# دعبدالقادرخان ختهك

## ژوند، ادبي- عرفاني لاراو آثار

محقق سيدمحى الدين هاشمي

١٣٨٣ لمريز

# دعبدالقادر خان ختټک (رح) ژوند ،
# ادبي-عرفاني لار او آثار

عبدالقادر خان ختټک له څو اړخیز شخصیت څخه برخمن دی، د پیژندنې له پاره یې باید دی چې پر ژوند پیښنو او د شخصیت هر اړخ ته یې تر ځانګړي سر لیک لاندې ځغلنده څیړنیزه کتنه او بحث وشي. د څیړنیزې چارې د اسانتیا له پاره موضوع پر دریو لویو برخو ویشو: په لومړۍ کې یې د ژوند پر حالاتو،وروسته په ادبي،عرفاني لار او په وروستۍ برخه کې په آثار و بحث کوو:

## لومړی _ د ژوند حالات

دعبدالقادر خان ختټک د ژوند دحالاتو ډیره برخه هم لکه زموږ د ډیرو نورو د لرغونو زمانو پوهانو ، ادیبانو ، ملي اتلانو ، سیاسي او ټولنیز و شخصیتونو په څیر دوختونو او زمانو په تیارو کې پټه پاتې ده او ډیر لږ څرك او تت انځوریې د خپلو آثارو دداخلي شهادتونو او یا هم د هغې زمانې او راوروسته وختونو د لیکلیو تاریخي او ادبي

منابعو له مخې تر موږ را رسیدلي دي. چې د هغو په رڼا
کې یې دلته درپیژنو :

## زوکړه او کورنۍ:

عبدالقادر خان په قوم کرلاڼی خټک پښتون، د پیاوړي
اونومیالی فرهنګیالي شخصیت، شاعر، لیکوال د تورې او
قلم د ډګر اتل خوشحال خان خټکؒ زوی او دهغه د زامنو
دهغه لړ لیك له مخې چې، په تاریخ مرصع کې راغلی، دده
نوم په نهمه شمیره کې راغي[1]. موریې د نوښار دصاحب
خان مهمنزي لور وه . شهباز خان ، بخت ناك او نوریې خپل
سکني ورونه وو.[2]

دعبدالقادر خان دزوکړې ( زیږیدنې) نیټه پټې خزانې
۱۰۶۱ هجري قمري کال د جماد الثاني د میاشتې ۲۳ مه
، او اروانباد پوهاند عبدالحی حبیبي د عبدالقادر خان
خټك ددیوان په مقدمه ، تاریخچه سبکهای پشتو او پښتانه
شعراء لومړي ټوك کې ۱۰۶۲ هجري قمري کال ښودلې او
په ځینو نورو آثارو ، لکه د قاضي عبدالسلام په ادبي
سوغات ، تاریخ ادبیات مسلمانان پاکستان و هند ، آریانا
دایرة المعارف شپږم ټوك ، د سر محقق زلمی هیواد مل په
فرهنګ زبان و ادبیات پشتو لومړي ټوك او د پوهاند
صدیق الله رښتین د پښتو نثر هنداره کې هم دا سنه ۱۰۶۲
هجري راغلې ده .[3] خو په تاریخ مرصع کې ، دخوشحال
خان خټك هغه تاریخي قطعه چې د عبدالقادر خان خټكؒ

دزوکړې په مناسبت يې ويلې، په هغې کې دنوم ( عبدالقادر خان ) د توريو د ابجدي ارزښتونو له مخې د زوکړې نېټه ، ۱۰۶۳ هجري قمري راوځي. هغه تاريخي قطعه داده :

عبدالعزيز خان که کنون جان و هوش ماست
درنيم شب به پنجم ذوالحجه زاد بس
در کاف وهای که ذوالحجه گفته ايم
قادر بزاد وخت سحر شاد باد بس
چون نام او زعين و نون بر شمرده ام
ما را خبر زمولد وآوان بداد بس
عين است و باو دال والف،ل و قاف الف
دال است و را خاو الف نون مراد بس[۴]

دعبدالقادر خان ختېك د زوکړې همدا پورتنۍ نېټه اوس ټولو څېړونکو په يوه خوله منلې او نورې ناسمې بلل شوې دي.

## زده کړه :

عبدالقادر خان ختېك د خوشحال خان ختېك په څير د يو عالم او فرهنګپال شخصيت په کور کې سترګې نړۍ ته غړولې وې، معلومه ده چې له هماغه وړوکوالي (ځلور يا پنځه کلنۍ) څخه به يې دوديزه زده کړه پيل کړې وي.

په معلومو او موجودو اسنادو کې يې دخپلو څرګندونو له مخې لومړنی استاد خپل پلار ( خوشحال خان ختېك ) ښودل شوی او ګڼل شوی دی. عبدالقادر خان ختېك دخپل ژباړلي اثر ګلدستې په مقدمه کې دې مسئلې ته داسې اشاره

کوي: " اما دی هم زما استاد و ، هم پلار ، داستادانو د اوصافو نه مدحې اکثرو مؤ لفانو په خپلو تاليفونو کې راوړي، ما هم اقتداء په هغو بندګانو پسې وکړه ...." [۵]

البته له اسنادو او مدارکوڅخه لاتر اوسه دا نه ده جوته شوې چې عبدالقادر خان ختټك به له خپله پلاره څو مره او ترکله زده کړه کړې وي، دا هم نه ده معلومه چې کله او چيرته يې له کوم بل استاد څخه ديني علوم او نور فنون لوستي وي، ځکه چې په دې اړه دده پخپلو آثارو او نورو ادبي تاريخي مدارکو کې ځرګندونې نشته، خو څه شی چې موږ د نوموړي د لوړې او منظمې زده کړې په بهير باوري کوي هغه دده لوړ علمي او ادبي صلا حيتونه ، پياوړی استعداد په عربي او پارسي ژبه په ډيره لوړه کچه پوهيدنه ده چې د نوموړي درا پاتې آثار و له مطالعې څخه ډير ښه را څرګنديدای شي.

په ځانګړې توګه کله چې نوموړی د ګلدستې د مقدمې په يوه برخه کې دخپل پلار او استاد ( خوشحال خان ) دعلمي او ادبي صلاحيتونو د ستاينې او ښودنې په لړ کې وايي : " په علم عربی کې يې لږ دخل و، په پارسی کې سرآمد دخپل عصرو، شعر يې پارسي، پښتو ښه انشاء کاوه اما پښتو شعر يې جهان لکه شيخ سعدي ونيو..."[۶] په دې ليکنه کې پرخپل استاد ( خوشحال خان ) باندې ددې قضاوت له مخې "چې په علم عربی کې يې لږ دخل و " ځينې څيړونکي په دې باور ي کړي چې ووايي:" دې په

عربي ژبه کې له خپل استاده هم دمخه و."[۷] او دعبدالقادر خان په دیوان د یادداشت لیکوال دوست محمد خان کامل مومند خوله دې پورته جملې څخه دا نتیجه اخلي چې:"دغه انتقاد هم له هغه چا سره ښایي چې په عربي اوپارسي علومو کې تاق وي. "[۸]

دعبدالقادر خان ختټک دلوړې پوهې او زده کړې د ثبوت په لړ کې دیادونې وړ ده چې نوموړی په عربي ، پارسي او هندي ژبو پوهیده . عربي شعرونه یې په پښتو شعر ژباړلي، دعربي شعر یوه بیلګه یې هم په لاس کې لرو او په فارسي ژبه پوهیدنه خو یې تر دې کچې وه چې د شیخ سعدي د ګلستان او دمولا نا جامي د یوسف زلیخا غوندې شاهکار ادبي آثار یې پخپل ټول ادبي خوند رنګ سره پښتو ته ژباړلي دي. دپارسي شعر بیلګه یې هم لرواو په دیوان کې یې ځینې داسې کلمې شته چې په هندي ژبه دده پوهیدنه هم ورڅخه را زباتیږي.

دآثارو له مطالعې څخه یې په دې پوهیدی شو چې د مولا نا جلا ل الدین بلخي ( ۶۰۴- ۶۷۲ ه ق ) شیخ سعدي (۵۸۱- ۶۹۴ه‌ق) مولا نا عبدالرحمٰن جامي (۸۱۷-۸۹۸ ه ق) عمر خیام، دخوشحال خان ، رحمن بابا او نورو د آثارو ژوره مطالعه یې درلوده او په آثارو او افکارو کې یې دهغوی اغیزې جوتې دي.

ددې پورته څرګندونو د پایلې په توګه ویلی شو چې عبدالقادر خان ختټک دخپل عصر ددودیزو دیني او ادبي

علومو منظمه زده کړه کړې او پکې له لوړې پوهې، ژورې مطالعې او پیاوړي استعداد نه برخمن و او په دغو علومو کې یې نور و ته د تدریس اواستادۍ دنده هم ترسره کړې ده.

## واده ، اولاد او له کورنۍ سره اړیکې:

له ځینو منابعو او روایاتوڅخه دا جوته شوې چې عبدالقادر خان خټکؒ دخپل سکه تره فقیر جمیل بیګؒ ، چې دخانۍ او سردارۍ ژوند ته یې شاکړې، یو عارف ،صوفي مشر به اوروحاني شخصیت و ، له لور سره یې واده کړی و. د ښاغلي سرمحقق هیواد مل دلیکنې له مخې په تاریخ مرصع کې دافضل خان خټک له څرګندونو څخه داسې جوتیږي چې عبدالقادر خان خټک دخپل تره له لورسره واده کړی و، او اولاد ونه یې هم درلودل، خو دانه ده معلومه چې واده یې په کوم کال شوی او څو اولاد ونه یې وو؟

نوموړی د اروانښاد محمد نواز خټک له قوله لیکي چې: په خټکو کې ځینې کورنۍ اوس هم شته چې ځانونه " قادرخاني" بولي او خپل نسبت تر عبدالقادر خان پورې رسوي.

سرمحقق هیواد مل دحدیقهٔ خټک د سریزې دلیکوال انورالحق دلیکنې له مخې دا یادونه هم کوي چې په شیدو کلي کې دعبدالقادر خان دیوې لور د سلسلې داولاد یو ټبر اوس هم شته چې هغو ته " قادر خیلي" ویل کیږي او په افغانستان کې د پیاوړي لیکوال او انځورګر استاد

عبدالغفور بريښنا په ژوند ليك كې دا درج ده چې نوموړی دلور له خوا دعبدالقادر خان ختك لمسی و. (۹)

ترکومه چې خبره له خپلې كورنۍ، په ځانګړې توګه له خپل پلار سره په اړيكو پورې اړه لري، ويلای شو چې له عبدالقادر خان ختكؒ سره پلار ډيره مينه درلوده او له ډيرې مينې يې پلار ده ته د " بابا دل " لقب ورکړی و. په يو بيت کې يې داسې ستايلی دی:

ښه زوی دبابا دل دی
تل دې ژوي په جهان (۱۰)

همدارنګه په ځوانۍ کې يې له خپل پلار خوشحال خان ختك سره په ځينو مشهورو جګړو کې هم برخه اخيستې چې نوموړی دخپلې ملي او سياسي مبارزو په لړ کې د پښتونخوا په غرونو رغونو کې دخپلو مخالفينو په وړاندې تر سره کړې دي.

عبدالقادر خان ختكؒ هم له خپل پلار سره ډيره مينه لرلې ده. دا خبره دهغه له ديوان او نورو آثارو څخه ښه جوتيږی چې ځای په ځای يې پکې دهغه علمي، ادبي او سياسي مقام په ډير درناوي ستايلی او هغه يې خپل استاد بللی دی. دګلدستې له مقدمې څخه دا يوه څلوريزه دبيلګې په توګه رااخلو:

که عقل پوهه که تيغ که دېګ وو
په پښتانه کې دخوشحال بېګ وو

زر يې مـــړانې ته په شمار دسلو وو
زريې سخا ته دصحرا ريګ وو[11]

له خپلو نورو ورونو او کورنۍ سره يې هم اړيکې ښې معلوميږي. که څه هم په آثارو کې يې داسې کوم څرګند شواهد نشته چې هغه دې پکې د چا غندنې کړې وي او يادې يې په څه مسأله له چاسره مخالفت ښودلی وي، خو دتاريخ مرصع د څرګندونو له مخې د پلار له مړينې وروسته عبدالقادرخان د خپلې کورنۍ او سردارۍ پورې اړوندو مسايلو کې بې تو پيره نه دی پاتې شوی. که داړتيا له مخې په دغو کورنيو شخړو کې لږ و ډير برخه وال شوی هم وي، ده دخپل صوفي مشربه عالمانه او فقيرانه " درويشانه " خوی خصلت له مخې د چاپه خلا ف پوچه او سپکه وينا نه ده کړې. د بيلګې په توګه هغه مهال چې د مشرۍ او سردارۍ دمخالفتونو او کورنيو شخړو په لړ کې له خپل کوروکلي اکوړي څخه دکورنۍ له نوروغړيو، ورونو او وريرونو سره يو ځای نوښار ته په کوچيدو اړوتیو او هلته يې په ډير ستونز من حالت کې دژوند شپې ورځې سباکولې، دا پيښه يې دګلدستې په سريزه کې په څو مره سړه سينه ليکلې ده :

" په سن زرسل څليرويشت د هجرت نبوي صلی الله عليه وسلم په سبب دحوادث روزګار، بې ياره بې دياره، بې مونس بې غمګساره، په نوښهر کې په يوه کلبه اندوه کې، لکه دصحرا په غار کې مې اوقات ګوزاري کوله....[12]

## دژوند بوختیا وې:

لکه چې دمخه مو هم یادونه وکړه دعبدالقادرخان ختکؒ د ژوند حالات ډیر نه دي څرګند او د ډیرو لړو ژوند پیښنو څرك يې په آثارو او نورو منابعو کې تر سترګو کیږي. د کوچینوالي، نوې ځوانۍ او آن تر پوره ځلمیتوب ، یعنې تر شل کلنۍ پورې دده د ژوند پیښې نه دي راڅرګندې، خو له حالاتواو په راورسته وخت کې دده د ګڼ اړخیزه شخصیت د جوړښت او دکورنۍ دعلمي او فرهنګي چاپیریال له موجودیت څخه لړو ډیر دا معلومیدای شي ددغو کلونو زیاتره وخت به يې ددیني او ادبي علومو په زده کړه او په فکري ، سیاسي او عامه ټولنیزه روزنه تیر شوي وي. وروسته بیا هغه دخپلې کورنۍ د سردارۍ په معاملو او دخوشحال بابا دملي او سیاسي مبارزې دننګ ، جنګ په ډګر او سنګر کې دهغه تر څنګه دیو ننګیالي تورزن په توګه هم راڅرګندیږي.

تاریخ مرصع دخوشحال خان ختك له بیاض څخه دیو اقتباس له مخې موږ په دې خبروي چې دعبدالقادر خان ختكؒ او عابد خان په مشرۍ په ۱۰۸۳ هـ ق کال د ختیکو لښکرو د خیر آباد دمغلو پر کوټ حمله وکړه او هغه يې په ډیره میړانه فتح کړ.

همدارنګه له خپل پلار ( خوشحال خان ختك ) سره په هغه بریالي برید کې ملګری و چې په ۱۰۸۴ هـ ق د نوښار

په مغلي تا نه ترسره شو. او په هغه مشهوره جګړه کې يې هم برخه لرله چې په ۱۰۸۵ هـ ق کال دخوشحال خان او دهغه له مخالف شير محمد خان بنګښ تر مينځ په ګنبت نومي ځای کی پيښه شوې او دواړو لور يو ته ډير ځاني اومالي زيانونه هم اوړيدلي وو، پخپله عبدالقادر خان هم په دغه جګړه کې ټپي شوی و.[۱۳]

دعبدالقادر خان دژوند د پيښو دتاريخي بهير له څيړنې څخه داسې جوتيږي چې دخوشحال خان خټک له مړينې ( ۱۱۰۰ هـ .ق ) وروسته نوموړی هم دخپلې کورنۍ او سردارۍ په معاملو کې بې پلوی نه دی پاتې شوی او دوخت او حالاتو غوښتنې دې ته اړيستی دی چې دخپلې کورنۍ د پت او عزت د ساتنې او دسيمه ييزې واکمنۍ ( سردارۍ) د ټينګښت او پايښت له پاره، چې له بهر نه ددښمن دلاس وهنې او دواك او مشرۍ پرسر په کورنۍ کې ژورو اختلافاتو او خپل منځي شخړو له امله له سخت ګواښ او خطر سره مخامخ وه ، سياسي هلې ځلې وکړي او خپل دريځ څرګند کړي.

داسې هم ويل کيږي چې د اشرف خان هجري له بندي کيدو څخه وروسته عبدالقادر خان خټک دڅه وخت له پاره عملاً دقوم مشر هم پاتې شوی دی.[۱۴]

دده د سياسي هلوځلو په اړه دتاريخ مرصع پر ځينو اشارو برسيره د پټې خزانې د مؤلف محمد هوتك دا څرګندونې هم دپاملرنې وړ دي چې: " عبدالقادر خان په

۱۱۱۳ هجري په کابل کې لیدل شوی و. چې دختېکو دقوم له خوا کابل ته راغلی و او د کاروانونو د تیریدو خبرې یې د بنګښ پر خوا کولې. "(۱۵)

دعبدالقادرخان ختېكؒ د ژوند د بوختیا وو دا اودې ته ورته نورې سیاسي هلې ځلې او په ځانګړې توګه په زلمیتوب کې د پلار له حکم سره سم یا د قبیلوي ذهنیت اویابې ننګۍ څخه دځان ژغورولو او یاهم دنورو مجبوریتونو له مخې به یې دننګ او جنګ ډګر ته وردانګلي وي، خو دنومورې اصلي فطرت، چې اوس یې موږ دهغه په آثارو او افکار و کې ګورو، بیخي بل ډول و. او هغه داروښاد روهې دوینا په تائید چې: " دهغه فطرت عرفان او علم ته زیات مایل او له سیاست نه یې له فرهنګ سره مینه زیاته وه ...."(۱۶)

ترکومه چې دده دآثارو له مطالعې څخه جوتیږي ددژوند زیاتې اصلي او اساسي بوختیا وې یې تدریس ، تلقین ، ارشاد او علمي-ادبي فعالیتونه وو.

خلکو ته د تدریس په باب د ګلدستې له مقدمې څخه دده خپلې دا څرګندونې هم د بیلګې په توګه د یادونې وړ دي: " اکثر به تنها ناست وم، کله کله به بعضې یاران راغله استفاده به یې دعلم عربي و فارسي کوله. "(۱۷)

دژوندانه په بهیر کې د بنستېزو بوختیا وو او مصروفیتونویوجامع انځوریې په دې لاندې بیت کې ډیر ښه وړاندې کړی دی:

**چې پرې غم غلطوم درې مې محرم دي**
**يو قلم ، دويم کتاب، دريم اشعار خپل** [۱۸]

عبدالقادر خان خټک ډير معنوي او روحاني فيوضات له خپل تره فقير جميل بيګ موندلي، او دنقشبنديه طريقې لاربنود او مرشد يې شيخ سعدي لاهوري ( ۱۱۰۶ هـ ق مړ) و چې دهغه له لوري د طريقت په سلسله کې دخليفه مقام ته رسيدلی و، نو ځکه يې آثار او افکار دتصوف او عرفان په ژورې معنا رنګين، له معنوي پند او خوند نه ډک او له مادي نړۍ سره د مينې انځور پکې تت دی.

## دژوند وروستي حالات او وفات :

دعبدالقادر خان خټک دوروستي ژوند په هکله هم ډير معلومات نه دي ترلاسه شوي. دخپل يو ژباړلي اثر "ګلدستې" په سريزه کې يې دومره يادونه کړې ده چې دژوند وروستۍ شپې ورځې يې له خپل کورو کلي اکوړه خټک اوسرای ځخه لرې لرې په نوښار کې په ډېرې بيوزلۍ سره تيرې کړي دي. [۱۹] او ځيرونکو په وروستي عمر ( ۶۲-۶۳ کلنۍ ) کې دنوموړي د کورو کلي پريښودنې اصلي لامل هماغه کورنۍ خپل منځي شخړې ګڼلي چې دخانۍ اوسردارۍ پرسر راولاړې شوې وې.

عبدالقادر خان خټک دسعدي ګلستان ژباړه په ۱۱۲۴ هجری قمري کال دروژې په مياست کې په نوښار کې ترسره کړې، نو تردغه وخته خو يې ژوند يقيني دی او په

تاريخ مرصع كې دافضل خان ختك دځرګندونو له مخې د ۱۱۲۵ هجري قمري كال د جمادی الاول پورې لا ژوند ی دی.[۱۹] دمړینې په باب یې زیاترو ادبي څیړونكو د میجر راورټي د ليكنې په استناد ليكلي چې عبدالقادر خان ختك دهمدغو كورنیو شخړو او مخالفتونو په لړ كې په سپينه ږيره دخپل كور و كلي پر ينبو دوته اړ يستل شوی او بيا دافضل خان ختك له لاسه اويا دهغه په اشاره او دستور وژل شوی دي.د بیلګې په توګه دلته د پيښور د پښتو اكيډيمۍ له خوا دعبدالقادر خان ختكؒ د چاپ شوي ديوان دمقدمې ليكوال دراورټي دقول پر بنسټ ليكلي نظر رااخلو:

"دخپل وراره افضل خان دوړاندې سر ټيټول دعبدالقادر خانؒ له پاره ګران وو، او دهغه جمله ورونه دعبدالقادر خان په سردار جوړولو كې دهغه سره وو. ولې دا هرڅه بې فايدې ثابت شول. په موروثي بناء دقبيلې متفقه فيصله دافضل خان ختك په حق كې وه . نتيجه دا شوه چې افضل خان د هغه وخت ددستور مطابق ددغه مشكل بس يو قابل عمل حل داو ګڼلو چې دټولو مخالفو عناصرو نه كلي نجات بيا مومي. نو عبدالقادر، دهغه لس ورونه اودهغو متعدد زامن يې په يوه ورځ قتل او په كنده كې ښخ كړل. "[۲۰] خو افضل خان ختك بيا پخپل اثر تاريخ مرصع ۴۰ مخ كې يوازې ددوی په بنديتوب اعتراف كوي او ليكي:

" آخر کار په هسې کار ورسيد- چې له صلاح په فساد راغی، ناچار حيران ، پريشان متفکرشوم، مصلحت مې تر وهلو ، شړلو په قيد کې وليد. په سن زرسل پنځه ويشت مياشت د جمادي الاول عبدالقادراو شهباز د فرزندانو سره او عبدالله او محمدي مې قيد کړه ...."

په هر صورت عبدالقادر خان خټک په خپل طبيعي مرګ مړ وي او که افضل خان خټک وژلی وي، په همدغه ۱۱۲۵ هجري قمري کال شاوخوا مړ دی، خو د کفن دفن ځای ځايګي يې نه دی معلوم، همدغه يې بايد دوفات کال وبولو،ځکه چې د نوموړی د ژباړلي اثر ګلدستې هغه قلمي نسخه چې اوس د پېښور په اسلا ميه کالج کتابتون کې خوندي ده ، په ۱۱۲۶ هجري قمري کال قطب الدين نومي خطاطی کړې او نوموړي په پای کې ليکلي چې" په اووه ويشتم تاريخ د رجب المرجب، سن زرسل شپږويشت په دسخط د خط شکسته خط قطب الدين ګلستان د پښتو، تصنيف د عبدالقادر ابن خوشحال خان غفر هما مرقوم شد"

په دې ليکنه کې د خطاط له خوا د " غفر هما " کلمې څخه هم دا توجيه کيدای شي چې عبدالقادر خان خټک به دا وخت مړو. (۲۱)

## دويم : ادبي-عرفاني لار :

دعبدالقادر خان خټک دآثارو او افکارو له مطالعې څخه جو تيږي چې ادبي لارېې هماغه ده چې موږ يې په خپلو

ادبي ځیرنو کې"د خوشحال خان ادبي مکتب" یا "د ختټکو ادبي مکتب" بولو او بنسټ یې د پښتو ژبې پیاوړي او نومیالی شاعر، لیکوال ، فرهنګپال او توریالي خوشحال ختټک ( ۱۰۲۲-۱۱۰۰ هـ.ق ) ایښی دی.

د نوموړي ادبي لار دده زامنو ، لمسیانو او نورو پلویانو دزړه په وینه او مینه پاللې او دیو ادبي مکتب په توګه راڅرګنده شوې ده . عبدالقادر خان هم ددغه ادبي مکتب په لومړنیو او مخکښو غړیو کې شمېر دی. دمخه تر دې چې د نوموړي په ادبي مقام څه ووایو ، غوره به دا وي چې لومړي ددغه مکتب څو سترې او عامې ځانګړنې دروپیژنو او بیا د هغو په رڼا کې دنوموړي دادبي-عرفاني لارې څرک ولګوو:

## دختټکو دادبي مکتب ځانګړنې:

۱ـ پښتو ادب یو نوي پرمختیایي او پراختیایي پړاو ته داخلیږي او دودې، پراختیا او پرمختیا له پاره یې په زړه پورې شعوري هڅې او هلې ځلې پیل کیږي.

۲ـ په شاعرۍ کې حماسي، رزمي او ملي روحیه ډیره پیاوړې کیږي او تر ډیره د پښتنو د ټولنیز او سیاسي ژوندانه نه رنګ اخلي.

۳ـ د مسجع او متکلف نثر پرځای ساده ، روان او دخلکو محاورې ته نیژدې نثر لیکنه پیل او دختټکو ځانګړی لیکدود رامنځته کیږي.

۴ـ پښتو شعر د مضمون له پلوه بشپړ شو. په پخوا نیو عشقي، عرفاني، و عظیه اخلاقي موضوعاتو برسیره داجتماعي ژوند بیلا بیل موضوعات، تاریخي پیښې، پرتهولنه ژور انتقاد. له وطن او قوم سره د مینې احساسات په شعر او ادب کې په پراخه پیمانه انعکاس مومي.

۵ـ پښتو ادب ته د شرقي شاعرۍ ټول انواع له غزل، قصیدي، رباعي، مثنوي، مربع او ... برسیره چې موږ یې تر دې دمخه دروښانیا نو او آن دا چې په لرغونې ادبي دوره کې هم بیلګې لرلې، مسدس، مثمن، ترکیب بند، ترجیع بند، ذوالقافتین او نور ډولونه په پښتو شاعرۍ کې همداوخت په پراخه پیمانه رواج مومي.

۶ـ د پښتنو خپلې ځینې ملې کیسې (لکه آدم خان درخانۍ، دلی او شهۍ) ولیکل شوې او هم له نورو ژبو څخه یو شمیر کیسې وژباړل شوې.

۷ـ ددې دورې ادبیات د موضوع درنګارنګۍ او هنري ارزښتونو له پلوه ښه بډای او دسیمې له ادبیاتو سره دسیالۍ جوګه کیږي.

۸ـ شاعران له خپلې مورنۍ ژبې برسیره په فارسي او عربي ژبو هم شعرونه وایي.(۲۲)

موږ دا پورته یادې شوې زیاتره ځانګړنې د عبدالقادر خان ختکؒ په آثارو او افکارو کې لیدلی شو.

سرمحقق زلمي هیواد مل دعبدالقادر خان ختک دادبي لارې په اړه لیکلي دي: " دا خبره سمه ده چې دخپل پلار

شاګرد و او په دیوان کې یې دخوشحال بابا په ځمکه ویلې غزلې شتهٔ او په ځینو مواردو کې یې دده پیروي کړې او نهایت کې سړی دی دهماغه سبك له پیرو انو څخه ګڼلی شي چې خوشحال بابا یي موجد دی ، خو دومره ویل به بي ځایه نه وي چې عبدالقادر د شعر سبك خپل ځینې ابداعي او ابتکاري خصوصیات لري چې موږ یې دده خپل ایجاد بللی شو.[۲۳]

تر کومه چې خبره دعبدالقادر خان ختك په ادبي عرفاني او تصوفي لارې پورې اړه لري، دده د خپلو آثارو او هم دهغې زمانې دنورو آثارو په استناد نوموړی دنقشبندیه طریقي کلك پیرو او هم یې دخپل تره فقیر جمیل بیګ نه ډیر روحاني فیوضات موندلي او دهغو ډیرې ژورې اغیز ې دده په آثارو او افکارو کې ترسترګو کیږي.

دنوموړي د تصوفي-عرفاني لارې او مقام په اړه کولی شو ددیوان دایو بیت:

د مقصود په لورې ځه عبدالقادره
که په رو د نقشبند ځې که د چیشت

او هم په پټه خزانه ( ۱۱۴۲ هـ ق تألیف) کی دده دمعاصر محمد هو تك دا وینا چې : " نقل کا چې عبدالقادر خان په طریقت نقشبندي کې خلیفه و او د پیر خلا فت یې کا او دمرید انو ارشاد یې کا ، شیخ رحماني سعدي لا هوريؒ په خلافت ټاکلی دی[۲۴] دخپلې ادعا د ثبوت په توګه وړاندې کړو.

د آثارو، په ځانګړې توګه د اشعارو له مطالعې څخه یې دا جوتیږي چې دعرفان په رموز و اګاه. د تصوف او عرفان ډیر اصطلاحات یې ځای پرځای په خپلو اشعارو کې استعمال کړي او په دیوان کې یې د تصوف رنګ غالب دی. (۲۵)

## علمي-ادبي مقام او شهرت:

دعبدالقادر خان ختکؒ دعلمي ادبي مقام په اړه دده دخپلوآثارو ، دده دمعاصرینو او راوروسته ددې اوسنۍ زمانې دځینو لیکوالو ، شاعرانو ، او څیړونکو ددمنظومو منثور لیکنو او څرګندونو په رڼا کې ډیر ځغلنده بحث کوو:

تر کومه چې خبره د عبدالقادر خان ختك په علمي مقام پورې اړه لري، هغه دده داشعارو دیوان او نورو ژباړلو آثارو ته په کتنه او پاملرنه ښه جو تیدای شي. دده را پاتې آثار ددې څرګندوی دي چې دخپل وخت مروجه علوم او فنون یې لوستي او پکې داستادۍلوړ پوړته رسیدلی و.

ادبي مقام او شهرت یې هم دخپلو علمي ادبي آثارو او افکارو په رڼا کې جوت دی. هم پخپل عصر او زمانه کې دلوړ نوم او شهرت خاوند و او هم په راوروسته زمانو کې تر دا ننه لیکوالو او شاعرانو دیو پیاوړي ادیب او شاعر په توګه منلی، ستایلی دی او آثارو یې ډیر مینه وال لرلي دي.

دلته دنوموړيدخپلو ځینو هم مهالواو راوروسته پیړیو او او سنیو څیړونکو د منظومو او منثور و لیکنو او

ځرګندونو څو بیلګې را اخلو چې پکې دده دادبي مقام ستاینه او یادونه کوي. لومړی دده د مشر ورور اشرف خان هجر ي د شعر دا بیت د بیلګې په توګه مخې ته راځي:

قادر خان که بحر بولم دروغ نه دي
چې یې فکر داصلي درو مصدر دی[۲۶]

محمد هوتك يې پخپل مشهور اثر پټه خزانه (۱۱۴۱-۱۱۴۲ ه ق تألیف) کې د"فخر الزمان عبدالقادر خان " په لقب ستایي او دده د ژوند پیښو او آثارو په باب په زړه پورې معلومات وړاندې کوي. [۲۷]

پیر محمد کاکړیې داسې ستایي:

بیا رنګین شعر بیان عبدالقادر کړ
داشرف دی هم تر ده نه سوزان شعر

شمس الدین کاکړیې د شعر کان بولي:

ښه مربوط شعر بیان عبدالقادر کړ
ځکه دی په پښتنا نه کې کان دشعر

میرزا حنان وایي:

بل عبدالقادر شاعر د خوشحال زوی و
ښه کتاب يې دی جوړ کړی لکه ګل[۲۸]

همدارنګه کله چې عبدالقادر خان ختټك په پخپله یوه غزله کې چې مطلع یې وه :

" لکه زه په یار مین یم، بل به نه وي مفتون هسې

لکه زه پسې محزون یم بل به نه وي محزون هسې"
او په مقطع کې یې خپل شاعرانه غرور داسې څرګند کړ:

دا غزل په پښتو ژبه چې بیان عبدالقادر کړ
دروغجن یم که بې خانه وایي بل یو پښتون هسې

هغه مهال او هم په را وروسته وختونو کې زموږ ترزمانې د ډیر و پښتنو شاعرانو پاملرنه دده ادبي مقام ته وراړولې، دده د غزلې په څواب کې یې شعرونه ویلي او د"هسې" تاریخي مشاعره ورڅخه جوړه شوې ده. په دغو پخوانیو شاعرانو کې د بیلګې په توګه د معزالله مومند ، محمدي صاحبزاده، صدر خان خټك، اشرف خان خلیل، عثمان ، غفور، عبدل، پیر محمد کاکړ، قنبر علي خان اورکزی ، میرزا حنان او په معاصر و شاعرانو کې د مولوي صالح محمد ، بهایي جان، سید رسول رسا، مسافر مروت او ... نورونومونه یادوو. (۲۹)

برسیره پر دې ددولسمې او دیارلسمې پیړۍ د نومیالیو شاعرانو په دیوانونو کې داسې اشعارهم مومو چې ورڅخه جو تیږي چې هغه یې د عبدالقادر خان خټك د اشعارو په پیروۍ او تضمین او یا له هغې څخه په ژور ې اغیزې منلو سره ویلي دي. په دغه ډله شاعرانو کې د بیلګې په توګه د کاظم خان شیدا ( ۱۱۳۵- ۱۱۹۴ هـ ق ) ، قلندر اکوزي، پیرمحمد کاکړ، قنبر علي خان اورکزی، عبدالقاسم او نورونومونه د یادونې وړ دي.

همدارنگه د نولسمې او شلمې پيړۍ بهرني ختيځ پوهان هم دده له لوړ نوم او شهرت سره آشنا او دده دآثارو او افکارو مطالعه يې کړې وه . په دوې کې ډورن ، راورټي، ترومپ، هيوز، پلاوډن، ميکنزي، دريانکوف نومونه د بيلګې په توګه يادوو. (۳۰)

د پښتو په معاصر و ليکوالو کې هم ډيرو د عبدالقادر خان ختټک د ژوند ، آثارو او افکارو په باب ليکنې او څيړنې کړي او دده لوړ ادبي مقام يې څيړلی او ستايلی دی، د بيلګې په توګه يې دځينو لنډې يادونې اوځرګندونې رااخلو:

اروانباد پوهاند عبدالحی حبيبي،دعبدالقادر خان ختټک ددیوان په سريزه کې دادبي صلا حيتونو مقام او دشعر د ځانګړنو په باب ليکلي دي: " دعبدالقادر خان کلام ساده دی، له تقليده او دروند والي څخه تش دی، دهر راز تخيل په اداء مقتدر دی ، ګران مضامين په ساده ډول ويلی شي. په خوږ والي او سلاست کې مثل نه لري ، تمثيلات يې طبيعي او مثبت دي. په تخيل کې دحسن او تعقل تر دايرې نه وځي... اوپه کلام کې يې ډير ځله ابتکار او دتخيل بداعت ليدل کيږي. " (۳۱)

اروانباد کامل مومنديې په خپل اثر " خوشحال خان ختټک" کې دلومړۍ درجې له شاعرانو ګڼي او دده په قادر الکلامۍ اعتراف کوي.

همدارنګه پر اروانباد حبيبي ، استاد کامل مومند برسيره زموږ نورو مشرانو، لکه پوهاند رشاد او پروفيسر

پریشان خټک او ځینو نورو ورته د لومړی درجه شاعر پوړ ټاکلی او ځینو تر خوشحال وروسته دحق خاوند او ممتاز ادیب بللی دی (۳۲)

اروابناد کاندید اکاډمسین محمد صدیق روهي یې د پښتو ژبې له غوره شاعرانو څخه ګڼي او دده ادبي مقام ؛ د اشعاروښیګڼې او ځانګړنې داسې په ګوته کوي:

" دعبدالقادر خان دشعر په ښیګڼو کې دوه ټکي دخاصې یادونې وړ دي: لومړی دا چې دده وینا دیوه پاخه عالم وینا ده ، دیو داسې عالم چې په ادب پوهنه باندې احاطه لري او هره کلمه یې په صراحت سره دمافي الضمیر ترجماني کوي. دوهم دا چې په وینا کې یې دآهنګ ښکلا او سندریز ریتم د ژبې خوږ لت ، رواني او هنري صنایع په څرګند ډول لیدل کیږي. داشرف خان په پرتله دده وینا فصیحه ده " (۳۳)

ډاکتر راج ولي شاه خټک یې دادبي مقام په اړوند لیکلي دي:

" دعشق د محبت دمضمون دابنکلی شاعر هو مره چاپیرژندلی او نمانځلی نه دی، لکه څو مره چې پکار و. ددې وجه شاید دا وي چې دخپل دور دوو لویو او مقبولو شاعرانو ( خوشحال او رحمٰن ) تر مینځه پیدا شوی و او پښتانه چې سخن فهمي کمه او طرفداري ډیره کوي، ددغه خوی په بناء د عبدالقادر خان خټک له مقامه څوك په پوره ډول خبر نه شول . ګنې څو مره ښکلي پاك سپیڅلي خیالات

چې ده په شعر کې بيان کړي دي، په کوم کمال يې بيان کړي دي، د هغې ثاني لټول ګران دي. د نادرو تشبيهاتو د ښکلي ځمکو ، مترنم بحرونو او دعلوي خيالا تو شاعر عبدالقادر خان ختټك چې د مجازي عشق د محبت او بيا د تصوف د حقيقي عشق د کيفياتو ، مشاهداتو او ادراکاتو بيان څومره په خوږ او دلنشين انداز کې کړی دی، دغه کمال فن د پښتو د ډيروکمو شاعرانو نصيب شوی دی. (۳۴)

سرمحقق زلمی هيواد مل يې دژوند ، فن او شخصيت په باب د هر اړ خيزې څيړنې په پايله کې دعلمی ادبي مقام يوه جامع ارزونه کړې چې دلته يې دالفاظو په لنډون سره رااخلو:

عبدالقادر خان ختټك چې دخپلې ژبې او ادبياتو دودې له پاره کوم کارونه کړي دي هغه پخپله دده مقام موږ ته راڅرګندوي . دده دموجودو تر لا سه شويو آثارو په استناد ويلی شو:

۱ــ که څوك د پښتو شعر تاريخ ليکي، نو ديوولسمې پيړۍ دپای او دولسمې پيړۍ د پيل داشعارو د تفسير او تحليل په لړ کې ضرور عبدالقادر خان له خپلو مليحو اشعارو سره نه هيروي چې ددې زمانې په اشعارو کې خپل ځای لري.

۲ــ که د پښتو نثر تاريخ ليکل کيږي، نو د پښتو نثر د تحول په مراحلو کې به ضرور دعبدالقادر خان په نثر ي ايجاداتو خبري کيږي.

۳_ د ترجمو د تاریخ لیکونکي به د پښتنو د ثقافت په وده کې د عبدالقادرد ترجمو په نقش خبرې وکړي او دا به ضرور ولیکي چې د فرهنګ په تاریخ کې داوخت عبدالقادر خان دا ضرورت محسوس کړی و چې د فارسي شاهکار آثار (ګلستان او یوسف زلیخا) په پښتو وژباړي او هم له عربي څخه دې ته ورته آثار ترجمه کړي او هم د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم څلویښت حدیثونه انتخاب او په پښتو وژباړي.

لنډه دا چې عبدالقادر خان ختکؒ د خپلو آثارو او افکارو په رڼا کې د مطالعې مختلف او ډېر موارد او په هره برخه کې ځانګړی مقام لري، چې نه نور دده مقام نیولی شي او نه دی دنورو مقام. " (۳۵)

دعبدالقادر خان ختک دادبي شهرت په اړه د بحث په لړ کې دا خبره هم دیادونې وړ ده چې نوموړی پخپلو اشعارو کې زیاتره خپل نوم عبدالقادر راوړی، خو کله یې دتخلص په توګه کرلاڼی او " ختک" هم کارولی دی (۳۶) لکه په دې بیلګو کې:

نه له چایې طمع شي نه له چا ویره
څو خبرې رښتیا کړي"کرلاڼي" دي
زه ختک دیار په غم تازه تازه شوم
غور په خپل رحمان که شو ورځنې سترې

برسيره پر دې په خپل وخت کې نورو ده ته ځينې القاب هم ورکړي: خپل پلار " بابادل" او محمد هوتک " فخر الزمان " بللی دی او دا چې نقشبندیه په طریقه کې دخليفه روحاني مقام ته رسیدلی و، هم هغه مهال کې په "خليفه" هم مشهور شوې چې اغيز او انځور يې په لږ راوروسته وختونو کې په پښتو ادب کې هم جوت دی. د بېلګې په توګه قاسم نومي شاعر ديوې غزلې په مقطع کې ويلي دي :

دا غزل که د"قاسم" هاله ښکاره وي
"خليفه" به ویرې خوښ "سکندر" هم لا

او احمدي صاحبزاده ( ۱۱۵۵- ۱۲۳۳ هـ ق ) وايي:

دعبدالرحمن ديوان دخوشحال خان وو
د اشرف، د"خليفه" د"با بو جان"وو (۳۷)

لنډه دا چې په پښتو ژبه او ادب کې ديو پياوړي شاعر، ليکوال او ژباړن په توګه دعبدالقادر خان ختړك لوړ علمي او ادبي مقام ښه جوت او دی حق لري چې ووايي:

د سخن خوبی همه لرم موجوده
زه عبدالقادر محتاج د سخندان يم (۳۸)

## دریم ـ دعبدالقادر خان ختړك آثار

په پخوانیو منابعو کې لومړنی اثر چې موږ ته دعبدالقادر خان ختړكؒ دآثارو په باب معلومات راکوي هغه پټه خزانه ( ۱۱۴۱- ۱۱۴۲ هـ.ق تألیف ) ده . محمد هوتك په دې باب ليکي:

"عبدالقادرخان دشعر دیوان لري او دیوسف زلیخا قصه یې په سنه ۱۱۱۲ هجري کې نظم کړه، نصیحت نامه یې هم په پښتو وکښله او دشیخ مصلح الدین سعديؒ ګلستان یې په پښتو راواړوه. په سنه ۱۱۱۵ هـ. ق یې یو بل کتاب نظم کا چې نوم یې دی حدیقۀ ختک"[۳۹]

دمحمد هوتك په څرګندونو کې داشعارو دیوان او حدیقۀ ختک دوه ځانګړي آثار ګڼل شوي ، حال دا چې اوس دادبي څیړنو په نتیجه کې جوته شوې چې حدیقۀ ختک دعبدالقادر خان ددیوان نوم دی، نه دهغه ځانګړی اثر.

په دې لړ کې دویم اثر دراورټي پښتو ګرامر دی ، نوموړی دخپل ګرامر په سریزه کې دعبدالقادر خان دآثارو شمیره د شپیتو په شاو خوا کې ښیي او ددې لاندې آثارو نوموونه یې اخلي:

داشعارو دیوان ، آدم خان دُرخانۍ ، دجامي یوسف زلیخا پښتو ژباړه ، د شیخ سعديؒ د ګلستان او بوستان پښتو ژباړې ، او دمعماوو رساله .

په پورته یادو شویو آثارو کې د بوستان ژباړه ، آدم خان درخانۍ او دمعماوو رساله تر اوسه نه دي تر لاسه شوي البته دیادونې وړ ده چې دآدم خان درخانۍ ملي اولسي کیسه دعبدالقادر خان ختک ورور صدرخان په پښتو نظم کړې، قلمي نسخې یې هم شته او لومړی ځل ۱۹۵۹ م کال د پیښور پښتو اکیډیمي له خوا چاپ شوې ده. دعبدالقادر خان ختک دا لاندې شپږ آثارتر اوسه موږ ته معلوم دي:

۱_ داشعارو ديوان يا حديقهٔ ختټك
۲_ نصيحت نامه.
۳_ څلويښت حديثونه
۴_ قصيده برده .
۵_ يوسف زليخا.
۶_ ګلدسته .

ديادونې وړ ده چې دعبدالقادر خان ختټك په دغو يادوشويو آثارو كې له ديوان او نصيحت نامې پرته نور ټول ژباړې دي.
دلته يې په لنډه توګه درپيژنو:

## ۱_ داشعارو ديوان يا حديقهٔ ختټك:

دپټې خزانې د مؤلف په قول عبدالقادر ختټكؒ حديقهٔ ختټك په ۱۱۱۵ ه .ق بشپړ كړى دى، خو په دغه ديوان كې دداسې پيښو په اړه شعرونه هم شته چې په وروسته كلونو پورې اړه لري. د بيلګې په توګه دجمال او عيسٰى پيښه چې په ۱۱۲۳ ه. ق پيښه شوې ده. دځينو څيړونكو په اند كيداى شي دا ډول شعرونه وروسته ورسره مل شوې وي، ځكه داسې بيلګې موږ په خپل ادب كې نورې هم لرو ، لكه دقاسم علي خان اپريدي په پښتو ديوان كې ځينې راغلې پيښې چې دديوان تر بشپړ يدو وروسته پېښې شوي او بيا په دې اړه دشاعر ويلي شعرونه وورسته په ديوان كې اچول شوي دي (۴۰)

دعبدالقادر خان ختټك په موجود ديوان كې قصيدې، غزلې، رباعي او دشعرنور ډولونه شته، چې دغزلو شميره يې (۲۶۸) درباعياتو (۲۳۴) او دقصيدو شميره (۱۱) ده، په

متفرقاتوکې يومربع،دوه مخمسه، يو ترکيب بند، يو ترجيع بند او شپږ قطعات راغلي دي. موضوعات يې رنګين د مينې، عرفان ،اخلاقو، پند او نصيحت، مرثيه، ټولنيز تاريخي انتقادي مسايل پکې بيان شوي دي.(۴۱)

دعبدالقادر خان ختك دديوان قلمي نسخې پر افغانستان او کوزې پښتونخوا برسيره دنړۍ په نورو هيوادونو کې هم شته.

دا ديوان دلومړي ځل له پاره په ۱۳۱۷ لمريز کال په کندهار کې دپوهاند جبيبي له خوا اوپه راوروسته وختو نو کې: په ۱۹۶۷ م کال په پيښور کې د هميش خليل په زيار، په ۱۹۶۹ کال دحديقهٔ ختك په نوم د سيدانوارلحق په زيار، په ۱۳۶۸ لمريز کال دافغانستان دعلومو اکاډمۍ له خوا د نورالله ولسپال په زيار او په ۲۰۰۲ م کال د پيښور پښتو اکيډيمۍ له خوا د پروفيسور جهانزيب نياز په سريزه او زيار چاپ او خپور شوی دی.

دکندهار چاپ ديوان کې دعبدالقادر خان ختك خپله سريزه نه ده راغلې، په نورو کې شته.

## ۲_ نصيحت نامه:

دعبدالقادر خان ددې اثر بشپړ متن تر اوسه نه دی تر لاسه شوی، يوازې اروابناد حبيبي يې په ۱۳۱۷ لمريز کال دديوان چاپ ته دبرابرولو پر مهال له کومې قلمي نسخې څخه څو بيتونه ترلاسه کړي دي.

عبدالقادر خان ختټك پخپله ددې رسالې دنوم په باب ويلي دي:

په نسيم د محبت لکه ګل وايم
په تجنيس دنصيحت پندونه وايم
رساله به درته وايم په څو وره
و معنو ته يې ميره شه قدم وره

دا رساله ټوله د تجنيس په ادبي صنعت، د مثنوي په شعري قالب ويل شوې ده (۴۲)

## ۳_ څلويښت حديثونه :

دا اثر تر اوسه نه دی چاپ شوی، ارواښاد پوهاند حبيبي لومړی ځل په ۱۳۱۷ لمريز کال دعبدالقادر خان ختټك دديوان په سريزه او بيا وروسته د پښتانه شعراء په لومړی ټوك، دعبدالقادر خان د ژوند ليك په ترڅ کې ددې اثر په باب يادونه کړې ده ، وروسته سرمحقق زلمی هيواد مل د پښتو ټولنې دخطي نسخو په مجموعه کې ددې اثر يوه نسخه موندلې، هغه يې نقل کړې اوپه ۱۳۶۸ لمريز کال يې په فرهنګ مجله کې يوه مقاله پرې ليکلې ده . دنومورې د څرګندونو له مخې عبدالقادر خان په دغه رساله کې دحضرت محمد صلی الله عليه وسلم څلويښت حديثونه دمثنوي په کالب کې نظم کړي، د بيتونو شيمره يې ۹۴ ده . ددې رسالې يو بله نسخه د پيښور پښتو اکيډيمی د خطي نسخو په مجموعه کې هم شته . فقير محمد عباس قادريه پخپل اثر اسماء الحسنیٰ کې دعبدالقادر

خان له دغې رسالې څخه دڅلورو حدیثونو پښتو ژباړنې راوړي دي.

ددې رسالې یو تمهیدي بیت دادی:

مؤمنانو ته بایده دي چې دا حدیث په یادکا
ګنهګار عبدالقادر دې په اخلاص په دعاښاد کا(۴۳)

## ۴_ قصیده برده :

دا عربي قصیده چې امام ابو عبدالله شرف الدین البوصیری ( ۶۰۸- ۶۹۵هـ .ق) په ۶۵۹ یا ۶۶۰ هجري قمري کال په نظم کړې ده ، عبدالقادر خان خټك هم د قصیدې په کالب کې په نظم په ۱۶۵ بیتونو کې ژباړلې ده د ښاغلي سرمحقق هیواد مل د څرګندونو له مخې ددې اثر دوی قلمي نسخې یوه داروانښاد محمد نواز خټك په کتابتون او بله په برټش موزیم کې شته،چاپ شوې هم دي ، یو ځل په ۱۳۰۵ هـ ق په ډهلي او بل ځل په ۱۳۴۵ هـ ق په لاهور کې . همدارنګه پیاوړي لیکوال او څېړونکي ښاغلي حبیب الله رفیع ددې قصیدې متن د چاپي او قلمي نسخو له مخې چاپ ته برابر کړی دی.

## ۵_ یوسف زلیخا :

دحضرت یوسف(ع)زلیخا کیسه، چې په قرآن عظیم الشان کې ورته احسن القصص ویل شوي او دنړۍ د ډیرو لیکوالو له خوا له ځینو افسانوي بیانونو سره په نظم او نثر لیکل شوې ده.

په پښتو ژبه کې ددې کیسې ژباړه عبدالقادر خان خټك په ۱۱۱۲ هجري قمري کال د مولانا نورالدین عبدالرحمن جامي ( ۸۱۷- ۸۹۸ هـ ق ) له پارسي یوسف زلیخا څخه د مثنوي په کالب کې کړې ده .

دعبدالقادر خانؒ ددې منظومې کیسې د بیتونو شمیره په ادبي څېړنو کې د ۴۰۰۰ په شاوخوا کې ښودل شوې ده .

ددې کیسې قلمي نسخې په افغانستان ، کوزه پښتونخوا او دنړۍ په نورو هیوادو نو کې ډېرې موندل کیږي او تر اوسه دوه ځله چاپ شوې ده: لومړی ځل په کابل کې د امیر عبدالرحمن خان دواکمنۍ په مهال د نوموړي امیر په حکم په ۱۳۱۵ هـ ق او بل ځل په ۱۳۴۱ هـ ق کال د کندهار د کتابونو د سوداګرو له خوا په لاهور کې چاپ شوې ده. منتخبات یې د ډورن په پښتو منتخبات ، او دراورټي په ګلشن روه کې هم چاپ شوي دي . ددې کیسې څېړنیز انتقادي متن د برابرولو کار څو کاله دمخه ښاغلي حبیب الله رفیع پیل کړی و، خو د ثور د غمیزې په بهیر کې دهجرت له امله ورڅخه نیمګړی پاتې شو. وروسته بیا دافغانستان دعلومو اکاډمۍ دعلمي غړیو نورالله ولسپال او عبدالمتین متین په ګډو هلو ځلوچاپ ته چمتو شو، خو تر اوسه د چاپ وياړ نه دی ورپه برخه شوی.

## ۶_ ګلدسته :

عبدالقادر خان خټكؒ د شیخ سعدي ( رح) مشهور اثر ګلستان په پښتو ژباړلی او هغه یې " ګلدسته " نومولی دی. د ګلدستې په سریزه کې د نوموړي له څرګندونو څخه جوتیږي

چې ددغه اثر ژباړه یې په نوښار کې د استوګنې په مهال ، د ۱۱۲۴ هـ ق کال درجب په میاشت کې پیل کړې او دروژې دمیاشتې په ۲۴ نیټه یې پای ته رسولې ده .(۴۴)

په ګلدسته کې د عبدالقادر خان خټک له دې لاندې څلوریزې څخه برسیره ه پردې چې دکتاب د ژباړې کال معلومیږي ، دا هم څرګند یږي چې د ګلستان ټول مطالب یې نه دي ژباړلي:

زرسل څلیر یشت د سن کلونه
له ګلستا نه چې د ا ګلو نه
ټول شوو ترې جوړه چې ګلدسته شوه
یاد ګار به پاتې شي مونږه به ځونه

استاد پوهاند عبدالشکور رشاد چې ګلدسته یې دسعدي له ګلستان سره پرتله کړې د ګلشن روه د سریزې په ۵۸-۵۹ مخونو کې یې دخپلې پرتلنې پایله دا سې لیکلې ده :

" دګلدستې چاپي نسخه چې له ګلستان سره پرتله سوې ده ، په لومړي باب کې څلور، په دوهم باب کې یو ، په دریيم باب کې څلور ، په څلورم باب کي یو، په پنځم باب کې یو، په شپږم باب کې دوه، په اووم باب کې یو حکایت ، ټول څوارلس حکایتونه او دغه راز په اتم باب کې اته ویشت حکمتونه نشته . "

دګلدستې قلمي نسخې له افغانستان ، کوزې پښتونخوا او هند برسیره د نړۍ په نورو هیوادونو کې هم شته :

تر ټولو معتبره او ډيره ارزښتمنه نسخه يې هغه ده چې له ژباړې څخه يو نيم يادوه كاله وروسته په ( ۱۱۲۶ هـ ق كال ) قطب الدين نومي خطاط خطاطي كړې او اوس د پيښور په اسلاميه كالج كې خوندي ده . يو ه بله نسخه چې د توريالي او فرهنگپال شخصيت حافظ رحمت خان ( ۱۱۸۸ هـ ق شهيد ) له پاره ليكل شوې اوس درامپور په رضا لايبريرۍ كې ده . يوه نسخه يې د پښتو ټولنې (اوس دافغانستان دعلومو اكاډمۍ) په كتابتون كې شته ، دو نسخې يې په انگلستان او يوه يې د پيښور پښتو اكيډيمۍ په كتابتون كې په ۱۴۱ نومره خوندي ده . دغه نسخه چې دختيكو په ځنځيري ليكدود ليكل شوې، ۳۵۵ مخونه لري، د پاى له خوا نيمگړې ده ، نو ځكه يې دخطاط نوم او دخطاطۍ كال نه معلوميږي . البته په متن كې يې يو مهر شته چې دامان الله ختيك نوم او ۱۱۹۱ هـ ق كال پكې ليك دى او په دې مو پوهوې چې دا نسخه دمخه خطاطي شوې او دغه مهال دامان الله ختيك په ملكيت كې وه (۴۵)

دگلدستې دمتن ځينې منتخبې برخې لومړى ځل جارج راورټي ( ۱۸۲۵- ۱۹۰۶ م ) په خپل اثر گلشن روه او ميراحمد شاه رضواني په شكر ستان افغاني كې چاپ او خپرې كړې دي.

دگلدستې متن د پيښور د پښتو اكيډيمۍ له خوا داروانښاد ډاكتر عظيم شاه خيال بخاري له يوې مفصلې مقدمې سره لومړى ځل په ۱۹۶۱ م كال چاپ او خپور شوې دى.

. ددغه اثر څيړنيز متن څو كاله دمخه د پښتو ټولنې غړي څيړونكي عبدالمتين متين د پيښور د پښتو اكيډيمى د چاپي

نسخې ، د پښتو ټولنې او رضا لایبریری خطي نسخو او دګلشن روه د منتخباتو له مخې چاپ ته برابر کړی و [۴٦]، البته د یادوني وړ ده چې ددغه متن څه برخې د ثور د غمیزې د پیښو په بهیر کې ضایع شوي دي. او له نوي سره څیړنیز کار ته اړتیا لري.

# دګلدستې دا متن

عبدالقادر خان ختکؒ د ګلدستې ددرې سومې کالیزې په مناسبت دعلمي-څېړنیز سیمینار دانسجام کمسیون پخپله لومړنۍ د۶ ر۱۱ ر ۱۳۸۲ نیټې غونډه کې پرېکړه وکړه ، چې د ګلدستې انتقادي متن دې د پېښور **اسلامیه کالج دقلمي** نسخې له مخې ، چې له ژباړې څخه یو نیم یادوه کاله وروسته ( ۱۱۲۶ ه.ق کال ) خطاطي شوې او په موجودو نسخو کې تر ټولو غوره او معتبره ګڼل کېږي، ترتیب او ددغه سیمینار په مناسبت چاپ او خپور شي.

ددې علمي چارې د سر ته رسولو غږ پر ما وشو. ما په ډېره خوښۍ ومانه. کله چې لاس په کار کېدم یوه لویه ستونزه ددې علمي چارې د سر ته رسولو په وړاندې وه او هغه دا چې دګلدستې چاپي نسخه خو زما په واك کې وه. مګر د اسلامیه کالج د قلمي نسخې د مایکروفلم او یا نقل تر لاسه کول اسانه کار نه وو، ځکه ددواړو فرهنګي مرکزونو تر مینځ، خو لا فرهنګي اړیکې څه چې ددواړو هیوادونو( افغانستان او پاکستان) ترمنځ په دولتي سطحه رسمي فرهنګي اړیکې او راشه درشه نه وه او ددغه علمي تعلیمي او فرهنګي مرکز له استادانو سره غیر رسمي ځانګړو تماسونو او ډېرو هلو ځلو په

نتیجه کې هم په دې بریالی نشوو چې ددغه نسخې کوم نقل تر لاسه کړو، نو دغسې دغه چارتر ډیرې مودې له خنډ او ځنډ سره مخامخ شوه. دیادونې وړ ده چې ددغه اثر څېړنیز متن څوکاله دمخه د علومو اکاډمۍ دغړي څېړونکي عبدالمتین متین له خوا د چاپي نسخې،د پښتو ټولنې د کتابخانې د نسخې او دهنددرضا لایبررۍ دقلمي نسخې او په ګلشن روه کې د ګلدستې دمنتخباتو له مخې ترتیب شوی و ، خو د ثور غمیزې د پیښو په بهیر کې یې ځینې برخې ضایع شوې وې، له نوي سره یې څیړنیز کار غوښت او په لنډ تنګ وخت کې د سیمینار په مناسبت چاپ ته نشو چمتو کیدای، نو ځکه په دې هوډ او تکل شوو چې ددغه ارزښتناك اثر متن باید د سیمینار په ویاړ دهمدې موجودې د پیښور پښتو اکیډیمۍ د چاپي نسخې له مخې ترتیب او خپور شي.په دې ډول د ګلدستې د متن دڅلورم چاپ او خپرولو له پاره داپریکړه وشوه چې متن باید له پیښورۍ پښتو لیکدود څخه دافغانستان پر معیاري پښتو لیکدود راواړل شي،چې زموږ لوستونکو ته پرې، چې زیاتره له پیښورۍ پښتو لیکدود سره پوره آشنایي نه لري، د پوهیدنې چارې اسانه شي او هم دې د اثر دژباړن عبدالقادر خان ختکؒ پر ژوند پیښو، علمي فرهنګي شخصیت، آثارو او افکارو یوه څیړنیزه لیکنه له متن سره دسریزې په توګه مله شي. د کمیسیون له پریکړې سره سم مې دا چار تر سره ، متن مې ترتیب کړ او دادی چاپي نسخه یې تر تاسو دررسیده.

دلته دهغې چاپي نسخې د پيژندنې په اړه، چې دا متن ورڅخه ترتيب شوی او هم دهغو ستونزو په اړه چې ددې چارې د سر ته رسولو په بهير کې ورسره مخامخ شوي يم ، دا لنډې او ځغلندې څرګندونې مناسبې ګڼم:

دعبدالقادر خان خټک دا ارزښتناک اثر ( ګلدسته ) . لومړی ځل د پيښور پښتو اکيډيمۍ له خوا د پياوړي عالم او ژبپوهاند اروابناد ډاکتر عظيم شاه خيال بخاري (۱۹۱۷-۱۹۹۰ م) په مقابله ، تصحيح او زيار له يوې مفصلې علمي څيړنيزې سريزې سره چاپ ته چمتو اولومړی ځل په ۱۹۶۱ م کال په ۲۹۲ مخونو کې خپور شوی دی. وروسته بيا په ۱۹۸۱ م او ۱۹۸۹ م کلونو کې دعلمي او تعليمي اړتيا له مخې ددويم او دريم ځل له پاره هم چاپ شوی دی.

اروښاد بخاري چې ددې متن په برابرولو ( مقابله ، تصحيح) کې کوم زيار او کړ او ګا للی دی ، هغه موږ ته د ګلدستې په چاپي متن کې ددوی له مفصلې عالمانه سريزې او په لمن ليکونو کې د مقابلې د پايلو ( نتيجو ) د ښودلو او نورو بيلا بيلو توضيحاتو څخه ډير ښه را څرګند يدای شي.

دوی ته چې دعبدالقادر خان خټک له ژباړلي متن (ګلدستې ) سره د سعدي دګلستان د بيلا بيلو نسخو دمقابلې په نتيجه کې څه کمی يا زياتی ورڅرګند شوی هغه يې په متن کې په شميرو په نخښه کړی او په لمن ليک کې يې دهغو له پاره دا لاندې توري کارولي دي:

( ز ) : زیاتي عبارت یا شعر چې ژباړن له ځانه ورزیات کړی دی. ( دغه عبارت یې په متن کې په غبرګو لیندیو کې نیولی دی )

( ح ): دلته ژباړن له اصلي متن څخه څه عبارت حذف کړی دی ( اصلي عبارت یې په لمن لیك کې راوړی. )

( ﻫ ) : دا نخښه یې هلته کارولې چې ژباړه له اصل څخه په بل رنګ ده . اصلي عبارت داسې دی .(دګلستان هغه اصلي عبارت یې هم راوړی دی)

دځینو توضیحاتو په اړه یې خپل توضیحات او څرګندونې هم په متن کې په شمیر و په نخښه کړي او په لمن لیک کې یې راوړي دي .

دګلدستې چاپي متن ته په کتنه څرګندیږي چې له دوو نسخو څخه چاپ ته برابر شوی دی. اوراوښاد بخاري د متن په لمن لیکونو کې هغه یوه داسلامیه کالج او بله د برټش موزیم د نسخې نقل ښودلې ده، خو په دې لړ کې دمتن څېړنې، مقابلې او ترتیب د اوسنیو معاصرو اکاډمیکو اسلوبونو او لارو چارو له مخې دا نیمګړ تیا ترسترګو کیږي چې ددغو دواړو نسخو د پیژندنې او ځانګړنو ، لکه د خطاطۍ نیټه لیك ، لیکدود او نورو په باب په سریزه کې هیڅ یادونه نه ده شوې. له ځینو چاپي او د پروفو داصلاح او سمون له تیرو تنو برسیره، چې خامخا د متونو په چاپ کې لږ و ډیرې کیږي، په املا ء او لیکدود کې دیو ځانګړي معیار نشتوالی یوه بله ستونزه ده چې دچاپي متن

په بیلا بیلو برخو کې شته او کله کله خو تردې اندازې ده چې دمتن تاریخي اصالت یې لږ و ډیر زیانمن او شکمن کړی دی.

له دې ټولو ستونزو سره سره ماله پیښوري پښتو لیکدود څخه په افغاني اوسني لیکدود دمتن را اړولو په مهال تر خپلې وسې دا هڅه کړې چې دا چار داسې ترسره شي چې دمتن تاریخي اصالت ته کوم زیان و نه رسیږي. دمتن په لمن لیکونو کې چې د سعدي (رح) دګلستان څینې منظومې او منثورې برخې راوړل شوي په هغو کې هم څینې وړې لویې املایي انشایي تیروتنې او ستونزې تر سترګو کیدې، او دا اړتیا وه چې د ګلستان له کومې معتبر ې چاپي نسخې سره پرتله او سمې شوې وای، خو دوخت د لنډ تنګ والي له مخې مې دا کار ونکړای شو. همدارنګه د ګلدستې دچاپې نسخې ، چې دا متن ورڅخه برابر شوی دی ، دوه لمن لیکونه: یو په (۲۵۲) مخ ددي متن(۳۵۳) مخ دوهم نومره لمن لیك او د(۲۵۶) مخ .اتمه نومره لمن لیك ددی متن (۳۵۸ مخ)دویمه نومره لمن لیك چې دمکرر چاپ له امله سولیدلی.تت شوي او د لوستو وړ نه وو. له چاپ څخه پاتې شول.

په هر صورت د متونو دچاپ او خپروني اوسنیو اکاډیمیکو اسلوبونو ته په کتنه او دعلمي، ادبي تاریخي متونو د بیا چاپ او خپرولو په چارو کې دامانتدارۍ اصل ته په پاملرنه ډیره هڅه شوې چې د ګلدستې دا متن دیو علمي اکاډمیك امانت په توګه دادب او مطالعې مینه والو ته وړاندې شي.

زما له هاند او هڅې سره سره هم ښايي ځينې ورې لويې املايي او چاپي تيروتنې په متن کې پاتې وي، که دلوستنې پرمهال په مخه درځي، نو له نابرابرو حالاتو او امکاناتو له امله به مې معذور وګڼئ او دهغو په اصلاح او سمون به مې دخپل احسان پور ورى کړئ. په داسې حال کې چې دګلدستې د متن د مخکنيو چاپو نو په اړه د پيښوردپښتو اکاډمی، په ځانګړې توګه داروانښاد ډاکتر عظيم شاه خيال بخاري دعلمي اکاډميك کار په درناوي ستاينه او يادونه کوم، نومورې اورانښاد ته دلوی خدای (ج) په دربار کې د بخښنې او مغفرت په دعا خپلې خپلې خبرې پای ته رسوم.

په درښت

محقق سيد محی الدين هاشمي

د پښتوخېړنو دنړيوال مرکز دتأليف او ترجمې دڅانګې آمر

احمدشاه بابا مينه - کابل

دَتلې شلمه - ۱۳۸۳ لمريز کال

## اخځلیکونه :


۱_ عبدالقادر خان ختټک ژوند ، فن او شخصیت ، (دسیمینار دمقالو مجموعه) دسرمحقق زلمي هیوادمل مقاله: فرهنګیالی عبدالقادر ختټک، ۲۷ مخ .

۲_ افضل خان ختټک، تاریخ مرصع، ددوست محمد خان کامل په زیار، یونیورستي بك ایجنسي پیښور، ۱۹۷۴ ع ، ۲۵۹ مخ .

۳_ پورتنی اثر ، پورتنی مخ .

۴_ عبدالقادر خان ختټک، ګلدسته ،دخیال بخاري په مقابله او زیار، پښتو اکیډیمی پیښور، ۷۶مخ .

۵_پورتنی اثر ، ۷۸مخ .

۶_ عبدالقادر خان ژوند ، فن او شخصیت، ۳۹مخ

۷_ پورتنی اثر ، یادشوي مخ .

۸_ همدغه اثر ، ۴۵-۴۶ مخونه .

۹_خوشحال خان ختټک، فراقنامه ، دزلمي هیواد مل په زیار، کابل پوهنتون ، ۱۳۶۴ هـ ش ، ۳۸ مخ .

۱۰_۱۱_ ګلدسته ، مقدمه ۷۲-۷۹مخونه .

۱۲_ دعبدالقادر خان ختټک ژوند ، فن او شخصیت ، یاده شوې مقاله ، ۴۷ مخ.

۱۳_ پورتني اثر، دكانديد اكاډميسن محمد صديق روهي مقاله. دعبدالقادر ختك د شخصيت انځور دهغه دديوان په هنداره كې ، ۱۲ مخ .

۱۴_ محمد هوتك، پټه خزانه ، دويم چاپ. دپوهاند عبدالحی حبيبي تحشيه او تعليقات... دپوهنې وزارت ۱۳۳۹ ش ۱۲۰ مخ .

۱۵_داستاد روهي ياده شوې مقاله، ۱۲ مخ .

۱۶_ ګلدسته، ۷۳ مخ .

۱۷_ دعپدالقادر خان ختك ديوان ، تحقيق او ترتيب پروفيسور جهانزيب نياز ، پښتو اكيډيمي پېښور . ۲۰۰۴ م ، ۸۱مخ .

۱۸_ ګلدسته ۷۲ مخ .

۱۹_ د سرمحقق زلمي هيواد مل ياده شوې مقاله. ۵۲ مخ.

۲۰_ دعبدالقادر خان ختك ديوان ، ياد شوی چاپ، ۱۳ مخ .

۲۱_ عبدالقادر خان ختك ژوند ، فن او شخصيت. ۵۵ مخ .

۲۲_سيد محی الدين هاشمي، ادب پوهنه، داريك د ګرځنده كتابتونو اداره،پېښور، ۱۳۸۲ لمريز كال، ۸۸-۸۹ مخونه .

۲۳_ عبدالقادر خان ختك ژوند فن او شخصيت . ۹۳-۹۴ مخونه .

۲۴_ محمد هوتك . پټه خزانه، ۱۲۲ مخ .

۲۵_دعبدالقادرخان خټك ديوان، دپروفيسور جهانزيب سريزه.

۲۶_داشرف خان هجري ديوان ، دهميش خليل په زيار، پيښور ۱۹۵۸ م، ۲۴۸ مخ.

۷۷_ پټه خزانه ۱۲۰ مخ .

۲۸_ دعبدالقادر خان خټك ژوند فن او شخصيت، ۱۱۳ مخ .

۲۹_ پورتنی اثر، ۱۱۱ مخ .

۳۰_ همدغه اثر، ۱۱۴-۱۱۸ مخونه .

۳۱_ عبدالحی حبيبي، دعبدالقادر خان خټك ديوان مقدمه ، ۱۳۱۷ لمريز کال، ۱۵ مخ.

۳۲_دعبدالقادر خان خټك ژوند ، فن او شخصيت ، ۱۲۰ مخ .

۳۳_ پورتنی اثر ، اروابناد روهي مقاله، ۱۴ مخ .

۳۴_ ډاکتر راج ولي شاه خټك ، دعبدالقادر خان خټك ديوان ، پيش لفظ، پښتو اکيډيمی پيښور، ۲۰۰۲ م کال، ۳ مخ .

۳۵_ دعبدالقادر خان خټك ژوند ، فن او شخصيت ، ۱۶-۱۷ مخونه .

۳۶_دسرمحقق مرستيال ، نصرالله ناصر، دګلدستې دژباړن عبدالقادر خان خټك لنډ ژوند ليك، دسيمينار مقاله .

۳۷_ دعبدالقادر خان ختك ژوند ، فن او شخصیت ،
۴۳- ۴۴ مخونه .
۳۸_ دعبدالقادر خان ختك دیوان ۲۰۰۳ م. ۹۷ مخ .
۳۹_ پته خزانه، ثلورم چاپ، ۶۵مخ .
۴۰_ دعبدالقادر خان ختك ژوند ، فن او شخصیت ،
۵۸ مخ .
۴۱_پورتنی اثر، پورتنی مخ .
۴۲_ دعبدالقادر خان ختك ژوند ، فن او شخصیت ،
۵۸ مخ.
۴۳_ همدغه اثر ۷۷- ۸۰ مخونه .
۴۴_ ګلدسته، دعبدالقادر خان ختك سریزه، ۷۴ مخ .
۴۵_داستاد حبیب الله رفیع لیکلي یادښتونه .
۴۶_ دعبدالقادر خان ختك ژوند فن او شخصیت
دسرمحقق زلمي هیوادمل مقاله ،۸۵-۸۸ مخونه .

# مقدمه

ډاکټر عظیم شاه خیال بخاري

پېښور پښتو اکېډېمي

۱۹۶۱ م کال

# مقدمه

په ایشیایي ژبو کې د فارسي شاعرۍ لوړ والی او عظمت هر چا ته معلوم دی. ولې په دې شاعرۍ کې هم دایران خلکو درې تنه دټولو نه اوچت ګڼلي دي. او دغه درې تنه فردوسي، انوري او سعدي دي . لکه چې د یوې پخوانۍ قطعې نه څرګنده ده چې:

در شعر سه تن پیمبرانند　　هر چند که لانبی بعدی
ابیات و قصیده وغزل را　　فردوسي و انوري و سعدي

دا قطعه د ډیرې پخوانۍ زمانې راهیسې د فارسي دادب په تاریخونو کې را روانه ده. دایران خپل عالمان خو دا بالکل درسته ګڼي، ولې مشهور مستشرق ډاکټر براون دفردوسي په شاهنامه او مولینا شبلي نعماني دانوري په قصایدو ګوته ایښې ده . او دادب د پیغمبرۍ وړیې نه ګڼي. ولې د سعدي دغزل دلوړ والی او کمال په حقله ټوله دنیا یوه خوله ده.

دسعدي دغزل آوازه دهغه په ژوند کې یواځې په ایران کې نه وه، ولې په نورو ملکونو کې هم تر لرې لرې رسیدلې وه . او دا یو داسې سعادت او دقدرت یوه داسې ورکړه ده چې ډیرو کمو شاعرانو، ادیبانو او عالمانو ته به خپل ژوند په برخه رسیدلې وي. سعدي یو ګرځنده او سیلانی سړی و اودعمر ډیره برخه یې په سیاحت کې تیره کړې وه او تر لرې لرې ملکونو پورې ګرځیدلی و. هغه چې کوم ملك یا ښار ته،ته، نو نوم به یې وړاندې هلته رسیدلی و. دهغې ځای خلکو به چې ددې سیلاني میلمه نه دوطن پوښتنه وکړه او ده به ورته په جواب کې د شیراز خاوره یاده کړه ،

نو دويم تپوس به دهغوى دا وچې آيا سعدي پيژني؟ يا دسعدي څه كلام به راته واوروې؟ دا و ددې لوړ شاعر عالم د شهرت حال!

دغزل ددې پيغمبر دغه نوم او شهرت د هغه په وخت كې خو دده دغزل په وجه و، او دا دب تاريخونه اوس هم دده دغزل دكمال په صفتونو نه مړيږي، ولې د تعجب خبره داده چې په دې ګرده دنيا كې ځنې نور شاعران، لكه واخلې حافظ دده نه ډير زيات شهرت او مقبوليت لري. بلكه دده ددې لوى نوم او مقبوليت وجه دده دغزل نه زياته دده وركوټى شان كتاب دى، چې"ګلستان"نوميږي.

دګلستان يادې سره ترلې د نظم د بل كتاب " بوستان " تعارف او پيژندګلو كول به داسې وي، لكه چې څوك د نمر د ښودلو دپاره ډيوه بله كړي، ځكه چې دا داسې مشهور كتابونه دي چې د مشرق ټولو اسلامي ملكونو كې د پيړيو پيړيو راسې د اخلاقي ، ديني او ادبي شاهكارونو په حيثيت په درس كې شامل دي او دعلم هر يو " طالب" به دخپل تعليم او زده كړې شروع د" پنج ګنج " او " تحفه " نه پس ددې كتابونو نه كوله . په دې دواړو كې هم دګلستان درجه ډيره اوچته ده . ددې كتاب دادبي لوړ-والي او كمال نه علاوه ددې كتاب اخلاقي او تربيوي اړخ دومره فايده من او موثر دى چې اسلامي دنيا خو يو خواته ، غير اسلامي ملكونو هم ددې داسې قدروكړ، چې ددنيا ډيرو كمو كتابونو ته دغه درجه په نصيب شوې ده .

كه څوك دا وغواړي چې دګلستان په حقله مشرقي او مغربي عالمانو او مترجمينو چې كوم خيالات ليكلي دي، فقط هغه را جمعه كړي. نو هم كه زيات نه وي، نو دګلستان دخپل ضخامت نه به په سل چنده يو غټ كتاب ترې ساز شي.

په دې موقع زه فقط ديو عالم مولينا آزاد يو څو ښكلې جملې وړاندې كوم. هغه په سخندان پارس كې ليكي چې:

" او عجيبه داده چې دعارف نه واخله تر يو عالمه پورې او ديو زاهد پرهيزګار نه واخله تر يو بې حيأ رنده پورې ټول يې لولي. او په خوند خوند يې لولي. دی ( سعدي) دڅه ښكلي طبيعت او مزاج خاوند و، چې شاهانه فقيرانه ، واعظانه او د بزرګانو هسې وعظ و پند، غرض دكوم مضمون قصه چې غواړې پكې ولوله . دده د بيان شو خي په هر حال كې خپل انداز قايم ساتي"

ربنتيا خبره دا ده چې ګلستان ، دفارسي ادب يو تاج محل دی. چې ټوله دنيا يې په حيرت كې اچولې ده . كومې خوبۍ، نزاكتونه او كمال چې په تاج محل كې ليدلی شي هغه واړه په ګلستان كې هم موجود دی. په تاج محل كې مرمر ، اسود ، نيلم ، ياقوت ، زمرد او دغه شان نور بې شميره قيمتي كاڼي په داسې انداز ، ډول او تناسب لګولي شوي دي چې ددې نه غوره ګلكاري او نزاكت كم نه كم تر اوسه د چا په عقل كې نه دی راغلی . همدغه شان په ګلستان كې هم الفاظ ، مركبات ، محاورې ، جملې، اشعار، آياتونه ، احاديث ، مقولې و غيره په داسې موزونيت ، طرز او كمال ځبله تړلي شوي دي چې دنيا ورته حيرانيږي. كه په تاج محل كې داسې باريكۍ ، نازكۍ او زړه راښكونې ګلكاري او انځورونه دي چې فن پرې ناز كوي، نو په ګلستان كې هم د جملو ساخت، دالفاظو جوړښت، سجع، قافيه ، رواني، سلاست او خوږ والی څه داسې سره ترغاړه وتي دی چې موسيقي ترې قربانيږي.

تاج محل كه دسترګو او نظر جنت دی، نو ګلستان دزړه او روح ارم دی. دا هر څه دي، خو لږ شان فرق هم پكې شته . هغه دا چې كيدی شي چې د زمانې يون ، ديو څو پيړونه پس د تاج محل په ښايست كې څه

فرق یا نقص راولي ، نا ، بلکه خدای مکړه، دا هم کیدی شي چې څه نامساعده حادثه ، تاج محل ددنیا د مخ نه بیخي ورکولی هم شي، ولې ګلستان دا یو داسې تخلیق دی چې دزمانې تګ او نامساعده حادثات او حالات پرې هیڅ اثر نه شي کولی. دا یو ابدي ښایست دی. دا په تل تر تله باقي وي . او داسې ښکاري چې ددې شاهکاردتخلیق په وخت د سعدي په خپل ذهن کې هم دغه خبره پرته وه، ځکه خویې ویلي دي:

" برای نزهت ناظران و قسمت حاضران کتاب گلستان تصنیف توانم کردن که با د خزان را بر اوراق او دست تطاول نباشد و گردش زمان عیش ربیعش بطیش خریف مبدل نگردد"

گل همین پنج روز و شش باشد     وین گلستان همیشه خوش باشد

سعدي د ګلستان په لیك کې یو مخصوص انداز لري. لنډ ی لنډې جملې ، پریکړې پریکړې شان عبارت دي، خو خدای پاك یې په ژبه کې داسې نرمي او په خوله کې داسې خوږ والی اېښی دی چې غوټې دریښمو لچې ښکاري. د صنایعو بدایعو دستکاري پکې نه دي شوې او که څه ځای په ځای ددې مثالونه موندی هم شي، نو هغه آمد دی،آورد نه دی، یعنې سعدي د صنایعو بدایعو دراوستو څه خاص التزام نه دی ساتلی . او داسې قسم الفاظ یې پکې په تکلف او زور نه دي استعمال کړی، بلکه په داسې موقعو کې که چیرته داسې الفاظ راغلي دي، نو په دغو ځایونو کې دوی نه زیات مناسب او موزون الفاظ هډو وو نه او همدغه د سعدي کمال دی چې یو لفظ دیوې جملې نه لرې کړی او ددې په ځای څه بل ټکی هلته کښیږدې، نو ددغې لفظ بې شمیره مترادف او هم معنیٰ الفاظو کې به ددغې نه زیات موزون او ښایسته لفظ پیدا نه کړې. او همدغه حال یې د جملو او عبارت هم دی. د مولینا آزاد په لفظو نو کې:

"که چیری په دغه عبارت کې څه نور عبارت ( ان که ډیر ښکلی هم وي)

ځای کړی شي، نو صفا داسې ښکاري چې لکه د بخملو په پرده باندې چا د بانا تو پیوند لګولی وي. "

دموځ جز ، مرصع ، مسجع او مقفي عبارت شروع د سعدي نه ډیر پخوا بدیع الزمان حریري ز محشری او شر ف الدین کړې وه ، او حمیدالدین بلخي د شپږمې صدۍ په منځو ما نه دهغوی په تقلید کې مقامات حمیدي نو مي کتاب ولیکلو او باقاعده یې ددې سبك تشکیل وکړو، ولې په قول دایران د یو نوموړي عالم او فاضل استاد سعید نفیسی:

" سعدي په ګلستان کې مسجع او مقفي عبار ت د ښایست انتهایي درجې ته ورساوه او دا هنر به تل ده سره مخصوص وي. او بل کوم لیکونکی په مسجع مقفي مصنوع و متکلف نثر دهغه ( سعدي) په شان سادګي او رواني کې و نه لیکلی شي. "

او ځنو لوړو شاعرانو او ادیبانو په دې میدان کې څه ځغل هم کړی و، ولی چې سعدي راغی نو دنثر دا خصوصیات یې ( بې د څه تکلفه ) د زمکې نه او چت کړ او د ترقۍ آسمان ته یې دومره هسك کړل چې پخوانې خو څه چې د هغه نه ورستو راتلونکي لوړ لوړ شاعران او ادیبان تر نن ورځې پورې هغې مقام ته ونه رسید ی شو.

دګلستان حیرت انګیز مقبولیت ته د ډیرو لوړو لوړو شاعرانو خوا و غزیده ، او هغوی هم په دې میدان کې یو ن راواخیست چې دسعدي نه وړاندې شي، ولې سره ددې چې هغوی په دغه رنګک کې ډیر ښکلې ښکلې کتابونه ولیکل په دې کې د مولینا عبدالرحمن جامی" بهارستان" د معین الدین "نګارستان" د ټولو نه کامیاب کوششونه دي، ولې دا هم سره دخپل لوړ والي دګلستان ګرد ته هم نه رسي.

شیخ سعدي<sup></sup>(رح) دغه کتاب په کال شپږ سوه او شپږ پنحوس هجري ( ۶۵۶ ه ) کې لیکلی دی . په دغه وخت کې دده عمر تقریباً اویا و کالو ته رسیدلی و. که څه خو شیخ سعدي(رح) له خدای پاك ددی نه پس هم تر ډیره آب و دانه لیکلې وه ، ولې دا عمر هم دښه سپین ږیر توب عمر دی.

علاوه ددې نه شیخ سعدي ددې کتاب دلیك نه درې کاله آگاهو ددنیا دلرې لرې ملکونو او ښاریو د سیل او سیاحت او د اوږدو اوږدو سفرونو نه شیراز ته پستنه راګرځیدلی و، څکه یې په دې کتاب کې د تاریخي اوریدلي او دفرضي قصو نه علا وه ډیرې قصې یې داسې راوړې دي چې دهغه په خپل سر تیر شوي واقعات او تجربې او مشاهدي دي.په دې وجه دا کتاب دشیخ داوږد عملي ژوند د مشاهدو او تجربو یوه خلاصه شان ده. ددې کتاب دلیکلو سبب ښودلو په موقع وایي:

" کلمه چند بطریق اختصار از نوا در وامثال و اشعار و حکایات و سیر ملوک ماضیه درین کتاب درج کردیم، وبرخی از عمر گرانمایه بر خروج موجب تصنیف کتاب گلستان این بود و بالله التوفیق. "

شیخ سعدي دا کتاب په اتو بابونو ویشلی دی. او په اتو بابونو کې د ویشلو تو جیه یې داسې کړې ده :

" تا مرا این روضه رعنا و صدیقه علیا چون بهشت باب اتفاق افتاد"

هر یو باب یو خاص عنوان لري او په دې کې ددغې عنوان سره مناسبې لویې وړې قصې یې راوړې دي. په اولني باب کې یو څلویښت ، په دویم کې یو کم پنځوس، په دریم کې یو کم دیرش، په څلورم کې څوارلس، په پنځم کې یوولس، په شپږم کې اته ، په اووم کې نولس قصې او په اتم باب کې شپږ د پاسه سل نصیحتونه ، پندونه او حکمتونه دي دکتاب په سرکې یوه ښکلې دیباچه د کتاب لیکلې، اسباب د کتاب

انتساب او دخپل ممدوح حالات ليکلي دي. او په آخر کې يې يوه مختصر شان خاتمه ورکړې ده.

لکه څرنګ چې دګلستان په مختلفو بابونو کې د قصو شميره يو شان نه ده، همدا رنګه په هر باب کې د قصو اوږدوالی هم يو شان نه دی. ځينې قصې خو په کې په کرښه دوو کې خلاصې شي. لکه:

" يکی از پادشاهان پارسای را ديد و گفت: هيچت از ماياد می آيد، گفت: بلی، وقتيکه خدای را فراموش کنم!"

خو ځينې قصې په څو څو مخونو خورې وي. لکه دهغه يو بې کاره او بيزوزګار دآشنا قصه يا دسعدي د چا بل سړی سره د مجادلې واقعات، په ځينو ځايونو کې په قصه کې نورې نورې قصې هم راغلې دي. او ځينې پکې ښکلې ډرامايي انداز کې ليکلې شوې دي، لکه دهغې پاچا قصه چې يوه شپه يې ده ته " در عشرت کده روز کرده" په مستۍ کې وايي:

"ما را بجهان خوشتر ازين يکدم نيست

کز نيك و بد انديشه و از کس غم نيست"

ددغې دنګ محل د لاندې يو بر بنډ لغړ فقير دغه آواز اوري او دلاندې نه ورته په استغنا سره داسې جواب ورکوي:

" ای آنکه باقبال تو درعالم نيست

گيرم که غمت نيست غم ما هم نيست"

باچا په دې فی البد يهه او ښکلي جواب خوشحاله شي، او دانعام ورکولو په غرض دروپو يوه هميانۍ واخلي او دمحل د کړکۍ نه پرې آواز وکړي چې:

" دامن بدار!"

دغه بر بند لغړ فقير و رته په جواب کې وايي چې:

" دامن از کجا آرم که جامه ندارم! "

بادشاه په دې جواب لا متاثره او خوشحاله شي او یو خلعت هم ورو بخښي. علاوه داخلاقي نتايجو نه چې کومې ددې قصې نه اخذ کيدی شي، ددې قصې ډرامايي رنګ ځومره ښکلی او زړه راښکونکی دی، او بيا ورسره ځو مره فطري هم دی! مختصری اشارې او مختصرې مکالمې دي، ولې دلوستونکي په ذهن کې دباچا محل ، په محل کې د باچا د عيش و عشرت او مستي، ددې محل د لاندې يو بر بنډ لغړ فقير ولاړه ، بيا ددوی داسوال و جواب ، دفقير استغنا چې بدمست باچا ته وايي ، چې که ته غم نه لرې، نو زه هم لتانه کم نه يم بيا دانعام ورکولو منظر، دمحل په کړ کۍ کې د باچا هميانۍ په لاس راښکاره کيدل ، فقير ته ويل چې لمن ونيسه او دفقير جواب ورکول چې جامه نه لرم، لمن دکومې راوړم؟ وغيره وغيره . دا ټول واقعات د سينما دپردې غوندې په خپل اصلي او رنګين شکل کې تير شي. يا داسې ښکاري چې د ټياټر په سټيج باندې دغه منظر لګياه دی پيش کيږي، نه، بلکه يو لوستونکی داسې محسوسوي چې په دغه توره شپه کې هغه چرته پټ ولاړ دی او دا ټول واقعات لګيا دي په خپلو سترګو ويني او دا ټولې خبرې په خپلو غوږو آوري، او هم دغه منظر نګاری کمال ګڼلی شي.

د شيخ سعدي(رح) د لنډ و، لنډ و او پريکړو، پريکړو جملو يا د مسجع ، مقفي او د روان عبارات تعريف به څوك څه وکړی شي. چې علامه سعدالدين تفتازاني غوندې لوړ او نوموړی عالم هم وايي چې زما ټول مطول[۱] دې رانه واخستی شي او دسعدي يوه فقره " از بستر نرمش به

۱ ـ دعلامه تفتازاني د يوشاهکار کتاب نوم دی چې په علم بيان او معاني وغيره يې ليکلی دی.

خاکستر ګرمش نشاندند" دې راله را کړې شي. د شیخ سعدي په ګلستان کې دا یوه فقره د قدر وړه نه ده، بلکه په ټول ګلستان کې داسې ډېر ګلونه خواره واره پراته دي. زه به ترې هسې د مثال په طور یو څو جملې دلته وړاندې کړم چې لوړو لوړو ، عالمانو او دفصاحت او بلاغت پوهانو پرې سرونه د تحسین خو ځولي دي.

د بادشاهانو د مزاج د تلون په حقله یې څه ښکلې او حقه خبره کړې ده :

" وقتی به سلا می بخندند و گاهی بدشنامی خلعت دهند."

دیو فقیر په حقله وایې چې " سر به آستان کعبه می مالید و می نالید"

دحج په لار یو بیابان ته رسیدلی دی . چې هلته ستړی ستومانه شوی دی او دمه کول غواړي،یو ملګری ورته ددغې ځای د شو کمارو و غیره په حقله وایي:

" ای برادر! حرم درپیش است و حرامی از پس، اگر رفتی بردی و اگر خفتی مردی"

دیوه شوم سړی نقشه یې په څه ښکلو الفاظو کې راښکلې ده .

" نانی از دست بجانی ندادی و گربه ابو هر یره را به لقمه ننواختی و سگ اصحاب کهف با استخوانی ننواختی فی الجمله خانه اور ا کس ندیدی در گشاده و سفره او را سر گشاده "

یو بد آوازه ملا چې په زوره زوره یې قرآن وې، دهغه په حقله وایي:

" گفت از برای خدا می خوانم " بل ورته ووې چې "از برای خدا که مخوان "

دښایست تعریف کوي... "جمالیکه زبان فصاحت از بیان صبا حت او عاجز آید"

سړی چې بال بچه دار شي، نو ډیری ذمه داری یې په سر شي او ژوند یې په یوه نو ې لار روان شي. ددی په حقله د یو بال بچه دار سړي د خولې وایې چې " چون کودکان آوردم دیگر کودکی نکردم."

دخپلې یوې جګړې نقشه داسې را کاږي چې : "د شنام داد سقطش گفتم . گریبانم درید ، زنخدانش شکستم" د فقیرانو ګدا ګر و حال به څوك ددی نه په ښه او واضحه طریقه بیان کړی شي؟ "طائفه هستند قاصر همت کافر نعمت ، که ببرند و نهند و نخورند و ندهند ."

ددې په مقابله کې د ورکړې په حقله وایې چې: " نیکبخت آنکه خورد و کشت و بد بخت آنکه مردو هشت! "

په ځینو ځایونو کې یې تقریباً یو شان خیال څرګند کړی دی، ولې دا تکرار او اعاده نه ښکاري ، بلکه په هره موقع جدا، جدا خوند لري. په یو ځای کې وایي:

" دو کس مردند و تحیر بردند: یکی آنکه داشت و نخورد و دیگر آنکه آموخت و نکرد."

په یو بل ځای کې وایي:

" دو کس رنج بیهوده بردندو سعی بی فایده کردند: یکی آنکه اندوخت و نخورد و دیگر آنکه آموخت و نه کرد."

د بادشاهانو طمع او هوس،او ددنیا نا پایداري او بې وفایي داسې ښکاره کوي چې یو سړي یو بادشاه په خوب کې اولید چې نوروجو د یې خاوری شوی و ، خو سترګی یې لاهغه شان غړیدې . ددې خوب تاویل یا تعبیر هیچا و نه کړی شه . یو فقیر یې تا ویل داسې وکړ چې:" چشمش هنوز نگران است که ملکش با دگران است:"

دیو شوم په حقله وایي:" زراز معدن بکان کندن بدر آید و از دست بخیل بجان کندن! "

وغیره - و غیره...

دا مثالونه خو یو موټی وولی خرواره . خو ددې نه هم ښه بر سیره کیږي چې د سعدي په جملو کې څو مره سادګي ده ، ښایست دی ،

دلکشي ده ، وقار دی او سره ددې وقاره پکې راوني، وزن او موسیقي ده
. او دا ټولې خو بې او ټوله ښکلا یې بې د څه تکلف او تصنع نه پکې پیدا کړې ده . ددې عبارت د لوستو په وخت داسې معلومیږي چې یو بې تکلفه دوست را ته مخامخ ناست دی او خبرې کوي. خبرې نه، بلکه مرغلرې دوروي. دهغه په وینا کې یوه خاصه شوخي، یو ښکلی ظرافت دی چې د لوستو نکی په زړه باندې یو خوند ناکی کیف او اثر غورځوي او دهغه د پندو نصیحت دا خشکې او ترخې خبرې هم لکه د قند هسې خوږې لګي. سعدي پخپله هم د گلستان دې خصوصیت طرف ته اشاره کړې ده او ورسره ددغې طرز د اختیار ولو په حقله تو جیه هم کړې ده چې د معترضینو او نکته چینانو خو له بنده شي، هغه وایي:

" غالب گفتار سعدي طرب انگیز است و طیب آمیز، کوته نظران را بدین علت زبان طعنه دراز که مغز دماغ بیهوده بردن و دود چراغ بیفایده خوردن ، کار خردمندان نیست، و لیکن به رای روشن صاحبدلا ن که روی سخن در ایشان است . پوشیده نماند ، که در موعظتهای صافی در سلک عبارت کشیده است و داردی تلخ نصیحت بشهد ظرافت بر آمیخته ، تا طبع ملول انسان از دولت قبول محروم نماند - الحمد ا للهِ رَبِّ العَالمِین "

د نثر ددی ټولوخوبو او کمالاتو نه علاوه چې نثر یې پرې هم لکه د نظم خوږ او دزړه راښکونی کړی دی او دلوستونکي پرې د نظم سود کیږي. په دې قصو کې یې ځای په ځای په مناسبو او موزونو موقعو اشعار، قطعې، رباعیانې ، او مثنوي گانې... داسې لګولي دي ، لکه چې ماهر زرګر د سره زرو په کالو کې سو چه زلقیدو نکي غمي لګي، دانه ، بلکه د عبارت دغه کالي یې د آیاتو نو، حدیثونو ، عربي مقولو او په اشعارو یې ښایسته کړي دي.

دگلستان د عالمگیر مقبولیت یوه غټه نخښه داده چې ددې کتاب اکثرې فقرې ، شعرونه او مصرې ، د فارسي نه علاوه په نورو مشرقي ژبو کې هم لکه د متلونو او مثالونو را وړی شي، لکه واخلئ:

" آن را که حساب پاک است از محاسبه چه باک "، "من آنم که من دانم"، "عطائی او به لقای او ( بخشیدم )" "مشک آنست که خود ببوید نه که عطار بگوید". "من نکردم شماحذر بکنید." "درویش هر کجا که شب آمد سرای او ست". "خبر بد به بوم شوم گذار"،" حاجت مشاطه نیست روی دل آرام را" "دهن سگ به لقمه دوخته به" - یا دا شعار چې:

| | |
|---|---|
| این سعادت بزرو بازو نیست | تا نه بخشد خدای بخشنده |
| گر بر سرو چشم من نشینی | نا زت بکشم که نا ز نینی |
| به نادان آنچنان روزی رساند | که دا نا اندران حیرا ن بما ند |
| ترسم بکعبه نرسی ای اعرابی | کین راه که تومیروی بترکستان است |
| اسپ تازی اگر ضعیف بود | هم چنا ن از طویله خر بِه |

و غیره و غیره ...

گلستان لکه چې وړاندې وویلی شو، په اتو بابونو کې ویشلی شوی دی . په دی اتو بابونو کې یې ، که دهر ې زمانې نه وي، نو کم نه کم د هغې وخت د ضرورت او اقتضا مطابق ټولې خبرې پکښې راجمع کړې وې ، ځکه دهر عمر ، هر طبیعت ، هر مزاج او دهرې طبقی او پایې خلك ترې د خپل خپل ضرورت مطابق سبق اخلي ، او په ډیر خوند خوند یې اخلي، ولې سره ددې هم ، دنوې زمانې دې نوی رجحانا تو تر لاندی خلق د گلستان په پند و موعظت کې ځینو خبرو ته گوته نیسي او خپل اختلاف ترې څرگندوي . لکه واخلی:

" جور استاد به زمهر پدر. " یا " دروغ مصلحت آمیز به از راستی شر انگیز."

" اگر شاه روز را گوید شب است این
بباید گفتن اینک ماه و پروین "

و غیره.

دداسې قسم خیالاتو نه ، د اختلاف نه علاوه ځینې عالمان دا هم وایې چې په گلستان کې ځینې ضعیف حدیثونه راوړلي شوي دي . چې دسعدي غوندې لوی عالم له پکار وو چې ددې نه یې ځان ژغورلی وای، ځینې خلق ددې کتاب په پنځم باب هم داعتراض گوته کښېږدي چې په دې کې ځینې خبرې داسې بر بنډ ی شان دي، چې د زنانه و دلوستلو خونه دې نه دي، خو دزلمو د کتو هم نه دي ، ځکه چې په دوی څه ښه اثر نه غورځوي. ددې اعتراضاتو یا اختلافاتو په حقله متضاد خیالات دي. او دا یو اوږد بحث دی ، چې دا زمونږ میدان نه دی. صرف دې طرف ته اشاره غوندې ضروري وه ، چې ځینی خلق ددې تعلیماتو او خیا لاتو سره اختلاف هم لري. ولې سره ددې اختلا فاتو او اعتراضاتو دگلستان دا فادیت او عظمت نه هیچا انکار نه دی کړی‌او نه کولی شي.

گلستان د پیړیو پیړیو راهیسې په اسلامي ملکونو کې په درسي کتابونو کې شامل پاتې شوی دی - ددی کتاب دافادیت او اهمیت اعتراف یواځې مشرقي ملکونو نه دی کړی، بلکه دغه کتاب مغربي ملکونو هم لاس په لاس اخستی او قدر ولی دی. د مشرق او مغرب ډیر ې کمې ژبې به داسې وي چې په هغو کې د گلستان ترجمه نه وي شوې. غالباً جارج گینتیس ( George Gentius) اولنی عالم و، چا چې په سنه ۱۶۵۱ع کې ددی کتاب ترجمه په لاتیني ژبه کې وکړه ، او دایران دا شاهکاریې یورپ ته وړاندې کړ. اود یورپ خلقو اول خو به د لاتیني ددې ترجمې نه ترجمې کولی، خو بیا ورو ستو د یورپ په نورو ژبو، لکه

انګریزي ، فرانسوي، جرمني او ډچ و غیره ژبو کې ددې کتاب ترجمې شروع شوې او په هره ژبه ددغو ژبو مختلفو عالمانو او مستشرقینو ددې کتاب ترجمې په خپل خپل رنګ کې وکړې. دمثال په طور په متقدمینو کې ددې عالمانو دانګریزی ترجمې مشهور ې دی:

۱ـ ګلیډون ( Glad Win ) کلکته، سنه ۱۸۰۹ ع، لندن ۱۸۳۳ع.

۲ـ راس ( James Ross ) لندن، سنه ۱۸۲۳ ع ،بل نوی ایډیشن سنه ۱۸۹۰ع.

۳ـ لی ( Lee ) سنه ۱۸۲۷ع.

۴ـ ایسټوك ( E.B.East Wick ) او هرټ فرډ، سنه ۱۸۵۲ ع بل نوی ایډیشن لندن، سنه ۱۸۸۰ع .

۵ـ جانسن ( Jonnson ) سره د فرهنګه، لندن ،سنه ۱۸۶۳ع.

۶ـ پلاټس ( Platts ) لندن ،سنه ۱۸۷۳ ع.

دانګریزي په دی لنډو ترجمو کې آخري ترجمه، یعنې د پلاټس ترجمه او د ایسټوك نسخې د ټولو نه غوره او صحیح ګڼلی شي.

د مشرق خلق بالعموم په فارسي ژبه پوهیدل ، ځکه يې داصل کتاب نه استفاده کوله، ولې سره ددې په ځینو مشرقي ژبو کې هم ددې ترجمې شوې دي . او په دی میدان کې پښتو هم دنورو ژبو ورو ستو نه ده پاتې شوې . او یو څو ادیبانو يې ګلستان په ښکلې پښتو کې را اړولی دی. په دوی کې غالباً چې د ټولو نه زړه او دټولو نه غوره ترجمه د عبدالقادر خان خټك ده ، چې دنن نه څه د پاسه دوه نیم سوه کاله اګاهو يې په سنه ۱۱۲۶ ه [۱] کې د "ګلدستی" په نوم کړی ده. دا ترجمه تر اوسه پوری په خطي شکل کې وه، او که څه هم ددې کتاب څه لږ ې ډیرې برخې

---

۱ـ دا ښايي دشمیرې په لیك کې د خطاط تیروتنه وي، دګلدستې د ژباړې کال ۱۱۲۴ ه ق دی.(مهتمم)

په ځینو کتابونو کې د نمونو په څیر چاپ شوي دي، ولې ټول کتاب لا تر اوسه تر چاپه نه دی رسیدلی . او اوس پښتو اکیډیمی دغه ښکلی او اهم کتاب د پښتو مینو ته وړاندې کوي.

تر.اوسه پورې خو زموږ د خبرو موضوع گلستان و، ولې اوس ښایي چې موږ خپلې اصلي موضوع، یعنې گلدستې ته راو گرځو.گلدسته لکه چې وړاندې وویلی شو دخوشحال خان ختټک زوی عبدالقادر خان ختټک لیکلې ده ، ددی کتاب په سر کې دکتاب د تألیف سبب بیانو لو په موقع د لیك کال سنه ۱۱۲۴ ه ښودلی دی. لکه چه وایي:

زرسل څلر یشت د سن کالونه
له گلستا نه چې دا گلونه
ټول شول چې ترجوړه گلدسته شوه
یادگار به پاتو شي مونږه به ځونه

ددې نه وروستو یې د تاریخ یوه قطعه هم ورکړې ده . وایي:

دا کتاب چې گلدسته د گلستان دی
گل چیني کا عبدالقا در ختټك
که تاریخ یې دآغاز دانجام غواړې
سن د هجر په شماره و دغق دك

د" غق دك " نه هم سنه ۱۱۲۴ ه جوړیږي. په هم دغه دیباچه کې دی وایې چې ( گلدستی دترجمې کار) " په شهر رجب کې شروع شه په رمضان کې په کوتاه عبارت په طریق اختصار په اتمام ورسیده ...."

د کتاب په آخر کې یې ددې میاشتې تاریخ هم ورکړی دي ، لکه چې وایي:

"الحمد الله چې په تاریخ د څلیریشتم درمضان دا کتاب چې موسوم په ګلدسته د ګلستان دی په اتمام ورسیده."

که دا ټولې خبرې یو ځای کړو، نو دا به ترې معلومه شي چې عبدالقادر خان دا کتاب درجب په میاشت کې شروع کړی او په څلیریشتم درمضان، کال زرسل څلیریشت کې سر ته رسولی دی، درجب میاشتې سره یې کال نه دی ورکړی، خو ددې نه یې لږ وړاندې دا تصریح کړې ده چې په سنه ۱۱۲۴ هـ کې یې په نو ښهر کې د ګوشه نیولو او دګلستان د ترجمې دخیال را پیدا کیدلو ذکر کړی دي. ځکه درجب دا میاشت هم ددغې کال کیدی شي، نو په دې حساب دغه کتاب ددغې کال درجب او رمضان دمیاشتی تر مینځه، یعنې په دوو دوه نیمو میاشتو کې ترجمه کړی دی.

په دومره لنډ تنګ وخت کې د ګلستان هسې معیاري ، ګران او اوچت کتاب ترجمه کول دعبدالقادر خان دعلم او قابلیت یو ښکاره ثبوت دی. یو معیاري کتاب دیوې ژبې نه په بله ژبه کې په همدغه معیار او ښایست ترجمه کول ډیر ګران کار دی، او په دې لاره کې مترجم ته چې کومې ګرانۍ او مشکلا ت ور دو ځاره کیږی دهغی اندازه فقط هم ددې میدان پیاوړو او مړنو ته وي. ولې یو عام سړی هم په دې غټه خبره پوئ دی چې دیو مترجم دپاره لازمي ده چې هغه نه یواځې په هغه ژبه ښه حاوي وي د کومی نه چې ترجمه کول غواړي، بلکه په کومه ژبه کې چې ترجمه کولی شی، په هغی یې هم ښه عبور وي . او دا داسی خوبي ده چې ډیرو کمو خلکو ته په برخه رسیدلې وي . د پښتو ادب او شاعري خو د خوشحال خان دکورنۍ خاصه ده ، ولې عبدالقادر خان دفارسي او عربي ژبو هم ښه عالم و، لکه چې هغه ددی بیان نه څرګندیږی چې دهغه د ګوشه نشینۍ په ورځو کې دهغه ځنو دوستانو به دهغه نه استفاده دعلم عربي او فارسي کوله .

علاوه له دې ځينو دوستانو به ترې ګلستان هم لوست.ځکه خصوصيت سره په دې کتاب ښه حاوي شوی و. او دا کتاب يې هم ، دهغوی په اصرار په پښتو راآړولی دی، لکه چې وايي:

" بعضو دوستانو راځخه ګلستان کتاب لوست ، ډير ډير به يې راته ويل چې دعربې دفارسي کتابونه ډير دي ، اما په پښتو ژبه کې کتابونه د پښتو نشته ،ستا قوت د تصنيف د ترجمې البته شته . که تصديع په ځان قبوله کړې ګلستان کتاب چې مطبوع او مرغوب دخاصو عامو دی، هم يې لوی سړی ګوري نصيحت ترې اخلی، هم يې هلکان لولي برکت تر ي اخلي. اکثر خلق يې متن ولولي دويم ځل يې معنی ، که په پښتو ژبه ترجمه شي. پښتنو ته به آساني ډيره وشي. فايده به يې لويو هلکو ته ورسي. زما بل شغل درپيش نه و، فارغ ناست وم...."

په مغربي ژبو کې دفارسي د کتابونو د ترجمو په حقله يو عالم ليکي چې:

Every Poet , however , to be throaty understood and appreciated eight to be read in the language in whined he him alga has within. However good the translation many be) it is wonting in style , the pail, the acutely, the need meaning and rainy anther throng. Shakespeare in ingrained. Date in the Loan, are intimately paint to Thom awed up in any other for gauge. And- the none toy be aid of the pain photo....

ددې عالم دغه وينا په يورپي ژبو کې د ترجمو په حقله ټکی په ټکی درسته ده، ولې هم دغه خبرې دمشرقي ژبو په خپلو ترجمو باندې هم حاوي کيږي . خو سره ددې هم مونږ دا په کلکه ويلی شو. چې دعبدالقادر خان په ترجمو کې دغه کمی ډير کم دی.

د عبدالقادر خان نه پس د ګلستان څه نورې ترجمې هم شوي دي، چې په کې د ښاغلي راحت زاخيلي ترجمه چاپ شوې ده . دا ترجمه تحت-

اللفظ ده . او دګلستان په زده کړه کې دآسانتیا دپاره شوې ده . په داسې ترجمو کې د مفهوم دوضاحت سره سره د لفظونو معنو ته زیاته توجه ورکولی شي. ځکه یو خو داسې ترجمې بې د متن نه چاپ کول بې خونده ښکاري او دویمه دا چې کله کله د لفظ معنو پسې تلل ، یو مترجم، د محاورې نه علاوه د مفهوم نه هم لرې باسي. ددې خبرې دوضاحت دپاره د ګلستان د یوې ترجمې نه زه یو څو مثالونه وړاندې کوم:

ګلستان:

کس نه بیند که تشنګان حجاز به لب آب شور ګرد آیند

ترجمه :

هیڅوك نهویني چې تږی دعربستان

په غاړه و تروو اوبو جمع راځي

ګلستان:

هرکجا که چشمه بود شیرین مردم و مورو مرغ ګرد آیند

ترجمه :

هرچیرته چې خوږه چینه وي

سړی او میږي او مارغه جمع راځي

ګلستان: سربر آورد و ګفت:

ترجمه : سرپورته راوړ او ویې وې:

ګلستان: پاس عزیزان داشتن منت دارد و غنیمت شمارد.

ترجمه : ساتل د زړو نو دعزیزانو لرل به احسان ولري او لوټ به وشماري.

ګلستان: سلطان را سخن او مطبوع آمد.

ترجمه : بادشاه لره خبره ویل دده غوره راغي.

ګلستان: دیګر صیاد دریغ خوردند.

ترجمه : نورو ښکاريانو افسوس وخوړ.
گلستان: درپی کاروان افتاد و برفت.
ترجمه : و روستو د کاروان پريوت او لاړ.

ددې مثالونو ورکولو نه زما غرض ددې خبرې وضاحت دی، چې په لفظي ترجمه کې او په با محاوره ترجمه کې څومره فرق وي. هره ژبه ځان له مخصوصې محاورې لري . الفاظ يې دعامو معنونه علاوه څه اصطلاحي معنىٰ هم لري، بلکه اکثر الفاظ د معنو په لحاظ بې شميره اړخونه لري، څکه ديوې ژبې د محاورو ، روز مره او دنوو الفاظو مترادف او بالکل يوه معنىٰ لرونکي الفاظ په بله ژبه کې موندل ډير گران دي . څکه يو مترجم د ترجمې دپاره دداسې محاورو عامه ژبه او دالفاظو لټون کوي، چې که څه هم الفاظ بدل شي، خو چې په مفهوم کې يې هيڅ فرق رانشي. او لا چې د عبارت ښکلا ، باريکي ، نزاکتونه، او نورې ادبي خوبۍ لکه سجع ، قافيه ، وزن او ترصيع يې هم د نظر تر لاندې وي، نو دترجمې کار په سل چنده گران شي.

په ترجمه کې يوه خبره بله هم د ذکر وړه ده او هغه دا چې دکوم کتاب نه ترجمه کولی شي دهغې معيار څه دی، د هغې طرز بيان څنگه دی، او چا ليکلی دی، دليکونکی د کارنامو عام ميدان کوم او ميلان يې کوم خوا دی؟ يوه خبره به يو امي سړی يو شان پيش کوي ، يو عالم به يې په بل انداز کې پيش کوي، يو شاعر اديب به يې په بل رنگ کې وايي، يو فلا سفه به يې په بل ډول ليکي. دغه وجه ده چې ديو کتاب دليکونکي طرز و انداز ، دليك معيار او موضوع وغيره داسې څيزو نه دي چې په ترجمه کې خاص اهميت لري. او همدا خبر ې د ترجمې په کار کې يو نوی رنگ گراني راوړاندې کوي،نو که په دې نقطه نظر وکتی شي،نو گلستان

يو داسې کتاب دی چې ترجمه يې دهر کس کار نه دی . او دعبدالقادر خان دې ځيګر او همت ته سړی ګوته په خوله پاتې شي، چې دګلستان غوندې کتاب ترجمه هم دګلستان په رنګ او انداز کې د پيش کولو کوشش کړی دی او په دې کوشش کې تر دې حده پورې کامياب دی چې سړی په دې ويلو مجبور شي چې دا هم دهغه کار و که چا بل چا دا کوشش کړی وی ، نو ګوري خو، چې هيڅ به ترې نه وو جوړ شوي.

" هرسړی پيدا دی خپل خپل کار لره کنه "

دګلستان په ترجمه کې د ګرانو او ددې دمختلفو ترجمو د ذکر نه پس داخبره هم څرګندول ضروري ښکاري چې د ګلستان په خپلو چاپي او خطي نسخو کې هم ځای په ځای فرق ليدی شي. په چاپي نسخو کې دا دوه نسخې د ټولو نه غوره ګڼلی شوې دي.

۱_ د ای- سپرنګر ( A- Springer ) نسخه، کومه چې په سنه ۱۸۵۱ ع کې په کلکته کې چاپ شوې وه .

۲_ د جی – ټي- پلاټس ( J.T.Platts ) نسخه، کومه چې په سنه ۱۸۷۳ ع کې په لندن کې چاپ شوې وه .

دايشيا ملکونو، لکه: ترکی، ايران ، او پاك و هند کې د ډيرو عالمانو په تصحيح او خوښه بې شميره نسخې چاپ شوي ذي . زمونږ په ملك کې د مولوی غياث الدين (دمشهور غياث اللغات مصنف ) نسخه کومه چې د بهار باران په نوم چاپ شوې ده . او دګلستان يوه مفصله شرح ده د ټولو نه غوره ګڼلی شي.

دا فاضل شارح دخپلې " بهار باران شرح ګلستان " په دیباچه کې دګلستان دمختلفو شارحانو او دهغوی دشرحو[1] دذکر نه پس دخپلې نسخې په حقله لیکي:

" وبقطع مسافت یکصدو دوکرده به لکنهو رسیده از نسخهٔ صحیحهٔ کاشف دقایق علوم واقف حقایق محسوس و مفهوم مولوی محمد مخدوم مرحوم که در سنه هفتصدو پنجاه وسه هجری ( ۷۵۳ هجری) در بلده کرمان مکتوب شده ...."

ددی لیك نه دا معلومیږي چې دمولوی محمد مخدوم نسخه د نن نه شپږ سوه کاله اګاهوهم صحیح ترین نسخه ګڼلی کیده ، ځکه خو مولوي غیاث الدین مرحوم وریسې درامپورنه تر لکنهو پورې دومره اوږد مزل وکړ.

د خوش بختی نه په دې دریو صحیح ترینو نسخو کې دوه نسخې یعنې د پلا ټس نسخه او بهار باران ماته په لاس راغلي دي ، یوه قلمي نسخه هم لاس ته راغلې ده ، خو دا ډیره نیمګړې ده .

دګلستان په نسخو کې دفرق ښودلو دپاره مونږ ددې دوو نسخو سره د پیښور چاپ هغه نسخه د کومې ترجمه چې ښاغلی راحت زاخیلی کړې ده ، دوړاندې کیږدو او دمثال په طور ځینې ځایونه پکې په ګوته کوو.

۱ـ پلا ټس : سیاحی ګیسو یافت ( ص ۴۱.)

پیښور: شهادی ګیسو یافت.

---

۱ـ شرح میر نور الله اصرادی" خیابان " شرح سراج الدین علي خان آرزو" شکر ستان" شرح ملامحمد سعد د " بهارستان " شرح عبدالغنی ، شرح عبدالرسول و شرح عطاء الله لاهوری و " بهار عمر" شرح مولوی عبدالحی عرف عادل و شرح عربی سروری کاشانی و شرح ولی محمد مرشد آبادی.

بهار باران : سیاحی گیسوان یافته- ( دمخدوم په نسخه کې «شهادی" لیکلی دی)

۲_ پلاټس : یکی از ملوك را کنیزك ختنی آوردند .( ص ۴۴.)
پیښور: یکی را از ملوك کنیزك چینی آوردند .
بهار باران : یکی از ملوك را کنیزك ختنی آوردند .

۳_ پلاټس: ملك را عیش از و منغص شد و چاره ندانست.
پیښور: ملك را عیش از ومنغص بود که طبع نازك تحمل امثال این صورت نه بندد وچاره ندانستند .
بهارباران: ملك را عیش از وگشت و هیچ چاره ندانستند .

۴_ پلاټس: ( پادشاهی پارسای را پرسید ....) گفت بلی هرگه که خدای عزوجل را فراموش میکنم یادت می آرم ( ص ۵۳.)
پیښور: (یکی او پادشاهان پارسایی را دید ...)
گفت بلی وقتی که خدای را فراموش کنم.
بهاران : (یکی او پادشاهان پارسایی را دید ...)
گفت بلی هر گهکه خدای عزو جل را فراموش میکنم ترا یاد می آورم .

۵_ پلاټس: شیخ اجل ابو الفرج شمس الدین جوزی... (ص ۵۵.)
پیښور: شیخ اجل ابوالفرج بن جوزی ...
بهارباران : شیخ اجل شمس الدین ابوالفرج خوزی [1]

---

۱_ په ګلدسته کې دا نوم شیخ اجل شمس الدین ابوالفتح خوارزمی لیکلی دی . ددې نوم په حقله د بهار باران مصنف لیکي چې: " ابو الفرج" د هغه کنیت دی او خوزي ، خوزستان سره نسبت لري. چې دعراق عرب او فارس په مینځ کې واقع دی . دی علاقې ته

← ( ۲۳ مخ کې )

۶_ پلا تهس: تنی چند از بندګان سلطان محمود حسن میمندی را ګفتند....(ص ۹۷.)

پیښور: تنی چند از نزدیکان محمودگفتند حسن میمندی را ...

بهارباران: تنی چند از بندگان سلطان محمود حسن میمندی را گفتند....

۷_ پلا تهس: زندیقست اگر چه در عباست ( ص ۷۱)

پیښور: رنداست اگر چي در عباست.

بهار باران : رنداست اگر چي در عباست.

۸_ پلا تهس: ( میراث پیغمبران یافتم، یعنی علم) و تو میراث فرعون یعنی ملك مصر (ص ۷۳.)

پیښور: میراث پیغمبران یافتم یعنی علم و ترامیراث فرعون ، و هامان رسید .

بهارباران: میراث پیغمبران یافتم، یعنی علم و ترامیراث فرعون، و هامان رسید .

۹_ پلا تهس: که روزی چه مقدار باید خوردن.( ص ۷۵.)

پیښور: روزی چه مایه طعام ( باید ) خوردن .

بهارباران : روزی چه مایه طعام باید خورد .

۱۰_ پلا تهس: باشد قدری بدهد . (ص ۷۶.)



---

خوزستان هم وایي او خوزي هم . په دې باره کې د ګلستان مشهور شارحان ملاعبدالرسول او ملا سعد دواړه متفق دي. په کومو نسخو کې چې خوارزمي لیکلی دی دا قول هم ضعیف دی . خان آرزو په خپله شرحه کې ابن جوزي لیکلی دی،ولی دا قول هم درست نه دی، ځکه چې ابن جوزي چې د حدیث یو لوړ عالم و، دحضرت غوث صمدانی همعصر و. او جناب غوث الثقلین د شیخ سعدي نه تقریباً سل کاله اګهو تیر شوی دی.

پیښور: باشد که دریغ ندارد.
بهارباران: باشد که دریغ ندارد.
۱۱_ پلا تهس: که حسن ظن بلیغ درحق او داشت (ص ۷۴.)
پیښور: که معتقداو بود.
۱۲_ پلا تهس: (یکی را در لب فرو هشته) و ابرو بهم کشیده و تندو ترش نشسته.(ص ۷۷.)
پیښور: (یکی را در لب فرو هشته) و تند نشسته.
بهار باران: (یکی را در لب فرو هشته) و تند نشسته.
۱۳_ پلا تهس: با حسن بشره او سیل تمام داشت، تا حدی که غالب اوقاتش درین بودی که گفتی. (ص ۱۰۴.)
پیښور: با حسن بشره او معاملتی داشت، که زجرو توبیخ که بر کودکان ذکر کردی و حق وی روا نداشتی.
بهار باران: که حسن بشریت است با بشره او میلی بود............ تا بمثا بتی که چون در خلوتش دریافتی گفتی....
۱۴_ پلا تهس: (سرور بیابان نهاده و زمام اختیار از دست داده) و با حیوانات انس گرفته (ص ۱۱۴.)
پیښور او په بهار باران کې دا جمله (و با حیوانات انس گرفته) نشته.
۱۵_ پلا تهس:

ترا به درد من رحمت نیاید
رفیق من یکی همدرد باید
که با او قصه میگویم شب و روز

دو هیزم را بهم خوشتر بود سوز
(ص ۱۱۴.)

دا اشعار د پیښور او بهارباران نسخو کې نشته.

۱۶_ پلا تس: گدا طبع و نا پرهیز گار. (ص ۱۲۸.)
پیښور: کند طبع و ناپرهیز گار.
بهارباران: گنده طبع و نا پرهیزگار.

۱۷_ پلا تس: از خباثت نفس او معلوم کردند.
پیښور: از خیانت نفس او معلوم کردند.
بهارباران: از خیانت نفس او معلوم کردند.

۱۸_ پلا تس: تا پس از مدتی آنچه از نکبت حالش می اندیشیدم بصورت دیدم (ص۱۲۹.)
پیښور: تا پس از مدتی آنچه ازاندیشه من بود از نکبت حالش بصورت دیدم.
بهارباران: تا پس از مدتی آنچه از نکبت حالش می اندیشدم بصورتی دیدم.

۱۹_ پلا تس: سالی چند در پی او رنج برد و سعی کرد بجای نرسید. (ص ۱۲۰)
پیښور: سالی چند برو سعی کرد و بجای نرسید.
بهار باران: سالی چند برو سعی کرد و بجای نرسید.

۲۰_ پلا تس: (وعده خلاف کردی) و شرط وفا بجا نیاوردی. (ص ۱۳۰.)
پیښور: (وعده خلاف کردی) و بجا نیا وردی.
بهار باران: (وعده خلاف کردی) و شرط وفا بجا نیاوردی.

۲۱_ پلا تهس: درویشی زن حامله داشت مدت حمل او بسر آمد.
(ص ۱۳۱.)

پیبنور: زن درویشی حامله بود، حمل بسر آورد.

بهار باران: درویشی را زن حامله بود و مدت حمل بسر آورد.

۲۲_ پلا تهس: این بلا را او به لجا جت از خدا خواسته است.
(ص ۱۳۲.)

پیبنور: این بلا را وی بلجاجت از خدای عزوجل خواسته.

بهارباران: این بلا او بلجاجت از خدا خواسته است.

۲۳_ پیبنور:

دل بدست آور که حج اکبر است

ازهزاران کعبه یکدل بهتر است

دا شعر د پلا تهس او بهار باران دواړو نسخو کې نشته.

۲۴_ پلا تهس: از بی انصافی در سر وردی یکدگر افتادیم.
(ص ۱۳۲.)

بهار باران: از بی انصافی در سر وردی یکدگر افتادیم.

پیبنور: از انصاف در سر و ردی هم افتادیم.

۲۵_ پلا تهس: در خبر است که "موت الفقراءراحته" درویش چیزی ندارد که بحسرت بگذارد.

د پیبنور په نسخه کې او بهارباران کې د قوسینو دا جمله نشته.

۲۶_ پلا تهس: و لقمه او را نوشند. (ص ۱۳۷)

پیبنور: و لقمه او را فروشند.

بهار باران: و لقمه او را فروشند.

۲۷_ پلاتس: من همانا که تقریر این سخن بکردم و دلیل و برهان بیاوردم. (ص ۱۳۹.)

پیبنور: من همان انگار که تقریر این سخن نگفتم و برهان نیاوردم.

بهار باران: هما نا تقریر این سخن نکرده ام و برهان بیان نیاورده ام.

۲۸_ پلاتس: (قاضی چون سخن بدین غایت رسانید) و از حد قیاس مبالغت نمود. ما نیز بمقتضای حکم قضا رضا دادیم. و از ماضی در گذشتیم و بعد از محاذ ا طریق مدارا پیش گرفتیم.

پیبنور: (قاضی ..... الخ) و از حد قیاس اسپ مبالعت درگررانید، بمقتضای حکم قضا رضا دادیم و از ماضی درگذشتیم و بعد از مجاز اطریق مدارا گرفتیم.

بهارباران: (قاضی چون .... الخ) و از حد قیاس اسپ مبالغت در گزرانید بمقتضای حکم قضا رضا دادیم و از ماضی در گذشتیم. لابد بعد زمجاز ا طریق مدارا گرفتیم.

۲۹_ پلاتس: دوستی داشتم و مدتها ندیده بودم، روزی مرا پیش آمد. گفتم کجا یی ..... (ص ۱۰۵.)

پیبنور: یکی دوستی را که زمانها ندیده بود گفت کجایی.....

بهارباران: یکی دوستی را که مدتها ندیده بود گفت‌کجایی...

۳۰_ پلاتس: مرهم به ریش نهی و درهم درپیش. (ص ۱۶۰.)

پیښور: مرهمی بر ریش نهی و معلومی در پیش.

بهارباران: مرهمی بر ریشش نهی و معلومی درپیشش.

دګلستان د مختلفو نسخو دا اختلا فات کوم چې بره ولیکلی شول، د معنو او مفهوم په لحاظ خو دومره اهمیت نه لري، ولې د سعدي په نګارش کې چې ادبي نزا کتونه او باریکۍ دي په هغې کې دا واړه واړه اختلا فات هم ډیر اهمیت لري. ما دا اختلا فاتو دا یو څو غټ غټ ځایونه په دی غرض په ګوته کړل، چې یو خو لوستونکی له دی حقیقته آګاه شي چې ګلستان عامې نسخې خو څه چې هما غه نسخې کومې چې صحیح ترینې ګڼلی شي هم یو شان نه دي.

دویمه دا چې که څوك د ګلستان دا ترجمه ( ګلدسته ) د ګلستان کومې نسخی سره مقابله کړي او فرق پکې بیا مومي، نو چې سبب یې ورته معلوم وي.

په دې بره ذکر شوې نسخو کې مونږ یوه نسخه هم نه شو په ګوته کولی چې " ګلدسته " ددغې نسخې ترجمه ده ، ځکه چې ګلدسته ځای په ځای واړه نري اختلافات په دیو کې هر ې نسخی سره لري. ددې په مقابله کې دا ویلی شو چې د ترجمې په وخت د عبدالقادر خان تر وړاندې په دیو کې یوه نسخه هم نه وه، ځکه چې په ګلدسته کې د شیخ سعدي دا ستاد نوم شمس الدین ابوالفتح خوارزمي لیکلی شوی دی او په دغو نسخو کې په یوه کې هم دا نوم په دغه ډول نه دی راغلی.

تر اوسه چې مونږ څومره خبرې وکړې ، هغه اکثر ګلستان سره تړلې وې،خو بیا یې هم څه نا څه تړون ګلدستې سره و. په ګلستان باندې تبصره او تنقید و غیره زمونږ میدان نه دی ، ګنې دا خو دومره وسیع اوارت بیرت میدان دی چې سړی پکې په ارت مټ زغل کولی شي. زمونږ دلیك اصلي موضوع ګلدسته ده ، ځکه نو ښایي چې مونږ اوس څه داسې خبرې

ولیکو چې زیات تر تعلق یې نیغ په نیغو گلدستی سره وي . اگر چې په دې هم مورږ خپله لمن د گلستان نه نه شو خلا صولی، ځکه چې گلدسته د گلستان دترجمې په حیثیت خپله گلستان سره تړلې ده .

په گلدسته باندی دځه لیکلو دپاره دا زیاته غوره ښکاري، چې دې غرض دپاره واړه واړه عنوانونو ته کیښودی شي. او بیا هر عنوان تر لاندې په دغه مناسب خبرې او بحث وکړی شي:

## ۱ــ د گلستان په دیباچه کې تصرف:

عبدالقادر خان دخپلې ترجمه شروع د گلستان داصل عبارت، یعنی" منت مرخدای را..." نه کړې ده . خو چې څه وخت ذکر محامد پادشاه اسلام..... الخ ته رارسیدلی، دی. نو قلم یې نیولی دی او دقلم د نیولو توجیح یې دا کړې ده چې:

" دستور د منصفانو دی چې مد ح د خپل وخت د بادشاه وکاندي، لکه شیخ سعدي نورالله مرقده ابوبکر سعد بن زنگي صفت په گلستان کې کړیدی او مورږ په داسې زمانه کې پیدا یوو چې حاکمان ، بادشاهان ددې عصر واړه ظالمان او مبتدعان دي.... په دا سبب د عهد د بادشاه معینه مدحه و نه شوه ....."

عبدالقادر خان یوازې ددغې عنوان تر لاندی عبارت نه دی حذف کړی ، بلکه ددې نه وروستو راتلونکی عنوانونه یعنې " درسبب تأ لیف کتاب" ذکر بادشاه زاده جهان سعد بن ابوبکر نورالله قبره " ذکر امیر کبیر فخر الدین ابی بکر بن ابی نصر اطال الله عمره او ذکر تقصیر خدمت و موجب اختیار عزلت یی هم حذف کړی دی او ددې واړو په ځای دخپله ځانه عبارت لیکلی دي چې هم دده ذات سره تعلق لري، لکه " درسبب

تألیف کتاب ".په سلسله کې دخپلې ګلدستې د تألیف سبب یې په دې الفاظو شروع کړی دی.

"سبب د تألیف ددې کتاب چې ترجمه د ګلستان دی" د شیخ سعدي دممدو حینو په ځای یې دخپل پلار د خوشحال خان ختک محامد او صفتونه لیکلي دي. بیا یې د سعدي د ممدو حینو د حالاتو په ځای دخپل خاندان حالا ت لیکلي دي ، چې دخوشحال خان حالا ت یې پکې لږ زیات تفصیل سره لیکلي دې. په دې سلسله کې د حضرت کا کا صاحب (علیه الرحمه) ذکر یې هم په ډیر اعتقاد او احترام سره کړی دی.

په دې اوږده دیباچه کې عبدالقادر خان په ځنو خبرو کې د شیخ سعدي متابعت غوندې کړی دی ، لکه شیخ د ګلستان سبب تألیف لیکلي دی . ده د خپلې ګلدستی د لیك سبب ښودلی دی. شیخ دخپل ممدوح ستاینه کړې ده او عبدالقادر خان د خپل پلار صفتونه او محامد بیان کړې دې. شیخ د خپلو ممدو حینو د ژوند حالا ت لیکلي دي،ده دخپل خاندان حا لات قلمبند کړي دي. شیخ د خپلې ګوشه نشینۍ او عزلت ذکر کړی دی، ده دخپلې ځان ته دناستی او پښې د قناعت په لمن کې د نغښتلو ذکر کړی دی. شیخ ګلستان دځان دپاره یو تل پاتې کیدونکی یادګار ګرځولی دی او عبدالقادر خان هم ګلدسته په دغه نیت لیکلې ده . په آخر کې شیخ د ګلستان دلیك کال ورکړی دی او عبدالقادر خان هم د هغه پیروي کړې ده . وغیره . سره ددې چې د عبدالقادر خان دا بره ذکر شوې دیباچه خصوصاً ددې هغه برخه په کومه کې چې یې دخپل خاندان یاد خوشحال خان ختك حالات لیکلي دي،بیحده قیمتي او اهمه ده . زموږ دا خیال دی چې عبدالقادر خان له د شیخ ددیباچې عبارات لکه ځنګه چې د ترجمی اصول دي حذف کول یا خپل عبارت سره خلط ملط کول نه وو پکار، ځکه چې دګلستان سره تړلي د شیخ سعدي دغه دیباچه

هم په خپل ځای هم دادب په لحاظ او هم دتاریخ په لحاظ ډیره اهمه ده . ددې نه به غوره او مناسب دا وه ، چې هغه د شیخ سعدي دیباچه و غیره په خپل ځای ترجمه کړی وی او دغه دیباچه به یې دمترجم په حیثیت ورسره دځانه زیاته کړې وه . په دې صورت کې به دهغې وخت د باچا دمحامد او ستاینې هډو سوال نه وو پیدا شوی.

## ۲ـ په قصو کې کمی زیاتی:

موږ وړاندې د ګلستان په هر یو باب کې د قصو شمیره ورکړې ده . دا شمار دّ جي تی پلاټس دنسخې دی . دکومې ذکر چې آګاهو شوی دی. په دې شمیره او دګلستان دنورو نسخو د قصو په شماره کې هم لږ یاډیر فرق لیدی شي. ما دزیات تحقیق دپاره د ګلستان پنځه شپږ مختلفې نسخې سره مقابله کړې او په ټولو کې مې څه نا څه کمی زیاتی ضرور بیا موند. خو په ښو نسخو کې دا فرق ډیر کم دی . دوضاحت دپاره زه د پلاټس د نسخې او دپیښور چاپ د نسخې موازنه وړاندې کوم :

| باب | دپلا ټس نسخه | د پیښور چاپ نسخه | یوه قلمي نسخه |
|---|---|---|---|
| اول | ۴۲ | ۴۲ | ۴۲ |
| دویم | ۴۷ | ۴۶ | ۴۶ |
| دریم | ۲۸ | ۲۹ | ۱۵ |
| څلورم | ۱۴ | ۱۴ | ۱۲ |
| پنځم | ۲۰ | ۲۱ | ۲۱ |
| شپږم | ۸ | ۹ | ۶ |
| اوم | ۱۹ | ۲۰ | ۲۰ |
| اتم | ۱۱۲ | ۱۱۷ | ۸۰ |

ددی شمیر نه بر څیره ده چې دچاپي نسخو په مقابله کې دقلمي نسخي د قصو ، حکمتونو او پندونو شمیره په ځینو بابونو کې ډیره کمه ده. او په چاپي نسخو کې څه دومره زیات فرق نشته . په دې دوو نسخو کې چې په کومه کومه موقع دیو ې بلې په مقابله کې څه کمی زیاتی دی ، هغه په دې ډول دی:

۱ـ د پلا تېس د نسخې دا قصه چې ( یکی را دوستی بود که عمل دیوان کردی....) د پیښور په نسخه کې نشته ( په بهار باران کې نشته ( دویم باب )

۲ـ د پیښور په نسخه کې دا قصه چې ( همچنان درویشی ورقاع بسیط ....) ځان له دیوې بیلې قصې په شکل کې را وړلی شوې ده ، ولې د پلاتېس په نسخه کې دغه قصه یوې بلې قصې سره ( دیو خبر په حیثیت تړلې ده . ( دریم باب )

۳ـ د پیښور د نسخې دا قصه چې ( یکی را پرسیدم از معربان ....) د پلاتېس په نسخه کې نشته ( په بهار باران کې هم نشته ) ( پنځم باب )

۴ـ په شپږم باب کې د پیښور د نسخې آخري " حکایت منظوم " د پلا تېس په نسخه کې بلې قصې سره دیوې قطعې په شکل کې تړلی دی ( په بهار باران کې هم جدا قصې په شکل کې لیکلی دی)

۵ـ د پیښور ( او دبهار باران ) د نسخو دا قصه چې ( هندوی لفظ اندازی می آموخت ....) د پلا تېس په نسخه کې نشته . ( اړوم باب )

۶ـ په اتم باب کې لا ندې لیکلي شوي حکمتونه او پندونه د پیښور په نسخه کې خو شته، خو دپلا تېس په نسخه کې نشته .

۱) عاقلی را پرسیدند...... ( په بهار باران کې هم نشتهُ )

۲) عرب گویند ......... ( په بهار باران کې هم نشته )

۷ـ هم په دی باب کې دا حکمت چې ( هر که دشمن کوچك را حقیر شمارد .....) دپلا ټس په نسخه کې د پیښور د نسخې نه زیات دی.

۸ـ دپلا ټس په نسخه کې لاندې لیکلي شوي حکمتونه ځان له جدا جدا نه دي لیکلي شوي، بلکه د بل کوم حکمت برخه ګرځولی شوي دي . د پیښور او بهار باران په نسخو کې دا ځان له جدا جدا حکمتونه یا پندونه ګڼلي شوي دي :

۱) رازیکه نهان خواهی........ الخ.
۲) احمق را ستایش .......... الخ.
۳) دین بدنیا فروشان ......... الخ .
۴) لذت انگور بیوه داند..... الخ.
۵) هرگز دو خصم بحق....... الخ.

۹ـ لاندې لیکلي شوي حکمتونه یا پندونه ( داتم باب ) د پلا ټس په نسخه کې ځانله بیل لیکلي شوي دي . خو د پیښور په نسخه کې بل کوم حکمت سره یو ځای لیکلی شوي دي .

۱) هر که علم خواند ................ الخ
۲) از تن بیدل طاعت نیاید ........ الخ.
۳) نه هر که در مجادله چست .... الخ .

دګلستان په ښو نسخو کې د قصو دې فرق ته لږ ځیر شو او په غوریې وګورو، نو دا معمولي شان فرق نور هم غیر اهم شي، ځکه چې دیوې نسخې ځینې قصه په بله نسخه کې موجودې خو وي ، خو دبلې قصې برخه یې ګرځولې وي، ځکه په شمیره کې فرق راشي. هم دغه حال د حکمتونو او پندونو دی. په یوه نسخه کې څه پندونه او حکمتونه ځانله په جدا شکل کې لیکلي دي. او په بله نسخه کې دوه، دوه،درې ، درې حکمتونه دیو واحد حکمت په شکل کې راوړلي شوي دي، له دې کبله موږ

د ګلستان ښو نسخو کې د قصو او حکمتونو په شماره کې کمی زياتی له څه زيات اهميت نه ورکوو، ولې هر کله چې ددغو نسخو شماره موږ د ګلدستې د قصو او حکمتونو او پندونو شمارې سره مقابله کړو ، نو کافي فرق پکې را برڅيره شي . مناسب ښکاري . چې موږ ددې ذکر لږ تفصيل سره وکړو.

۱ـ دلاندې ليکلي شوو قصو ترجمه په ګلدسته کې نشته :

لومړی باب: ۱ـ پادشاهی بکشتن بيگناهی........ الخ .

لومړی باب: ۲ـ يکی از وزرا بر زير دستان ....... الخ .

رر ۳ـ دو برادر بودند.................. الخ.

رر ۴ـ ګروهی از حکما..................... الخ.

دويم باب: ۱ـ ابوهريره(رض) هر روز............. رر

دريم باب: ۱ـ يکی از ملوك عجم ................ رر

رر ۲ـ رنجوری را گفتند.................... رر

رر ۳ـ يکی از عرب در بيابانی.............. رر

رر ۴ـ دست و پای بريده .................. رر

څلورم باب: ۱ـ ناخوش آوازی ببانگ بلند.............. رر

پنځم باب : ۱ـياد دارم که در ايام جوانی.......... رر

شپږم باب: ۱ـ روزی بغرور جوانی.................. رر

رر ۲ـ توانگری بخيل را سيری .............. رر

اووم باب: ۱ـ هندوی لفظ اندازی ميآموخت .. رر ( د پلا تس په نسخه کې هم نشته )

اتم باب: ۱ـ عاقلی را پرسیدند ............ رر (د پلا تہس په نسخه کې هم نشته )

رر ۲ـ عرب گویند.................... رر (د پلا تہس په نسخه کې هم نشته )

رر ۳ـ برآن سری که داری........... رر

رر ۴ـ هر که دشمن کوچك را ....... رر

رر ۵ـ بر عجز دشمن رحمت مکن... رر

رر ۶ـ بد خوی بدست دشمنی ...... رر

رر ۷ـ بادشاه را بر خیانت کسی.... رر

رر ۸ـ دشمن چو از همه حیلتی..... رر

رر ۹ـ فریب دشمن مخور........... رر

رر ۱۰ـ احمق را ستایش .......... رر

رر ۱۱ـ از تن بیدل طاعت ........ رر

رر ۱۲ـ نه هر که در مجادلت چست است ... رر

رر ۱۳ـ ضعیفی با قوی ............... رر

رر ۱۴ـ حکیمان دیر دیر خورند..... رر

رر ۱۵ـ خردمندی که درزمره او باشی.. رر

رر ۱۶ـ هر که ترك شهوت ............ رر

رر ۱۷ـ شیطان رجیم ................ رر

رر ۱۸ـ هر که درزندگی نا نش ....... رر

رر ۱۹ـ ای طالب روزی ............... رر

رر ۲۰ـ به نانها ده دست نرسد......... رر

رر ۲۱ـ صیاد بی روزی.................. رر

رر ۲۲ـ دروغ گفتن بغربت لازم..... رر

رر ۲۳ـ ریشی درون جامه داشتم ... رر

رر ۲۴ـ درویشی بمناجات ......... رر

رر ۲۵ـ مفامر راسه و شش باید... رر

رر ۲۶ـ بزرگی را پرسیدند که چندین فضیلت ...رر

رر ۲۷ـ شاه از بهر دفع ستمگاران... رر

رر ۲۸ـ هر گز دو خصم بحق راضی... رر

ب :ـ لاندی لیکلې شوې قصې په ګلدسته کې د پیښور یا پلاټس د نسخونه زیاتې دي:

۱ـ یکی را دوستی بود. (د پیښور په نسخه کې هم نشته)

۲ـ یکی را پرسیدم. (د پلاټس په نسخه کې هم نشته)

۳ـ نصیب دغني له دنیا آرایش دی. (په چاپ نسخو کې نشته)

ج : لاندې لیکلې شوې قصې یا حکمتونه په ګلستان یا په ګلدسته کې دیو په ځای په ګنو برخو ویشلې شوې دي:

۱ـ د پیښور د نسخې یوه مثنوي (یکی پرسید از ان گم کرده فرزند) چې د یوې قصې برخه ده په ګلدسته کې د یو ې بیلې قصې په شکل کې لیکلې ده. دغه هم په دې باب کې.

۲ـ د پیښور د نسخې مثنوي (دیدم گل تازه چند دسته) په ګلدسته کې د یوی بیلې منظومې قصې په طور لیکلې شوې ده

۳ـ د پیښور د نسخې دیوې اوږدې قصې یوه برخه (چنانچه یکی از ملوك پارس ....) یې ځانله دیوې جدا قصې په شکل لیکلې ده.

۴ـ د پیښور د نسخې ددریم باب آخری قصې مثنوي په ګلدسته کې د "حکایت منظومه" دعنوان تر لاندې لیکلې ده.

۵_ په اتم باب کې د پېښور چاپ يو حکمت ( حکيمی که با جهان .... ) په ګلدسته کې په دوو حکمتونو ويشلي شوی دی.

۶_ په اتم باب کې د پېښور نسخی دا حکمت چې ( تلميذ بی ارادت .... ) په ګلدسته کې په دريو حکمتونو ويشلی شوی دی.

## ۳_ په عبارت کې کمی زياتی:

ترجمه عموماً په دری قسمه وي:

### ۱_ لفظی يا تحت اللفظ:

يعنی چې ديو عبارت په ترجمه کې ددغې عبارت دالفاظو ترجمه يې په بله ژبه کې کړې وي. په دې کې هم ځينې الفاظ وړاندې وروستو کړې او جملې يې برابرې کړې وي. او ځينو دالفاظو ترجمه بالکل داصل عبارت په ترتيب ليکلې وي. دداسې ترجمو غوره مثالونه دقرآن پاك ځنې ترجمې دي.

### ۲_ با محاوره :

داسې ترجمه چې ديو کتاب دعبارت په ترجمه کې ددغې ژبې د محاورو ترجمه د بلې ژبې په محاور و کې وکړي. ظاهره ده چې که مترجم قابل وی، نو په دی صورت کې الفاظ خو بدل شي، ولې داصل مفهوم په ښه شان سره په ځای پاتې شي.

### ۳_ آزاده ترجمه:

داسې ترجمې ته وايي چې يو مترجم ( ؟ ) ديو عبارت مفهوم راواخلي او دغه مفهوم سره دخپلې رنګ آميزۍ په خپلو الفاظو کې بيان

کړي . څرګنده ده چې داسې ترجمه خوند ناکه خو وي ، خو کله داصل مفهوم په دغه بدلون او رنګ آمیزو کې ورك شي.

که مونږ ګلدسته د ترجمې ددغې قسمونو په رڼا کې وګورو، نو حیران شو چې دا ترجمه په کوم قسم کې شمیر کړو. ځکه چې دا ترجمه په یو نیب نه ده روانه . په ځینو ځایونو کې یې با محاوره ترجمه کړې ده او په ځینو ځایونو کې یې د لفظونو خیال هم ساتلی دی. او ډیر ځایونه پکې داسې دي چې بالکل آزاده ترجمه یې کړې ده . ددې نه علاوه په ځینو موقعو کې یې څه خبرې بالکل دځانه هم زیاتې کړي دي. دا اضافي په ځینو ځایونو کې خو تفسیري او وضاحتي رنګ لري، ولې په ځینو ځایونو کې یې اصل سره هیڅ تعلق نشته .

ددغو اضافو نه علاوه په ګلدسته کې په ځینو ځایونو کې داصل عبارت څه ټکړې او ځینې اشعاریې بالکل حذف کړي هم دي . خصوصاً دعربي ټول عبارات، یعنې دقرآن پاك آیاتونه، حدیثونه ، مقولې او دعربي شعرونه او قطعې و غیره یې د سیلمې حذف کړي دي . هن ، که چرته خال خال دیو نیم حدیث و غیره ترجمه یې کړې ده، نو هغه په داسې موقع چې بې دهغې نه ټوله قصه یا عبارت نیمګړی پاتې کیده .

ددغې قسم کمو زیاتو نه ټول کتاب ډك دی ، که لږ ځایونه وي ، نو موږ به دلوستونکو داستفادې او آسانۍ دپاره دلته راجمع کړي وي. بله دا خبره هم دذکر وړ ده چې دا کمی زیاتی یا بدلون په څه خاص ترتیب نه دی،یعنې یوه قصه کې یې څه کرښې خو بالکل داصل مطابق ترجمه کړي دي، بیا د ځینو کرښو ترجمه یې آزاده کړې ده . په دې وجه لوستونکی ته دا پته نه شي لګیدی چې په دې قصه کې کوم عبارت داصل مطابق دی ،کوم بدل کړی شوی دی او کوم حذف کړی شوی دی. او له دې کبله چې د ترجمې دغه ټول عبارت په ډیر ښکلي طرز او په یو نیب روان دی، ځکه یو

لوستونکی په دی مغالطه کې پریوتی شي چې ګنې دا ټول عبارت دسعدي دخولې دي. ددې غلط فهمۍ دلرې کولو دپاره مونږ داسې جملې یا اشعار په قوسینو کې لیکلي دي . او لاندې مو ورته د کمي ، زیاتي او بدلون دپاره څه نخښې یا علامې ورکړې دي. چې هغه په دی ډول دی:

ز: زیاتی عبارت یا شعر . کوم چې مترجم دځانه زیات کړی دی.

ح: دلته مترجم څه عبارت یا شعر حذف کړی دی.

أ: دلته ترجمه بدله او داصل نه په بل رنګ ده . داصل عبارت داسې دی.

دحذف شوي او بدل کړي عبارتونو نخښو سره داصل ( فارسي ) عبارت موهم لیکلی دی چې لوستونکی په آسانه دغه بیلتون اوفرق معلوم کړی شي.

## ۴_ په ترجمه کې دمختلفو قسمونو مثالونه :

۱) په ګلدسته کې د کمي زیاتي دعنوان ترلاندی مونږ په ګلدسته کې دمختلفو قسمونو د ترجمو ذکر کړی دی. دې سره مناسب ښکاري چې څه مثالونو سره ددې وضاحت وکړی شو.

په دې غرض مونږ اول با محاوره ترجمه اخلو. یعنې هغه ترجمه چې داصل مطابق ده ، دګلدستې زیاته برخه دهمداسې ترجمې ده . او تیری کمال یې پکې دا کړی دی چې عبدالقادر خان په خپله ترجمه کې دګلستان مخصوص ښائست هم د بر قرار ساتلو کوشش کړی دی. مونږ دلته دمثال دپاره دګلدستې دشروع یو څو کرښې دګلستان اصل عبارت

سره یو ځای رانقل کوو. ددې نه به د ګلدستې عمومي طرز او خصوصیت ښه واضح شي.

ګلستان : "منت مر خدای را عزو وجل که طاعتش موجب قربت است و بشکر اندرش مرید نعمت ، هر نفسی که فرو میرود ممد حیات است و چون بر آید مفرح ذات، پس درهر نفسی دو نعمت موجود است و بر هر نعمتی شکری واجب"

ګلدسته :" ثنا صفت خدای لره جل جلا له عم نواله چې طاعت یې موجب دقربت دی او شکر یې په نعمت سبب دزیاتیدو د نعمت، هر ساه چې کښته شي، ممد د ژوندون ده، چې راپورته شي خو شی دوجود ، پس په هر نفس کې دوه نعمته دی موجود. په هر نعمت شکر لازم."

دآزادې ترجمی دپاره ددریم باب دا لنډه شان قصه یو غوره مثال دی:

ګلستان:" ابلهی را دیدم خلعتی ثمین در بر و مرکبی تازی در زیر و قصبی مصری بر سر، کسی گفت سعدي ! چگونه می بینی این دیبای معلم و بر این حیوان لا یعلم ؟ گفتم خطی زشتست که بآ ب زر نوشتست:"

ګلدسته :" شیخ وایی یو احمق په ښه تازی آس سور، جامې اغوستې دریښمین زرین ، په شان په شوکت تیر یده ، چا راته ووې چې ای سعدي! څرنګ وینې ؟ وې مې خط دی ښکلی په او بو زرو کښلی"

دآزادې او بدلې ترجمې دپاره چې پکې یې دځانه هم څه زیات کړی دی. ددریم باب دیوې قصې څه برخه وړاندې کوم.

ګلستان:"سوم . خو بروی که درون صاحبدلا ن بمخالطت او میل کند. که بزرگان گفته اند که اندکی جمال به از بسیاری مال وروی زیبا مرهم دلهای خسته است و کلید درهای بسته.، لا جرم صحبتش را غنیمت شمارند . و خدمتش را منت دارند "

گلدسته :" دریم. ښائسته که سفر ته ځي گنجائش لري . خو بروی هر چرته سرخروي وي، زړونه د هر چا دده په لور مایل وي . آرزو یې دا وي که له ده واصل وي. که دی اصیل وي که بد ذات وي. دگردن کشانو ورمیږونه ورته مات وي، یویې تر لاس ونیسي چې نن ما کره میلمه شه . ورته وایې:

## رباعی

راشه راشه ښائسته را شه          زما دغم د جونگړې رڼا شه
په هغې لار چې ته را تللې          د هغی لار بلا په ما شه
بل ور ته زاري کا چې ما کره تشریف وفرمایه، ورته وایې:

## رباعی

که دزړه نه شي چې راکره ډیر کړي
شل شپې خو بویه چې راکره تیر کړې
زړه مې ډوب کړی اندیښنو پوچو دی
چې هغه واړه راځني و هیر کړې .

هوښیارانو ویلي دي چې ښائسته دخسته زړونو مرهم دي. ښائسته لرې کوونې دغم دي . لږ جمال بهتر تر ډیره ماله . صحبت یې هر څوك غنیمت گڼي. خدمت یې واړه په ځان منت گڼي. "

د گلستان د ترجمې کومې نمونې چې بره ورکړی شوې هغه د نثر دعبارت دی . په گلستان کې نظم او نثر دواړه سره غاړه غتې دي . ځکه مناسب ښکاري چې دغه شان یو نظر د نظم په برخه یې هم واچوو.

دنثر کومې نمونې چې بره ذکر شوې دي، په دې کې دآخري ټوټې نه دا خبره خو پخپله څرگنده شوه چې په گلدسته کې ځینې اشعار

عبدالقادر خان د ځانه زيات کړي دي. خو داسې قسم ( بالکل دځانه ) زيات شوی اشعار پکې ډير کم دي.

په کومو ځايونو کې چې يې د سعدي(رح) د ابياتو ، رباعياتو ، قطعاتو و غيره و ترجمه کړې ده، نو هغه يې بالعموم داصل مطابق کړې ده . ښکاره ده چې ديوې ژبې د نظم ترجمه د بلې ژبې په نظم کې کول ډير ګران کار دی، ځکه چې په دې کې د مترجم ذمه واری او مشکلات دنثر په مقابله کې په څو څو چنده زياتې شي. او په تيره تيره چې نظم هم د شيخ سعدي وي.

دشيخ سعدي اکثر اشعار خصوصاً رباعياني يا قطعې داسې دي چې لکه چې دشعري ښکلا تقاضا ده ، څه نا څه مفهوم يې پکې دلوستونکي فکر او تصور ته پريښودی دی . ولې عبدالقادر خان د شيخ د اکثرو اشعارو ، رباعياتو او قطعاتو د ترجمې نه پس يو نيم شعر د خپله ځانه زيات کړی دی او دا زياتي شعر بالعموم ددغې رباعي قطعې و غيره د مفهوم د وضاحت دپاره يا تفسير دپاره راغلی دی. داسې قسم اضافې په ګلدسته کې ډير ې دي، ځکه دا به په خپله خپله موقع په ګوته کړی شی. دلته دخپل بيان د وضاحت دپاره يو مثال تير وم:

**ګلستان:**

ترسم بکعبه نرسی ای اعرابی     کين راه که توميروی به ترکستان است

**ګلدسته:**

و کعبې ته به څرنګ ورسيږې
روان شوی چې په لار د ترکستان يې
چې ګاته شي پرې جنت هغه نمونځ بل دی
ته په دا مانځه دوزخ وته روان يې

داخو دهغو اشعارو ذکرو دکومو ترجمه چې عبدالقادر خان داصل مطابق کړې ده، ولې دهغه په ترجمه کې ډیره برخه دآزادۍ ترجمې هم شته . په داسې ځایونو کې ده نه یوازې دا چې تش د شیخ مفهوم یې اداء کړی دی، بلکه ورسره یې څه خیالات خپل هم و رګډ کړي دي. داسې ځایونه هم په ګلدسته کې ډیر دي،ځکه موږ په خپله خپله موقع ورته اشاره کړې ده او دګلستان اصل اشعار موهم ورسره ورکړي دي. زه به دلته ددې بیان د وضاحت دپاره د ګلستان یوه قطعه سره د عبدالقادر خان د ترجمې را نقل کړم:

**ګلستان :**

"جوا نمرد ی و لطف و آد میت همین نقش هیولانی مپندار
هنر باید که صورت میتوان کرد با یوآنها در از شنگرف و انگار
چون انسان را نباشد فضل و احسان چه فرق از آدمی تا نقش دیوار
بدست آو ر د ن د نیا هنر نیست یکی را گر توانی دل بدست آر "

**ګلدسته :**

جوانمردی آدمیت آدمیت دی
نه موقوف آدمیت په دا صورت دی

ابوذر ، ابوجهل دواړه آد میان وو
هرګور ډیر تفاوتونه یې تر میان وو
څو د مزکې دآسمان په مینځ کې وت دی
دسړی دسړي هو مره تفاوت دی
سړی والی که په ږیره په دستار وي
داخو لانبائسته کښلی په دیوار وي
ځنې کښلی په شنګرف ځنې په زرو

ثوك له توره كاښيه ساز ثوك له مرمرو
چې خالي وي له معنو په قدرخواروي
په معنو د هر ثيز قدر په مقدار وي
د انسان چې فضيلت مروت نه وي
يو حيوان دی لا حيوان ورځنې ښه وي
حيوان خو د حيوانيت لره پيدا دی
د انسان حيوان ښه بد ځنې په دا دی
كه حجام دحجام زوي شي عيب يې كوم دی
شاهزاده چې حجام شي نحس دی شوم دي

## ۵_ په ترجمه يو عمومي نظر:

### ۱_ دنثر برخه :

۱_ دمسجع ، مرصع او مقفي عبارت ليكل په خپله ژبه كې هم ګران كار دی او چې دبلې ژبې د عبارت په ترجمه كې دا قيدّ د نظر لاندې وساتلی شي،نو دا لا ګران شي او بيا لا چې د ګلستان هسې معياري كتاب د ترجمې دپاره وړاندې كيښودی شي، نو په دې ګرانو نورې ګرانی ور انبار شي. ولې عبدالقادر خان دې غرته هم وراړم شوی دی او ترخپله وسه يې د ګلدستې په عبارت كې د سجع او ترصيع و غيره نه كار اخستی دی ، او هم دا وجه ده چې په ځينو ځايونو كې ترجمه داصل نه اوږده يا لنډه شوې ده او دضرورت دپاره يې پكې څه الفاظ ، بلكه جملې د ځانه زياتې كړې دي لكه لاندې ليكلي شوي يو څو مثالونه واخلې:

**ګلستان:** " ... يكى ضعيف بودكه روزه داشتى و بعد از دوشب افطار كردى. وديگرى قوى كه روزى سه بار خوردى. "

**گلدسته:**" یو ضعیف همیشه په روژه کمزوری ، بل قوی هیکل ډیر خوری."

**گلستان:** خشک سالی در سکندریه پدید آمد،چنانکه خان طاقت درویشان از دست رفته بود و در های آسمان بر زمین بسته و فریاد اهل زمین به آسمان در پیوسته .

**گلدسته** : خشك سالي په سکندریه کې مخ ښکاره کړ. اکثر خلق له وطنه آواره کړ. زمکه بې نمه شوه بی بارانه . گردونه یې لاړل تر آسمانه

**گلستان:**محال عقلست که اگر ریگ بیابان دُر شود چشم گدایان پُر شود .

**گلدسته** : محال دعقل دی چې حریصان دچا په ورکړه ماړه شي، گدایان له سواله ساړه شي. که دُر شي ریگ د بیابان ماړه به نه شي گدایان.

**گلستان:** .... بنده صالح را به بهشت برند و خداوند فاسق را بدوزخ.

**گلدسته** :.... دده بنده په سبب دعمل صالح جنت لره روان کا او خواجه یې په دوزخ کې په علت دفسق و عصیان کا .

**گلستان:** جوانی خردمند از فنون فضائل حظی وافر داشت.

**گلدسته** :یو ځوان و خردمند ، له علمه له فضله بهره مند ، له هره فنه یې حظ حاصل و.

**گلستان** :مرا که پیرم با پیر زنان الفت نیست او که حیران باشند بامن که پیرم دوستی صورت نه بندد .

**گلدسته** : دی ځوانانو ښځو چې زوړ یم را سره مؤدت نه کیږي.

**گلستان:**و سیم وزر در سفر محل خطر باشد که دزد یکبار بردیا خواجه بتفاریق بخورد.

**گلدسته** : زر په محل د خطر وي که يې غل ورځخه په غلا يوسي، که ظالم يې درځني په رڼا يوسي که په موافق يې د مراد وخوري ، زر به در ځخه تمام شي.

**گلستان** :کور مشعله دار است.

**گلدسته**: عالم نا پرهيز گار ړوند دی مشعله دار.

۲_ لکه چې د بره ذکر شوو مثالونه ځرګنده ده . په عبارت کې د نثر دغه خوبی او ښکلا، لکه سجع ، قافيه او ترصيع و غيره د قائم ساتلو دپاره يې عموماً دګلستان خپل الفاظ په ځای ساتلي دي . يايې داسې الفاظ استعمال کړي دي چې په فارسي کې خو آسان او روان دی، ولی په پښتو کې دغه الفاظ ديو عام لوستو نکي دپاره ګران دي. په مسجع مرصع او مقفي عبارت کې داسې کيدل نا ګزيره غوندې وي، ولې په ګلدسته کې ډيره برخه داسې هم شته . چې هلته يې ددې لوازماتو او تکلف نه کار نه دی اخستی، نو هلته هم دفارسي او عربي دګرانو او په پښتو کې عام نه استعماليدونکي الفاظو ډير زور دی . داسې قسم الفاظ نه يوازې دا چې ديو عام لوستونکي دپاره پرې پوهيدل ګران دي ، بلکه په ځنو ځايونو کې خو ترجمه داصل نه هم ګرانه غوندې شي لکه :

**گلستان**: عابدان جز ای طاعت خواهند و بازرگانان بهای بضاعت.

**گلدسته** : عابدان جزا د طاعت غواړي او سوداګران بها د بضاعت .

**گلستان**: تقدير خداوند حقيقی چنين بود .

**گلدسته** : بلکه تقدير دحق عزا سمه په دا مقدار شوی و.

**گلستان**: ( بادشاه ) بفرمود تا مصارعت کنند.

**گلدسته** : حکم يې وکړ چې سره دې مصارعت وکا.

**گلستان**: که فلان در این شهر طبعی کریم دارد و کرمی عمیم.

**گلدسته** : چې فلا نه په دی ښهر کې طبع کریم لري . کرم عمیم.

**گلستان**: به برخی از ان ما را دستگیری کن.

**گلدسته** : وجه قرض دست گردان څه را کړه .

**گلستان**: ملک را سخن او مطبوع آمد .

**گلدسته** : د بادشاه دا خبره مطبوع پسنده شوه .

**گلستان**: از حیاتش رمقی مانده بود .

**گلدسته** : له حیاته یې پاتو رمق.

**گلستان**: با جوانی اتفاق مخالطت بود.

**گلدسته** : ( یو ځوان سره ) اتفاق د مخالطت واقع شوی و.

**گلستان**: اگر بکرم قدم رنجه شوی مزد یابی.

**گلدسته** : که ته تصدیع و څکوې قدم رنجه کړې اجر به بیا مومې.

**گلستان**: خرچ فراوان کردن مسلم کسی را باشد که دخل معین دارد.

**گلدسته** : ډیر خرڅ کول هغه ته مسلم دی چې دخل معین لري.

**گلستان**: عقوبت همی کرد .

**گلدسته** : تعذیب یې کاوه .

**گلستان**: محک داند که زر چیست.

**گلدسته** :محك پوهیږی چې زر مغشوش دي که خالص.

**گلستان**: توانگران مشتغل اند بمناهی و مست ملا هی.

**گلدسته** : تونګران مشغول په مناهی دی مست په ملاهی.

**گلستان**: رسوم فلان را چندان که هست مضاعف کنید .

**گلدسته** : دفلا نه خدمتګار یو میه تر سابق مضاعف کاندی .

**گلستان**: مرد بیگانه دید بازن او بهم نشسته.

**گلدسته** : له حرم سره يې يو نامحرم په خپل حرم کې ولید.

**گلستان**: دعوای خدایی کرد.

**گلدسته**: دعوی یې د ربوبیت کړې وه .

**گلستان**: (بمقامی) که از دز دان پر خطر بود.

**گلدسته** : چې له غلو نو له قطاع الطریق خطر ډیر و.

**گلستان**: عطای او به لقای او بخشیدم.

**گلدسته** : دده عطا مې دده په لقا وبخښله.

۳ـ عبدالقادر خان یو لوړ عالم و. ځکه کیدی شي چې هغه دداسې قسم الفاظو ګرانتیا نه وي محسوسه کړي ، ځکه يې داصل دا الفاظ په خپل عبارت کې په خپل ځای قایم ساتلي وی. یایې دغه بدل ګران الفاظ آسان ګڼلي وي، ولې ځنې ځایونه پکې داسې هم شته (اګر که خال خال دي) چې لفظي ترجمه یې دنور ي ترجمې ښکلا سره سمون نه خوري. او د پښتو (کم نه کم ننني) محاورې سره هم سمه نه ښکاري.

**گلستان**: دریغ آمدم تربیت ستوران .

**گلدسته** : دریغ راغی چې تربیت کوم د چارپایانو

**گلستان**: هر دو را حبس کردند .

**گلدسته** : دواړه یې بندي خانه کړل.

**گلستان**: و پدر را وداع کرد. یا وداع کردیم.

**گلدسته** : له پلاره يې وداع وکړه ، یا نور موځبله وداع وکړه .

**گلستان**: تلطف نمود و تأ سف خورد.

**گلدسته** : تلطف یې ډیر وکړه تأ سف یې وخوړ.

**ګلستان:** گفت ای حکیم از من چیزی بخواه.

**ګلدسته** : ورته یې ووې: خپل مقصود معلوم کړه چې حاصل یې کړم.

**ګلستان:** جان بحق تسلیم کرد.

**ګلدسته** : ځان یې په حق تسلیم کړ.

**ګلستان:** پسرش خمر خورده .

**ګلدسته** : زوی یې خمر خوړلي وو.

**ګلستان:** وراه از حرامیان پر بود.

**ګلدسته** : چې له حرامیانو ډیر خطر وو. ( حرامیان = غله یا شوکمار)

**ګلستان:** جمعیت یا تنگندستی صورت نه بندد.

**ګلدسته** : جمعیت له تنګدستۍ سره صورت نه تړي.

**ګلستان:** زمین خدمت ببوسید.

**ګلدسته** : زمکه یې دخدمت کښل کړه .

**ګلستان:** خدا یا جانش بستان.

**ګلدسته** : خدایه ځان یې رانسې.

۴ـ په ګلستان کې دځینو افرادو یا د ښار و نو او ځایونو نومونه راغلي دي، عبدالقادر خان په دې کې اکثر نومونه حذف کړي دي. لکه :

**ګلستان:** گر به ابو هریره را بلقمه ننواختی و سگ اصحاب کهف را استخوان نینداختی.

**ګلدسته**: پیشو ته اچول طعام ، سپي ته اچول دهډوکي ورته دځان غوښه پریکول هډ ماتول و.

دغه شان : "یکی از ملوک پارس ، بمصلا ی.شیراز ،بر گنبد عضد. نخور محشری و غیره کې یې دغه نومونه نه دي ورکړي."

**ب : دنظم برخه :**

ترجمه خویو خواته ، دفارسي، اردو ( او دپښتو ) د ځنو ښو شاعرانو د مثنوي ګانو په حقله دا اعتراض هم کیدلی شي. خو شاعر محض د شعر د پوره کولو دپاره ورسره دویمه مصرع داسې ولګوي. چې دهغې ضرورت نه وي . خو دا خامي د ګلدستې په شعرونو کې د نیشت برابره ده . دعبدالقادر خان دپاره ددې خامۍ نه ځان ژغورل نسبتاً ګران په دې وو چې هغه په اکثرو موقعو کې د شیخ سعدي دیو یو شعر ترجمه په دوو دوو دریو شعرونو کې کړې ده . په دې صورت کې یو شاعر مجبور وي چې څه نا څه الفاظ ، جملې یا خبرې دځانه پکې زیاتې کړي. عبدالقادر خان هم بې شکه چې په داسې موقعو کې داسې کړي دي،خو هغه یې په داسې مناسبت او موزونیت سره کړي دي چې هیڅ غرابت او او پردیوالی پکې نه ښکاري.

دا یوه منلې شوې خبره ده . چې دیو شعر نزاکت ، باریکي او خوبي په بله ژبه کې نشي را اړولی کیدی . بیا د ګلستان خو کمال هم دادی چې هم ددې ژبی لوړ و لوړو شاعرانو سره دخپله کوشښه ددې جواب و نه کړی شه ، نو که یو مترجم په دې حقله پاتې راشي، نو ګرم نه دی . په دې ګرانو کې یوه غټه ګرانه دیوې ژبې محاورې په بله ژبه کې په همدغه رنګ کې نه بیا موندلی کیدل دي . لکه د مثال دپاره دسعدي دا رباعي واخلې:

نه بینی که پیش خداوند جاه ستایش کنان دست بر سر نهند
وگر روزگارش درآرد زپای همه عالمش پای بر سر نهند

په دې رباعي کې دست بر سر نهند ، پای بر سر نهند ، در آرزو پای داسې محاورې دي چې د رباعي پرې ټول خوند جوړ دی ، ځکه ترجمه یې په بدل رنګ کې کړې ده . یعنې:

د دنیا دولت چې مخ کا وسړ ی ته
خلقي ورسره کاندي یاري ډیرې
چې نکبت ورته دو خارشي اقبال شاکا
همګي یاران یې کاندي یاری هیرې

دغه شان د شیخ سعدي یو شعر دی چې:

بهم بر مکن تا توانی، دلی — که آهی جهانی بهم بر کند

په دی شعر" بهم بر کردن " کې یو داسې محاوره ده چې دوه ځایه په دوو معنو کې راوستې شوې ده . دې نه علاوه د " آهی " او " جهانی " الفاظو په دې شعر کې زباني لطافت پیدا کړی دی، دغه وجه ده چې ددې ترجمه په همدغه خوند کې و نه شوه . ترجمه یې داده :

یو کور څه چې له دې اوره لوی ښهرونه
هسې سوزي چې عالم یې ننداره کا

په ځینو الفاظو کې یو خاص اثر او کیفیت وي چې هغه په بله ژبه کې نه شي را اړولی کیدی ، لکه د شیخ په دی شعر کې چې:

چه سالهای فراوان و عمرهای دراز
که خلق برسرما بر زمین بخواهد رفت

"سالهای فراوان " او" عمرهای دراز" داسې په اوږدآواز لوستلی شي چې ددې کلونو او عمرونو اوږدوالی یې لا زیات کړی دی . دې سره د "چه " ټکي نو ر هم اثر پیدا کړی دی . او چې ددویمې مصرې " خلق بر سرا ما بخواهد رفت " سره دا یو ځای شي، نو شعر څو مره اثر ناك او عبرتناك شي چې لوستونکی یې محض احساس کولی شي. اظهار یې نه شي

کولی. دا تولې خبرې به څوك په بله ژبه كې په همدا شان اثر، خوند او عبرت آميزه لهجه كې راوړولی شي؟

هم دغه وجه ده چې دعبدالقادر خان ترجمه هم په ځينو ځايونو کې اصل ته نه ده رسيدلې، لکه دمثال په طور به يو شعر واخلو ددې شعر ترجمه يې داسې کړې ده:

څو څو کالو نه به راباندې تيرشي
شيرين صورت مې به په بل بل پير شي

که دا شعر د سعدي د شعر په مقابله کې کينبودی شي ، نو په دې کې دزمکې او آسمان فرق دی . هم دغه شان د سعدي يو مشهور شعر دی:

خر عيسی اگر بمکه رود    چون بيايد هنوز خر باشد

ترجمه يې داسې شوې ده :

وخپل اصل ته رجوع دهر څه کيږي    چې پکې دخره رګ و آخر قچر شه
تربيت و ته قابل اصل بايده دي    په بد ذات د تربيت کله اثر شه

( په دې موقع درحمان بابا دا شعر سړي ته ور په ياد شي. کوم چې دسعدي ددغې شعر مفهوم اداءکوي:

دمکې په بزرګۍ کې هيڅ شك نشته
ولې خر به حاجي نشي په طواف

خو داسې قسم ځايونه په ګلدسته کې ډير کم دي او صرف په داسې موقعو کې ليدلی شي، چرته چې هغه په ترجمه کې داصل د مطابقت کوشش کړی دی ، خو عبدالقادر خان ډير هوښيار مترجم دی . هغه داکثرو اشعارو ، رباعياتو يا قطعاتو ترجمه بالکل آزاده کړې ده او دسعدي تش مفهوم يې په خپلو الفاظو کې څرګند کړی دی . په داسې طريقه مترجم ته د خپل قلم زور ښودلو ښه موقع په لاس ورځي. عبدالقادر خان هم په ځينو

ځینو ځایونو کې خپل کمال ښودلی دی، چې د لوستونکي د خولې نه ورته بې ساخته آخ وځي . دمثال دپاره زه یو څو نمونی ورکوم.

سعدي:

از دست وزبان که برآید کز عهده شکرش بدر آید

عبدالقادر خان وايي:

ښتن مې رب دی زه یي مربوب یم
بنده دده یم که خوب نا خوب یم
غرق په اوبو کې کله او به ویني
نعمت یې نه وینم په نعمت ډوب یم

په دې کې ددویم شعر جواب نشي کیدی.

دغه شان د سعدي دا شعر ولولئ:

زود بینی شکسته پیشانی تو که بازی بسر کنی با قوچ

عبدالقادر خان یې ترجمه کوی:

زر به ووینې سر مات ماغزه وتلي
چې له مږ سره ټکروهي پرې زغلي

په دې کې د " شکسته پیشانی " په مقابله کې سر مات ماغزه وتلي او د " بازی به سر کنی" په مقابله کې" ټکر وهي پرې زغلي" څومره واضحه او فطري منظر کشي ده .

دښکلې او آزادې ترجمې نه علاوه چې بره یې یو دوه مثالونه تیر کړی شول ، عبدالقادر خان په ځینو ځایونو کې نه یوازې دا چې دګلستان فارسي یې په پښتو را اړولې ده ، بلکه ورسره یې ماحول هم پښتني پیدا کړی دی . په داسې موقعو کې داسې معلومیږي چې دا ګلدسته دایرانی ګلونو، نه ، بلکه دخپل وطن د ګلونو نه یې تړلې ده . بې ځایه بەنه وي که دلته زه یو څو داسې مثالونه وړاندې کړم:

**گلستان:**

(آ نانکه بکنج عافیت بنشستند
دندان سگ و دهان مردم بستند)
کاغذ برریدند و قلم بشکستند
و از دست و زبان حرفگران رستند

**گلدسته :**

(چې په کنج د عافیت یې زړه آرام شي
عاقبت دعافیت په گنج شاد کام شي
ددې گنج ویره هرگز زوال نشته
هېڅ دولت له دې دولت سره سیال نشته)
چې قانع په خامتائین شي په شړې
غم یې نه وي د بادشاه له امیرۍ

**گلستان:**

غریبی گرت ماست پیش آورد
دو پیمانه آبست و یک چمچه دوغ

**گلدسته :**

چې یوه کاسه او به چمچه شنو بی شي
دفقیر کره اوگره هاله شي سپینه

**گلستان:**

لوح نادرست کرده بشستندی و بر سر همدیگری شکستندی

**گلدسته** : د تختې و ینځل به یې بهانه کړه په سنید کې به یې لا نبل په دې آخري فقرو کې سعدي خو دایران یا دعامو مکتبونو نقشه راښکلې ده، چې هلکان خپلې تختې استاد ته د ښودلو نه بغیر ووینځي. او بیا په

دغو تختو د یو بل سرونه ماتوي، عبدالقادر خان دغه مکتب ( دسرای یاد نوښار ) د سیند په غاړه ویني . چې هلکان د تختو د وینځلو په بهانه سیند ته لاړ شي. او هلته تختې په ځای پریږدي او لانبل شروع کړي. دغه شان سعدي یو ځای کې د " سیب " ( مڼې ) ذکر کړی دی . عبدالقادر خان د سیب په ځای " شفتالو " لیکلی دی . غالباً دا په دې وجه چې شفتالو د سیبو نه ډیر عام ځیز دی . په یو ځای کې یو سړي سره د صلح کولو په موقع وایي:

طریق مدار پیش گرفتیم و سر بتدارک بر قدم یکدگر نهادیم و بوسه بر سر و روی دادیم .

عبدالقادر خان یې ترجمه داسې کوي:" از روی تدارك موځبله قدم بوسي وکړه، سره بغل ګیر شوو. "

په ځینو ځایونو کې خو عبدالقادر خان د ترجمې داصولو او حدودو نه هم ور آوړیدلی دی، یعنې هغه په خپله ګلدسته کې داسې نو مونه راوستي دي ، چې ګلستان سره یې هیڅ تعلق نشته، لکه واخلې دکاکا صاحب علیه الرحمه ذکریې په داسې ډول په متن کې راوستی دی.

چې یې رحمت په عالم اظهار شي
په هغو رحم د کرد ګا ر شي
نه په نمونځو نو نه په روژه ده
چې رحم کار شي شیخ رحمکارشي

په یوه بله موقع یې دخپل پلار خوشحال خان نوم په متن کې داسې راننه یستی دی، وایي: " په دا مقام رباعي د صاحب قبله ولي نعمي

خوشحال ختټك حق تعالى دى په قبر نور كا، را ياده شوه . په طريق د تبرك مرقوم شوه . "[۱] (باب ۴ ح ۲)

دا خبره د ترجمې د اصولو نه خلاف ده ، ولې داسې ښكاري چې هغه دا تصرف دې بزرګانو سره د خپل اعتقاد په وجه كړې وي. يا به يې په ګلدسته كې پښتني رنګ پيدا كولو دپاره كړې و ي. په دې زمره كې د ځينو داسې نومونو د حذف كولو ذكر وړاندې تير شوى دى ، كومو سره چې پښتانه بالعموم نامانوسه دي.

په ګلستان او ګلدسته ديو عمومي نظر اچولو نه پس اوس ښايي چې ددې شاهكارونو دليكونكو په حقله هم يو څو كرښې وليكلى شي.

# شيخ سعدي(رح)

تر اوسه پورې خو دده نوم مصلح الدين مشهور و، ولې د شيخ سعدي د كلياتو د ټولو نه زړه نسخه كې ، كومه چې دانډيا آفس په كتب-خانه كې پرته ده او دكومې نمبر ۱۱۱۷ دى ، دده نوم يې شيخ شرف الدين بن مصلح الدين ليكلى دى . دانسخه د شيخ سعدي دوفات نه ايله څلور ديرش كاله وروستو ليكلې شوې ده او كاتب يې (ابو بكر بن على بن محمد ) دخپلې نسخې په آخره كې ليكى چې:" منقول من خط الشيخ العارف السعدي .[۲]" نو په دې بنا محققينو اتفاق كړى دى چې د هغه نوم شرف الدين و.

---

۱_ غم دغليم و ته له دله دور كړه　　خاندَه هوس كړه ښادي سرور كړه
كه مخ د زيړ شي له دلګيرى　　ته يي په دواړه څپيړې سور كړه

۲_ شعر العجم په حواله د شيخ عبدالقادر، پروفيسر د پونى ددكن كالج.

دی په شیراز کې پیدا شوی و، د پیداوښت دکال په حقله یې ډیر اختلاف دی، خو دومره یقین سره ویلی شو چې دی د ( ۵۸۰ هـ ) ( ۱۱۹۳ م ) او ( ۵۸۹ هـ ) ( ۱۱۹۳ م ) په منځو ما نه کې پیدا شوی و. تعلیم یې اول په شیراز کې او بیا د بغداد مدرسه نظامیه کې وکړو . ددې نه پس اصفهان ته راغی. دا هغه ورځې وې په کومو کې چې منګولو په ایران باندې خپل تاختونه شروع کړي او لنډی قیامت یې پکې جوړ کړی و. هر کله چې دده محسن تابك سعد ( د چا په نامه چې ده خپل تخلص هم اینبی و) دخوارزم د باچا غیاث الدین د لاسه د تخت نه کوز کړی شه ، نو دده دژوند دویم دور شروع شه ، ده خپل وطن پریښو او ددنیا د سیل او سیاحت دپاره ووت . دده دسیلونو او په ملکونو ملکونو د ګرځیدو دادور د ۱۲۲۶ ع نه شروع کیږی او په ۱۲۵۶ع کې ختمیږي. په دی دوران کې ده بلخ ، بخارا، غزنی، حجاز ، یمن ، شام ، فلسطین و غیره و غیره ملکونه کچ کړل او دهند په ګجرات کې د سومنات ترسنده پورې هم ورسید. په فلسطین کې په یوه غزاکې هم شریك شه، په دغه غزا کې دی د فرانك سپاهیانو ونیوه او دجنګ دقیدي په حیثیت یې طرابلس ته بوته ، هلته یې لکه د نورو قیدیانو سخت مشقت هم وکړو ، آخر یو آشنا پرې پیښ شه ، هغه یې بو نګه( زرقدیه ) ورکړه او دی یې را خلا ص کړ. او خپله لور یې ورله په نکاح کې ورکړه . ددې نه وروستو دی بیا په سفر ووت او دقطبي افریقې ځنې ملکونه او په اَیشایي کوچك کې وګرځید. آخر د کال ۶۵۳ هـ ( ۱۲۲۹ ع) خوا و شا کې بیرته خپل وطن ته راغی . دغه وخت دده عمر اویاو کالوته رسیدلی و. اوس په شیراز کې دسعد د زوی ابوبکر باچاهي وه ، د منګو لو قیامت تیر شوی و، او په ملك کې قلا ره قلا ري وه . ځکه دی په شیراز کې مستقل پاتې شه. او پاتې عمر یې په زهد عبادت او

تصنیف او تألیف کې واړاوه . آخر په ۶۹۱ هـ [۱] کې دیو سل او لسو ( ۱۱۰ ) کالونو خواو شا عمر کې په حق ورسیده .

دشیخ سعدي د ژوند په حالاتو که هر څو ډېر کتابونه لیکلی شوي دي، ولې د ځینو نورو لوړو شاعرانو په شان دده د ژوند حالات هم په تیاره کې دي ، خو د خوش بختی نه ده پخپله په ګلستان کې ډېرې قصې او واقعات دخپل ژوند د پیښنو، تجربو او مشاهدو په بنا لیکلي دي ، ځکه ددې نه د سعدي د سیلانې او ژوندي زړه ، ښکلی مذاق ، دجفا کش او قانع طبیعت په حقله ډېرڅه معلومیدی شي.

سعدي دایران دټولو نه لوی شاعر او ادیب ګڼلی شي ، دده په ګڼو تصنیفاتو او تألیفاتو کې ګلستان او بوستان داسې شاهکار ونه دي چې دده نوم به تل تر تله ژوندی ساتي .

# عبدالقادر خان ختټك

عبدالقادر خان ختټك د پښتو ژبې د نومیالي شاعر خوشحال خان ختټك زوی و، دی په ۱۰۶۳ هـ ( ۱۶۵۳ م ) کې زیږیدلی و. دده د نوم " عبدالقادر خان " نه دابجد و په حساب دده د پیدا وښت کال راوځي . دده د کلا م نه دا ثا بتیږي چې ده ددغې وخت دټولو مروجه علومو زده کړه کړې وه . په شاعری کې خو برخیره ده چې لکه دنورو وروڼو به ده دخپل پلار نه استفاده کړې وي. دی دیوې او چتې پایې شاعراو ادیب خو و، خو دقلم سره سره لکه د پلار د تورې خاوند هم و . او په ډیرو موقعو کې

---

۱_ دسعدي وفات پحقله هم اختلاف دی . حمدالله مستوفي د سعدي د وفات نه ځلوېښت کاله پس دده وفات ۶۹۰ هـ (۱۲۹۱ع) لیکلی دی.

يې خپل پلار سره اوږه په اوږه ددښمن مقابله کړې وه ، د ګنبت په جنګ کې خو ژوبل شوی هم و، خو دپلار دوفات نه پس داسې ښکاري چې ده خپله توره تيکې ته واچوله او تر آخري وخته يې بيا د تيکي نه راونه ويسته ،ځکه چې دی طبعاً يو صوفي منش غونډې سړی و او په ګوټ کې دناستې زهد او رياضت ژونديې خوښ و. او همدغه وجه وه چې په ۱۱۲۴ ﻫ کې په نوښار ګوشه نشين شه. ددې ذکر په ګلدسته کې دتأليف سبب ښودلو په موقع داسی کړی دی.

" ..... په زر سل ځلويښت هجري نبوي صلی الله عليه وسلم په سبب د حوادث روزګار بې ياره بې دياره بې مونسه بی غمګساره په نوښهر کې په يوه کلبه اندوه کې لکه دصحرا په غار کې مې اوقات ګذاري کوله "

په دی بيان کې ځنې الفاظو يعنې" په سبب د حوادث روزګار " بې ياره " "بې دياره بې مونسه بې غمګساره " " کلبه اندوه " نه دا ښرګندېږي چې دده دژوند ( کم نه کم ) آخري ورځو کې د غم او اندوه وريځې را خورې شوې وې . دا هم ويلی شي چې دده خپل وراره افضل خان ختټک سره ځه زړه بداو ی راغلی و. او ددې وجه دا ښودلې شي چې ده دهغه مشرۍ نه منله کيدی شي چې دده ددغې غم او فکر وجه هم دغه وي. ددوی دمخالفت په سلسه کې د ې پوري ويلي شوي دي چې عبدالقادر خان په آخره کې دافضل خان دلاسه يا دده په ايماء ووژلې شه .

عبدالقادر خان دخپلی ګوشه نشنۍ دذکر په موقع وايي:

دوه شپيته کاله دې لاړ عمر په لهو

عبادت د په عادت ، نيکي په سهو

ددې نه دا معلوميږی چې دی دخپلې ګوشه نشينۍ په وخت کې ددوو شپيتو کالو و. په هم دغه زمره کې بل ځای ده دخپلې ګوشه نشينۍ نيټه زرسل ځليريشت ( ۱۱۲۴ ﻫ ) ښودلې ده، که ددی نه دوه شپيته کاله

وباسو، نو دده د پیداوښت کال ۱۰۶۲ هـ راوځي . خو په تاریخ مرصع کې دده د پیداوښت کال سنه ۱۰۶۳ هـ ښودلی شوی دی . او همدغه صحیح دی، ځکه چې ددو شپیتو کالو زباني حساب کې د میاشتو فرق راتلی شي. او دمیاشتې نیمې فرق هم د سن په شمیره کې فرق راوستی شي.

دده د گوشه نشینۍ ژوند څه داسې نه و چې با لکل یې هر څه ته شاکړې وه، بلکه خپل نمونځ اودس او زهد او عبادت سره سره یې د علم خورول هم خپله یوه مشغولا گڼلې وه . او حقه دا ده چې دا هم یو ښه عبادت دی، په دې حقله هغه خپله وایي :

" باقي عمر ځان ته د ناستې او پښې د قناعت په لمن کې نغښتې بهتر د ي. مشغولاله کتابه ، ورتله په لوري د مسجد ، چې سعادت ددنیا و آخرت دی ، غنیمت گڼلی بویه . اکثر به تنها ناست وم . کله کله به بعضې یاران راغله استفاده به یې دعلم عربي و فارسي کوله ."

ددې عبارت دآخري جملې نه زموږ ددې خیال تصدیق هم کیږي . چې عبدالقادر خان یو ښه عالم فاضل سړی و. او په عربي او فارسي ژبو علومو کې یې دومره قابلیت لاره چې دهغه دوستانو به هم ترې استفاده کوله . دعربي او فارسي علومو نه د هغې وخت مروجه علوم مراد دي . او دهغې وخت مروجه علومو کې تفسیر ، حدیث ، فقه، منطق و غیره و غیره شامل وو.

په فارسي ژبه یې د عبور یو غټ ثبوت دادی چې هغه د سعدي دگلستان او جامي د یوسف زلیخا ډیرې ښکلې ترجمې کړې دي . او په یوسف زلیخا کې خو یې یو څو شعرونه دعربي ژبې هم لیکلي دي . ددې نه یې په عربي ژبه کې ددسترس اندازه لگیدی شي. په پښتو کې یې د فضیلت د ثبوت دپاره دغه گلدسته او دهغه دیوان بس دی . دا موږ نه

وايو، بلکه دهغه خپل هم په ځان دومره باور و. په يوه موقع يې د يو غزل په مقطع کې شاعرانه تعلی هم وکړه چې:

لکه زه په يار مفتون يم بل به نه وي مفتون هسې
لکه زه پسې مخزون يم بل به نه وي محزون هسی
پرون غير په غير له ياره نن ترميان شو هوادونه
دا انصاف دزمانې دی چې نن هسې پرون هسې
په کاته د سترګو زړه وړي په خبر و ځنې صبر
د جهان په مخ به نه وي سحر هسې افسون هسې
په قيامت به هم په هوش د محبت ليوني نه شي
چې به روغ شم بې ديدنه زما نه دی جنون هسې
خط په مخ ددلبر راغی ، شورد زړه په بازار ګډ شه
چې دحسن بادشاه ليږدي ددې خط دی مضمون هسې
د ژوندون فايده داده چې د يدن کوي د ښکلو
چې يې دا فايده نه وي مرګ بهتر تر ژوندون هسې
آيئنه د خپل زنګون و ماته جام جهان نما شوه
ځکه سر لرم تل اينبی دفکرت په زنګون هسې
د دنيا په دښمنۍ کې عيسیٰ لاړ شه تر آسمانه
په دوستۍ کې يې لاځي تحت الثرا ته قارون هسې
دا غزل په پښتو ژبه چې بيان عبدالقا د ر کړ.
دروغژن يم که بې خانه وايي بل يو پښتون هسې

داهغه تاريخي غزل دی ، چې دهغې وخت لوی لوی شاعران، لکه معزالله ، صدر خوشحال، محمدي يي را لړ زولي وو او هغوی ددې غزل جوابونه ليکلي وو.

ویلی شي چې دی دلاهور د شیخ سعدي مرید، بلکه دهغه خلیفه هم و او هم په دې وجه به یې ده ته خلیفه صاحب هم وې . لنډه دا چې عبدالقادر خان دخپل وخت یو لوی عالم فاضل شاعر او ادیب و او ورسره یو نیك ، پرهیزګاره ، ګوشنه نشین او صوفي طبع سړی و.

پښتو اکیډیمي په ډیر و کوششونو د ګلدستې دوه نسخې پیدا کړي او دتصحیح او تنقیح نه پس یې چاپ کوي ، زموږ دا کوششونه ستاسو وړاندې دي . دي ته ښه او بد ویل ستاسو کار دی .

خیال بخاري

# دګلدستي متن

مقا بله، تصحيح او حواشي

د

ډاکټر عظيم شاه خيال بخاري

۱۹۶۱م

بِسمِ اللهِ الرَّحمٰنِ الرَّحِیمْ

ثناصفت خدای لره جل جلاله عم نواله چې طاعت یې موجب دقربت دی او شکر یې په نعمت سبب دزیاتیدو دنعمت ، هره ساه چې ښکته شي، مدد دژوندون ده، چې راپورته شي خوښي دوجود ، پس په هر نفس کې دوه نعمته دي موجود ، په هر نعمت شکر لازم.

## رباعي

دښښتن مې رب دي زه یې مربوب یم
بنده دده یم که خوب نا خوب یم
غرق په اوبو کې کله اوبه و یني
نعمت یې نه وینم په نعمت ډوب یم

دحق تعالی نعمتونه هومره نه دي چې بنده یې دشکر له عهدې ووځي، بویه دا چې اعتراف په خپل عجز وکا . سُبحَانَکَ مَا شَکَرنَاکَ حَقَّ شُکرِکَ جاري په خوله کا[1]

---

(1) از دست و زبان که برآید کز عهده شکرش بدرآید

## قطعه

بنده هغه بهتر دی چې له خپلوتقصیرونو
عذرونه په درگاه دخپل څښتن همیش راوړینه
کله څوك توانیږي لکه حق یې دصفت دی
نبي دي که ولي دی چې ثنا ادا کوینه

[1]خوان یې د رنګ رنګ نعمتونو په هر لوري غوړولی دی. (مسلمانان دي که کافران دي واړو ته رسیډلی دی[2])ګناهونه ویني پرده پوښي کاندي په سبب دعصیان منع درزق له چانه کاندي.

## مثنوی

( پلار چې هومره ډیرمشفق دی په فرزند
که عصیان دده له زویه شي څرګند
البته دده د بخرې نقصان وکا
د بل زوی په دې زوی رجحان وکا
هسې رنګ که یار له یاره لږ آزار شي
وهر چا و ته کښیني څنې یې زارشي

---

اِعملوا آل داود شكراً وقليلٌ مّن عبادیَ الشّكور
۱- بمراد: رحمت بحبانش همه را رسیده
۲ـ ز

هسې ورور چې يې زوولی وي له موره
په لړ خه يې چې زړه بد شي نوريې گوره
په خدمت کې که سستي خدمتگار وکا
خپل صاحب يي کامت داد راروکا
اما خدای زموږه هسې مهربان دی
چې کرم يې په ښه بڈ باندې يکسان دی
رزق روزي وښو و بدو ور کوينه
په گناه د هيچا رزق نه ورك کوينه
بهره مند د ده له خوانه کل عالم دی
که سړي دي که پيري که گرم ناگرم دی[۱]

باران درحمت يکسان په ښه بده ځمکه و ووري، رنگا رنگ بوټي زرغون کا، له ځينو فايده سترگې واخلي، له ځينو پوزه،څوك خوراك دانسان ، څوك دحيوان، بعضې دارو دبيمارانو، بعضې کيميادکيميا گرانو[۲]

## قطعه

لمرسپوږمی بادو ور يځې چې تل ښکته پورته ښوري
همگي ستا په خدمت دي شپه و ورځ دتا غمخوري

---

۱ـ ای کريمی که از خزانه غيب گبرو ترسا و ظيفه خور داری
دوستان را کجا کنی محروم تو که با دشمنان نظر داری

۲ـ داصل کتاب عبارت اوړد او بدل دي.

رزق روزي درته موجودکا د رحمت باران و اوري
دايې ستا دپاره هست کړه ته غافل د حق له لوري
چې په دا نعمت ړانده شي په قيامت به وي مختوري[۱]

په خبر کې راغلي دي له سرورکاينات چې ،( خلاصه د موجودات دی. سبب دخلق دمخلوقات دی)[۲]

## نظم

په ظاهر دآدم زوی په معنیٰ پلار و دآدم
ظهور يې په آخر په حقيقت کې مقدم
محمدرسول الله چې تل له ما په ده هردم
صلی الله تعالیٰ علی النبي وَسلّم[۳]

## قطعه

دامت ديوال دې غم د پرتل نه کا
چې دتاغوندې رسول يې پشتيبان وي
دهغوی بيړی به خرنگه ډوبيږي
چې خود نوح نبي الله يې کشتيبان وي

---

۱ـ ابرو بادو مه و خورشيدو فلك درکار اند تاتونانی بکف آری و بغفلت نخوری
همه از بهر تو سرگشته و فرمان بردار شرط انصاف نباشد که توفرمان نبري
۲ـ ﺭ مفخر موجودات، رحمت عالميان ، صفوف آدميان ، تتمه دور زمان.
۳ـ داشعرونه دعربي ديو شعر او دسعدي ديوې مشهورې رباعي په ځای راوړي دي چې اوله مصرع يې داده : بلغ العلی بکماله.

هرگاه چې یو له بندگانو گنهگارانو[۱] چې لاس د پښېمانۍ دندامت په امید داجابت. په درگاه درب العزت پورته کا. حق تعالیٰ درحمت نظر پروبه کا، بیا بنده زاري وکا، حق تعالیٰ تر اعراض وکا، بیا بنده عاجزي او خواري خپله بیان کا. حق تعالیٰ ووایي چې ای فرښتو! د بنده خواست مې قبول کړ. ومې باخښنه چې دی بې له مانه بل څوک نه لري، چې زه دده حاجت پوره نه کړم، څوك به یي پوره کا؟ دا بنده چې ما ته ډیره ډیره زاري کا، شرم رادرومي چې اجابت یې دخواست ونه کړم.

## بیت

کرم عنایت گوره په بنده د کردگار
گناه بندگان وکا، ځنې دی وی شرمسار

(دعبادت کړوني یې به تقصیر دخپل عبادت مقر. چې سبحانك ماعبدناك حق عبادتك. صفت کړوني یې قائل په لَاْ اُحْصِی ثَنَاءً عَلَیْكَ عارفان یې په خپل عجز معترف. چې سُبْحَانَكَ مَا عَرَفْنَاكَ حَقَّ مَعْرِفَتِكَ)[۲]

## نظم

داثنا صفت به څه پوښتې له مانه
څه به وایې بیدلان له بې نشانه

---

۱ـ ح: پریشان روزگار
۲ت: عاکفان کعبه جلالش به تقصیر عبادت معترفند، که ما عبدناك..." وواصفان علیه جمالش بتحیر منسوب که ماعرفناك..."

عاشقان په تیغ وژلي معشوقې دي
له وژلو آواز کله خیژي جانه

یو له بزرګانو سریې په ګریبان دفکر ننه یستلی و. په سیند کې دمکاشفې مستغرق و. پس له درنګ یې سر راپورته کړ. یو له یارانو چې محرم و، عرض یې وکړ: په دې بوستان کې چې ته وې، موږ ته دې څه تحفهٔ کرامت راوړه؟ وې ویې چې په خاطرمې ووې چې دګلو ونې ته چې ورشم، لمن به له ګلونو پوره کړم، چې لمن مې له لاسه پریوته.

## رباعی

ولاړوم باغ ته په نیت د ګلو
د پر یکو لو د تو لو لو
په بوی یې مست شوم بیخوده پریوتم
توان مې هیڅ نه و لکه په ملو[1]

## قطعه

اې د سحر چرګه ! عشق حاصل کړه له پتنګه
وسوزي په اور کې هیڅ آواز نه کاله ننګه
هرچې لاف دعشق کا بیا له عشقه ګفتګوی کا
تشې دعوې کاندي په سالوس یې جامه رنګه
ګفت په شریعت کې دی سکوت په حقیقت کې
کله ویل کا ندي مقرب دشاه له څنګه

## رباعي

ای چې برتریې له وهم وخیاله ستا له صفته ژبه ده لاله
مجلس تمام شه عمر آخرشه آغاز دمدح دی ستا له جماله

[۱]پس دخدای تعالی له حمد او درسول الله صلی الله عیله وسلم له نعته دستور دمصنفانو دی چې مدح دخپل وخت د بادشاه وکاندي. لکه شیخ سعدي نورالله مرقده دابوبکر سعد زنګي صفت په ګلستان کې کړی دی. اما موږ په هسې زمانه کې پیدا یوو چې حاکمان بادشاهان ددې عصر واړه ظا لمان او مبتدعان دي. په مدح کې یې مادح دذم شي.تر خالقه تر مخلوقه ګرم شي. په دنیا کې ښه عالم پرې بدګمان شي، په آخرت یې ددین زیان شي، لکه مولوي روم رحمت الله عیله فرمایلي دي.

## بیت

مي بلرزد عرش از مدح شقی بدګمان ګردد زمدحش متقی

په داسبب دعصر بادشاه معینه مدح ونه شوه، خو په دا اختصار وشه "اَللّٰهُمَّ اَنْصُرْ مَنْ نَصَرَ دِیْنَ مُحَمَّدٍ-اَللّٰهُمَّ اَخْذُلَ مَنْ خَذَلَ دِیْنَ مُحَمَّدٍ" هر بادشاه حاکم چې سعید وي که قریب وي، که بعید وي ،که زنګي که فرنګي وي، که ترك وي که تاجك وي، که حبش وي که دروم وي، که پښتون که هندکی وي چې عادل وي حق تعالیٰ دې

---

۱ ـددي نه وروسته دتاریخ تر قطعې پورې اول عبارت دعبدالقادر خان خپل دی، بي ددي قطعي نه چې"خاوري واخستي په لاس کې سمن روي..؛" الخ چې د" سعدي " ددي مشهورې قطعې ( ګلی خوشبوی درحمام روزی.... الخ ترجمه ده.

په دنیا کې سیوری په مسلمانانو ممدوده لري. او په عقبیٰ کې دې مرتبه مسعوده لري.

## مثنوی

په قیامت به وي دعرش ترسیوري لاندې
بادشاهان چې عادلان شي عدل کاندي
په هر قوم چې کرم د کردگار شي
سرداران به یې دینداره نیکوکار شي
ښه حاکم رحمت په خلقو دسبحان دی
بدصورت که دانسان لري شیطان دی
نشانه د خدا ی د قهر بد حاکم وي
چې هیڅ عدل انصاف نه لري ظالم وي
په هر لوري کا د ظلم لمبې بلې
پکې زړونه د عالم کا جلې بلې
که هر څو وطن شیرین وي خو یې پرېږدي
چې یې چرته آرام شي هورې ته لیږدي
ظالمان جان و جهان لره بلا دي
هغه خوار شول چې په ظلم مبتلا دي

سبب دتألیف ددې کتاب چې ترجمه دګلستان دی. موسوم په ګلدسته، دا و چې په سنه دزر سل څلیریشت دهجرت نبوي صلی الله علیه وسلم په سبب دحوادث دروزګار، بې یاره بې دیاره، بې مونس بې غمګساره، په نوښهر کې په یوه کلیه اندوه کې لکه د صحرا په غار کې مې اوقات ګذاري کوله . دنوښهره خلك داخصلت

جبلي ذاتي لري چې په هر ميلمه پورې چې سوديې ددنيا وي نه وي، که شيخ وي که عالم وي، که دنيا دار وي که نيست گار وي، که خپل وي که بيگانه وي، هرگز پرې غرض نه لري . حقايق آگاه معارف دستگاه ميا رحيم الدين پير خيل حق تعالىٰ دې پرې ورحميږي ځوکاله يې پکې تير کړي وو، راته يې ويل چې فقير که گذران کا په نوښهر کې دې کا. هيڅوك به ورنشي چې يو وقت يې مشوش کا. په وداني کې به لکه بيابان نشين وي. په آزار به يې صابر شي. تحقيق لکه هغه بزرگ فرمايلي وو هغه څه ترې معلوم شول. يوه ورځ يوازې ناست وم.

## رباعی

تل مې ناستی و له خلقه گوښی  خپل پردي واړه را ځنی تښی
دم مې همدم و، کتاب محرم و  سر مې به تل وو په ذانو يښی

په گذشته عمر مي تأسف کاوه چې واړه په لهو په لعب تير شه. نه عمل راځخه وشو چې په آخرت پکار شي، نه هسې کار چې په دنيا کې پاتو يادگار شي. په دا فکر مې به کله آه کړ، کله فغان، کله زمزمه په دا بيان .

## مثنوی

چې گذريې هر دم عمر لکه بادکا
په دنياکې به عاقل کله زړه ښادکا

دوه شپیته کاله دې لاړ عمر په لهو
عبادت د په عادت نیکي په سهو

هرګناه ورڅخه شوې په اخلاص وي
چې دا خوی لري بې فضل کله خلاص وي

خجل څوك په تش ویل کاندي کارنه کا
وقت دکوچ راشي دی زیرمه دبار نه کا

خوب که خوړ دی دسحر ابن السبیل
لاچار پریږدي چې وقت راشي درحیل

هرڅوك راغله سازیې نوی عمارت کړ
دمرګ سیندیې عمارت واړه لت پت کړ

دوی ته هم کړه داچار نفس دشیطان غوره
هیڅ یوه دا عمارت نه کړ ترسره

بې وفا سره یاري مه کړه هوښیاره
محبت وته نه ښایي دا مکاره

چې ښه بد ته ضرور تله دي له جهانه
مرد هغه چې دښونوم یوسي له ځانه

دسړي دخوشحالۍ اصل شکم دی
څو چې درومي په وار وار هومره بیغم دی

که دتللو لارې بند کا چې نه درومي
هغه دم به د اجل پیا له وشومي

که روان شي چې هرګز نه شي تړلې
هم به ومري له انجاسه درست لړلې

ځلور طبع مخالفې دي سر کښې
یو څو ورځې روزګار کاځبله خوښې
که یوه شي په ځلور و کې غالبه
هغه دم شیرین ځان ووځي له قالبه
ځلورواړه ضدبه څو وي سره جمع
چې روښنه به وي ستا دحیات شمع
ځکه هرڅوك چې عارف دانا په زړه وي
تعلق یې په ژوندون باندې هیڅ نه وي
وړاندې استوي دکور توښه چې پوه وي
بې توښې مسافر لاندې تر اندوه وي
کله تا هم موراو پلارپه خیرات یادکړه
په دعا سره دې زړونه ددوی ښاد کړه
چې له خپلو فرزندانو طمع دا کړي
بویه داچې دځان غم ترتلوپخوا کړې
عمر واورې په معنٰی دنمردهاړدی
لړو تاته پاتې شوی دی ډیر لاړ دی
خالي لاس چې روان شوی وي بازارته
څه به راوړي چې راځي وکورته بیا رته
چې دخپل پټې یې وخوړل خویدونه
ګر ځوي هغه جولۍ په درمندونه
پس مې له ډیرو فکر و نو مصلحت دا ولید چې باقي عمر
ځان ته دناستې او پښې دقناعت په لمن کې نغښتې بهتر دي،مشغولا

له کتابه. ورتله په لوري دمسجد چې سعادت ددنیا دآخرت دی، غنیمت گڼلي بویه. اکثر به تنها ناست وم، کله کله به بعضې یاران راغله، استفاده به یې دعلم عربي و فارسي کوله . بعضې دوستانو راڅخه گلستان کتاب لوست، ډیر ډیر به یې راته ویل چې دعربي دفارسي کتابونه ډیر دي، اما په پښتو ژبه کې کتابونه دپښتو نشته.
ســـــتا قوت دتصنیف دترجمې البته شته. که تصدیعه په ځان قبوله کړې، گلستان کتاب چې مطبوع او مرغوب دخاصو عامو دی،هم یې لوی سړي گوري. نصیحت ترې اخلي، هم یې هلکان لولي برکت ترې اخلي، آساني ډیره وشي. اکثر خلق یې متن ولولي، دویم ځل یې معنیٰ ، که په پښتو ژبه ترجمه شي پښتنو ته به آسان شي. فایده به یې لویو هلکو ته ښه ورسي. زما هم بل شغل درپیش نه و، فارغ ناست وم. په شهر رجب کې شروع شه، په رمضان کې په کوتاه عبارت په طریق اختصار په اتمام ورسیده. اگرچې پښتو ژبه درشته ده، نرمي نه لري. تلخ ده شیریني نه لري، اما امید واري ده چې په تاثیر دشیخ دکلام، چې هم نرم دی هم شیرین، هم فصیح دی هم بلیغ، دا ترجمه چې په پښتو ژبه ده پکې اثر دخوږ والي پیدا شي. دلوستونیو خلق پرې خوږ شي ،لکه په تاثیر دگلونو تیل فلیل شي. په صحبت دمشکو پشك مشك .

# حکایت منظومه

خاورې واخستې په لاس کې سمن روی

په تاثیر یې دلاسونو شوې خوشبوی

هغو خاورو ته چا وویل سبب څه دی

چې بوی ستا سې ترعنبر تر عبیر ښه دی

خاورو ووې مورږ هغه خاورې یو تورې

لکه دي د تاتر ښولا ندې دا نورې

یو درنګ واخستو په لاس کې ګلبدنې

عنبر موی خو یلې عطر مخ سمنې

خوشبو شوی دخوشبویې په تاثیر یوو

نه مورږ مشك یوو،نه عنبر یوو، نه عبیریوو

دا اثر په مورږ همه دهمنشین دی

ګنه خاورې یوو چې اصل مو کمین دی

اګر چې سړي ته تر خاموشی بهتر هیڅ نشته، خاموشي ددانا و قار ده، نادان پرده پوشي، خصوصاً تصنیف کول چې دهر چا داعتراضونو دغشو نشانه شي، باعث یې حسد او عیب جویي وي اعتراض یې بهانه شي. نظر یې په اصلاح دخبرې نه کاندي، خو افشایې دعیبونو کاندي، په دا وقت دوخ دی چې په دا بیت عمل کاوه شي:

## بیت

ژبه پرې کړي ناست صُمٌّ بُکْمٌ بِه دې چې نه وي ژبه په حکم
اما په حکم د دې خبرې چې هوښیارانو ویلي دې:

## نظم

عاقبت چې له جهانه سړی لیږدي
بهتر دي چې ښه یادګار په جهان پریږدي
په معنیٰ کې هغه مړ نه دی حیات وي
چې تري پاتو دنیکی کلما ت وي

دا هومره عالم چې له جهانه په وار وار لاړ شه له هیچا نخښې پاته نه شي، که بادشاهان وو که وزیران وو، نه سرایو نه پاتوشول، نه پولونه ، نه یي کوهي، نه یي باغونه، واړه په ګردش دورځو شپو خراب شول، نه یې نخښې شته نه یې ځایونه. اما خبردانبیاوو علیهم السلام او داولیاوو او تصنیفونه دعلماوو زرګونه ، سلګونه کالونه تیر شول، نه ورکیږي، نه زړیږي، بلکه لا تازه کیږي، موږ هیڅ مدان چې ژوندي یوو، هم دچا په یاد نه یوو، پس له مرګه به څوك موږ یادکا، مګر یوه نیمه خبره یا یو کتاب که راځنې یادګار پاتو شي څوك مو یاد آوري وکاندي.

## نظم

نظم نثرله‌سرې پاتو یا دگار شي
دوجود خاورې يې واړه تارپه تارشي
غرض نوم دی چې دښو پاتو له چاشي
اعتما د به دچا څه په دا بقا شي
د شيراز بادشاهان لړ نه دي تير شوي
په وار وار همگي واړه دي هير شوي
څوك يې نوم په ژبه نه اخلي چې څه شوو
و جهان و ته راغلي وو كه نه وو
دسعدي دحافظ غړ په درست جهان شته
چې ترې پاتې تصنيفونه يا ديوان شته
په سبب ددوی مشهور ملك دشيراز شه
تر ايرا نه تر عرا قه په اعزاز شه
مطلب دا چې دا خبره ده څرگنده
تر هر څه د ه ښه خبر ه سر بلنده
موږ هم گوندې څوك دمرگ د پسته يادكه
په لوستل مو د الحمد ارواح ښادكه

په خدمت لري دمطالعه كړوينو ، التماس عاجز الحق احقر الناس عبدالقادر دخوشحال خټك زوی چې اگر چې په ضمن كې دپلار صفتونه محامد بيانول خپل صفت معلوميږي، لكه بزرگانو ويلي دي:

## بیت

گرد نام پدر چه میگردی　　　　پدر خویش شو اگر مردی

امادی هم زما استاد و، هم پلار، داستادانو او صافو نه مدح اکثر و مؤلفانو په خپلو تألیفونو کې راوړي دي. ما هم اقتدا په هغو بزرگانو پسې وکړه. شمه به دده له احواله له خویونو په نظم په نثر کې څه ووایم .

## مثنوی

خوشحال خان دشهباز خان و، شهباز خان دیحیٰی خان
یحیٰی خان دا کوړي و سراي اول کړ ده ودان
سخاوت ددواړو خوی و شجاعت یې لاتر تیر
دختکو سرداران وو، خداي پر رحم وکړه ډیر

اما علم پرهیزګاري یې چندان نه وه ، په اعتقاد دواړه اهل سنت والجماعت وو. شهباز خان چې په حکومت په سرداری کښیناست. په هغه وقت ظهور غلغله دعارف کامل مرشد مکمل، بې خدایه جل جلا له له هر څه ویزار، دوست یزداني. شیخ حقاني. شیخ رحمکار قدس الله سره العزیز چې هم له قوم دختکو و. په درست پښتانه په اکثر عَالَم وشوه، عالَم ورمات شه، هر چې مستعدان وو دده له صحبته،دده له ارشاده مستفید کیدل، طُالبان دسلوك دلارپه توجه دده تر مطلوب رسیدل.

## فرد

څوك دليدو څوك له صحبته مراد مومي
څوك له خبر و دهمه خلك ستا نه يي

حضرت شيخ جيو په تجريد په تفريد په رياضت کې له متقدمينو بزرگانو و ، په دې وقت دا کار ونه لکه له ده ظاهر شوي دي، کم له چا ليدلي شوي يا آوريدلي.

## مثنوي

هومره نه دی منقبت د شيخ رحمکار
چې ادا شي يا په کنبل يا په گفتار
د نبي صا حب په فقر معز زو
د خپل عصر په فقراو کې اعز و
که اقوال ،که يې افعال، که يې احوال و
د سنت په موافق دده کل چال و
دډك سيندغوندې بې شوروشر خاموش و
نه سيلاب غوندې پرجوش پرخروش و
په قضا د حق را ضي ورته تسليم و
هر گور ډير متحمل و ډير حليم و
له هستی خپلې فاني په حق باقي و
ډيريې مست دعشق په ميو کره ساقي ...
مس وجود د ډيرو شوې له ده زرو
په تحقيق دشيخ نظر کيميا اثر و

لکه نمر په تمامي جهان ښکاره دی
زه به څه وایم نه میاشت نه ستاره دی
دآفتاب صفت خو نورد آفتاب کاندي
که اوصاف یې ژبه کاندي ترغاښ لاندي
پس له ده دده په شان بل ظاهر نشته
په دې ملك په درست افغان بل ظاهر نشته
و دنیا و ته یي شاپه عقبیٰ مخ و
چې مر ید به شه دده د هغه سخ و
ښه خلفا ځیني ښکاره په خپل خپل وارشول
د خپل وخت په مریدانو فیض نثار شول
په خلفاوو کې مست فقیر جمیل و
صاحب حال وو مستانه یې قال وقیل و
ابراهیم غوندې خاني میري یې پریښوه
په اختیار یې فقیری ته غاړه کښیښوه
هر یو یار ته یې دنیا ښکاره وه خواره
هیڅا نه پریښوده په کور کې دامرداره
په همه و باندې رحم کردګار کړه
موږ هم ددوی په دوی عفو غفار کړه

دشهباز خان دهدایت ستوري په آسمان دعنایت طلوع کوله. توفیق الهي رفاقت کاوه، دی هم یوه ورځ ازروي عادت لیدو ته په خدمت دشیخ جیو ورغلي و، دصحبت یا دنظر اثر یې پرې وشه،تائب شه، مال و ملك جامې آغستې دسواري آس واړه یې د شیخ جیو ورته

وفرمائيل چې يو ساعت ستا عدل تر ډير عبادت بهتر دی. په جامه کې د سرداري فقير اوسه، هم په موجب دحکم تر مرګه پورې په طاعت په عدالت مشغول و. خداي پرې ورحميږي. خوی خصلت دشهباز خان مرحوم ډير حميده و. له ذميمه وپستنه و. اکثر به خاموش ناست و، له ضروره به يې خبره تر خولې پر معنٰی وو ته، ګويا په دايې عمل کړی و. چې "مَنْ صَمَتَ نَجَا"

## مثنوی

له اوله سخن سنج اندېښنه وکا
له هغه پسه دا بيرون آواز ترخوله کا

هرګز نه وهي هوښيار بې فکره دم
پاخه وايه که لارغه وايې څه غم

اول فکر کړه بيا پس وهه نفس
پخوا بس کړه چې څوك ووايې چې بس

په خبرو سړي ښه دي له دوابه
دو آب ښه تر تاکه وايې بې صوابه

اول فکر بويه پس بويه ګفتار
بنياد کيږدي بيا پرې سازکاندي ديوار

چې بيفکره څوك آواز ترخولې بيرون کا
دارنګ خوی يايې احمق يايې مجنون کا

پس دده له وفا ته خوشحال مشر قابل زوی قوم قبيلې دده په ځاي نصب کړه. دستار يې دحکومت دسرداری دده په سر وتاړه،

شیخ جیو هم ډیره مهرباني پرې وکړه . څو حیات و په حال دخوشحال متوجه و. شاهجهان بادشاه دهندوستان په سفارش دکابل د صوبه دار فرمان ورته عنایت کړ. ښه مستقل سردار شه. بندو بست یې تر اباتراجدا ډیرښه وکړ. قبیله پروري، داد ګستري، سر لښکري دده غوندي بویه چې څوك وکاندي. انتقام به یې له بیګانه احیاناً واخسته، له خپلو صله رحم سره که هر څو به یې ده ته ازار ورساوه وریورې به ګرم شول. ده به عفو کول،سوال جواب یې له بادشاهانو سره بالمشافهه کاوه. دوزیرانو دامیرانو به په څو مجلس مصاحب او ندیم شه،په علم عربي کې یې لږ دخل و. په فارسي کې سرآمد دخپل عصرو،شعر یې فارسي پښتو ښه انشاء کاوه، اما پښتو شعر یې جهان لګه شیخ سعدي ونیوه. شعر یې غزل، قصائد ، رباعیات ، مقطعات ، صنایع مثنویات تر لکونو بیتونو متجاوز دي. سخاوت یې تر دې حده و چې شپیته کاله کم بیش ده سرداري وکړه. زکوة پرې واجب نشه. مال یې تر نصاب ونه رسیده. په وقت رحلت چې له دار فنا یې و دار بقا ته رحیل کاوه، یوه آغوستې جامه یو جمدهر ترې پاتو شول. لکه ده په مناجات کې له حق تعالي نه، غوښتي و. هغه هسې مرګ یې بیا مونده .

## بیت

چې جامه یې پاتو نشي مرده شوي ته

خدایه ورکړې وخوشحال هسې رحلت

په عقل، په پوهه، په سخاوت، په شجاعت، په مروت ضرب المثل و په پښتانه کې.

## رباعی

که عقل پوهه که تیغ که دیګک وو
په پښتانه کې دخوشحال بیګک وو
زريې میړانې ته په شمار دسلو وو
زريې سخا ته د صحرا ریګک وو

یوه ورځ دده په خدمت ناست وم. له یوه ځایه روپۍ راغلې وې . په مستحقانو يې په خپل لاس قسمت کړې. لاسونه يې وکتل تور شوي وو، کوزه خدمتګار راوړه چې لاسونه يې ولل راته يې وفرمایل چې، لکه لا سونه ددوی په قربت توریږي، زړونه يې په محبت لا تور شي. دلاسونو سیاهي خو په وللو لاړه شي، اما دزړه دسیاهي تله دشوار دي، بې حق تعالی دتوفیق له او بو نه سپینیږي . دا بیت يې وفرمایه:

## بیت

لکه لاس د زرو پول په شمار توریږي
په دوستۍ يې سړی هم شي روسیاه

دصاحب دقبله علیه الرحمه او صافونه په مغل په پښتانه عیان دي. حاجت يې د بیان نشته، اما څو بیتونه په طریق داختصار دي ګنهکارمعماطور چې په شمار راوړي دي چې دهر مصرع دسر له

حرفه هم په رفتار داسپ درخ هم دفرزین نوم دخوشحال خان خټك
ورځني ووځي.

## نظم مربع

خدای يې تل لکه خپل نوم لره خوشحال
خوشحالي يي په نصيب وه لا يزال
خرد مند نيکو سيرت نيکو مقال
خودپوهيږي چې خبريې دي په حال
و رکول يې بې منته و حاتم و
ورته يو سفال وسنګ دينار درم و
وايي په ځان دهغه چا چې په ده کرم وو
ورځ د شپه به يې کاوه باندې يرغال
شرم ننګ لکه دده و د چا نه و
شجاعت لکه رستم هسې دده و
شوروشر يي تل دميني پروت په زړه و
شان دده دی خودښکاره دده ترقال
حال د هر سړي ښکاره دی تر مقال
حل د هر مشکل کاوه شي له اقوال
حد دچا چې جواب کا دده له قال
حقيقت په مجاز نغښتل دي محال
اور د ننه دعاشق په زړه بليږي
او رنګين شعر لمبې ځنې ښکاريږي

ارمان دادی چې څوك كم په دا پوهیږي
اوس نور څه وایم دمینې حال احوال

لام و بې یې ددلبر دي ستا یلي
لعل و دُر یې دگفتار په تار پیلي

لږ ډیر ما دده له حاله دي ویلي
لکه څوك دیار له مخ کا نمر مثال

خاموشي حلم یې ډیر درله بردبارو
خپل پردی له ده همه شکر گذارو

خارپه سترگودښمن په درست بهارو
ختك درست دده په دور وو نهال

اندیښنه یې وه هر گوره ډیره لویه
اجنبي به یې کم نه گانه تر زویه

افغان ده غوندې چې وزیږي بل بویه
آزاده و هیڅ یې نه درمال منال

نوم یې لاړ و تر دکن ترقندهاره
نه و بل هسې نامي له زمین داره

نیم درم یې هم کورنه ساته له عاره
نور څه هیڅ نه وو دده بې توري ډال

خیلخانه ورځنې واړه وه خوشنوده
خوش خورم وو همگي دده له جوده

خاص وعام ووتل سودمن دده له سوده
خوش کلام و ،خوش معاش و ،خوش خصال

تواضع یې د هر چا کړه په مقدار
تر اندازه کم زیات نه و دده کار
تل به ده کړه کبر جن په کبر خوار
تکبر په کبرجنو دی حلال
کلام ډیر دده شیرین و تر نباته
کم دده تر خولې ترخه و تل وچاته
کاریې داو ترحیا ته تر مماته
کرم وکړه په ده باندې ذولجلال
سبب دتألیف دکتاب بیان شه . دیباچه په اتمام ورسیده، په اته باب کې اداً شه .

## رباعي

زر سل خلیریشت د سن کالونه
له گلستانه چې دا گلونه
ټول شول ترې جوړه چې گلدسته شوه
یادگار به پاتې شي موږه به ځونه

## رباعي

ځواني چې لاړه بیا نه ځوانیږو
وجاړ شو بویه چې و دانیږو
په مخ استوازي دطلب راغله
تاسې خدای ښه ساته موږ روانیږو

## قطعه دتاریخ

دا کتاب چې گلدسته دگلستان دی
گل چیني کا عبد القادر ختک
که تاریخ یې دآغاز د انجام غواړې
سن د هجر په شما ره ودِدغق دك

اول باب: په خوی خصلت د بادشاهانو.
دویم باب: په خوی ددرویشانو.
دریم باب: په بیان دفضیلت دقناعت.
څلورم باب: په بیان دخاموشۍ
پنځم باب: دعشق او ځوانۍ
شپږم باب: په بیان دزوړوالي او ضعیفۍ
اووم باب: په بیان د تاثیر د تربیت.
اتم باب: بیان د ادبونو د صحبت او حکمتونه .

# اول باب

# په بیان دخوی خصلت دبادشاهانو

## حکایت

## [ ۱ ]

یو بادشاه په وژلو د یو بیګناه اشارت وکړ، بیچاره چې له حیا ته نا اُمید شه هرڅه چې په ژبه ورتله بادشاه ته یې ښیرې کنځل کړ. هر څوك چې لاسونه له ژوندونه پریو ینځې هر چې په زړه ورځي تر خولې وباسي.

## مثنوی

چې وخت په سري تنګ شي نه خلاصیږي له ضروره
لازم ورلره داشي چې لاس ږدي په تیره توره
پیشو چې شي عاجزه سپی یې کا تر سینې لاندې
خواه ناخواه غصه پیدا کا حمله کا په سپیو باندې

بادشاه پوښته وکړه چې څه وایي؟ یو له وزیرانو چې نیك ذات مبارك سرشت و،عرض یې وکړ چې دعا کاندي او هسې وایې چې هر څوك چې غصه ونغري، ګنهګار سړی بخښي، احسان وکا حق تعالی داحسان ښښتن دوست لري. دبادشاه پرې رحم وشه معاف یې کړ. له

وژلوېي تير شه، بل وزير چې دده ضد او مخالف و، بد نهاد او ښمنتن دعناد و ويې وې چې دې سړي بادشاه ته ښكنځل او ناسزا ويل كول تا په خلاف بادشاه ته عرض وكړ. بادشاه مخ دده له خبرو وجار يوست اعراض يې ورځني وكړ،وې فرمايل چې دده دروغ ويل زما پسند شول. ستا له ديو رښتيا ويلو چې دهغه په دروغو كې مصلحت و.اوستا په دا راستۍ كې خباثت. چې هوښيارانو ويلي دي: دروغ چې له مصلحت سره اميزوي بهتر دي له هغو رښتيا چې فتنه انګيز وي.

## فرد

هغه څوك چې بادشاه كاندي هر چې دى ورته وايي
چې به بې له ښو څه وايي په هغه باندې نه ښايي

دا لطيفه يعني نر مه خوږه خبره په ايوان دفريدون بادشاه كښلې وه.

## مثنوى

دا جهان به پاتو نشي چا ته وروره
د جها ن پيدا كوو ني و ته ګوره
په هرڅه چې دى خوشنود شي هغه كاركړه
ځان په ښه خصلت نيكانو سره شمار كړه
تكيه مكړه په دنيا په ملك په اصل
ا لبته به د تا شي و رځنې فصل

ډیریې هسك کړه بیا یې وویشتل په مزکه
مینه نه کا هوښیاران په دنیا ځکه
چې نیت وکاندي د تللو ارواح پاك
څه مرګ پاسه په تخت باندې څه په خاك

## حکایت

## [ ۲ ]

یوه بادشاه دخراسان دملك په خو ب کې سلطان محمود د سبکتګین زوي ولید، سل کاله پس دده له مرګه چې درست وجود یې ریژیدلی و، خاورې شوی و، مګر سترګې یې چې په کولکونوکې غړیدلې، نظر یې کاوه. واړه حکیمان معتبران یې له تعبیره عاجز شول، مګر یوه درویش ووې چې اوس یې سترګي وغړیدې چې ملك یې دنورو شه.

### بیت

تر اوسه ګوري په سترګو تورو        چې ملك یې ونیو شاهانو نورو

### قطعه

ډیر نامدار ځوانان یې لاندې کړه ترخاورو
چې په زمکه له دوی پاتې نشان نشته
خاور وهسې رنګ خوړلي مردګان دي
چې په قبر کې یې یو استخوان نشته

دښو نوم یې لا تر اوسه په جهان شته
مدت وشو چې حاتم نوشیروان نشته
خیر خیرات کړه ای فلا نه تر هغه وړاندې
چې ناګاه وشي غږ چې فلا ن نشته
چې د بل له مرګه واروې ځان وژاړه
چې ستا هم له هغې ورځې امان نشته

# حکایت

## [ ۳ ]

یو ملك زاده و کوتاه قد اوحقیر. نور ورونه یې ښایسته په قامت دلپذیر. یوه روځ، مګر پلار ورته نظر په حقارت وکړ. دی په فراست وپوهیده چې پلار راته په خوار نظر ، نظر کاندي، عرض یې وکړ، چې اي پلاره! خبره کړم که دې نه وي په خاطر ګرانه، چې کوتاه هوښیار بهتر دی له لوړه نادانه، ډیر شیزونه په قیمت بهتر وي په قامت کهتر، هاتي که لوړ دی مردار دی، مږ هلك دی حلال[1] هسي رنګک لږ مال چې حلال دي بهتر دی تر هغه چې ورځخه حرام ډیر مال وي.

### قطعه

کوه طورترهمه غرونو ظاهرکم دی
دا خبره ده هر چا وته ځرګنده

---

۱ـ اَلشّاةُ نَظِیفَةٌ وَ الْفِیلُ جِیفَةٌ.

په نیزد دحق چې قدر دده ډیر دی
مرتبه یې ده ترقافه لا بلنده

## قطعه

یوه ورځ احمق څار به ته په جدل کې
وکړ دارنګې ډنګر هوښیار مقال
تازي آس تر ښو څربو خرونو بهتر دی
که هر څو ضعیف لاغر وي بدیې حال
پلار یې په دا خبره وخندل او[1] ورونه یې ورنځیدل.

## قطعه

چې خبره مرد تر خولې ایستلې نه وي
پکې پټ وي دده هر عیب و هنر
په ځنګل کې ګمان مکړه چې خالي دی
شاید وي چې پکې پروت وي شیرنر
اتفاقاً هم په هغه مدت کې بادشاه ته سخت غلیم مخ ښکاره کړ. چې دواړه لور یه لښکر ي ځبله ورغلې[2] اول چې میدان ته ووت. آس یې وتړپوه هم هغه هلك و،ویې وې:

## قطعه

هغه نه یم چې غلیم وته به شا کړم
که په جنګ کې په سنیه په مخ واهه شم

---

۲ـح، وارکان دولت بپسندیدند.
۱ـ ح: - " وقصد مبارزت کردند"

جنگیالي په خپلو وینو بازي کاندي
یا په فتح یا په تورو به واژه شم[۱]

دایې ووې نور یې ورکده کړه څو ځوانان یې دکار پرې یستل پلار لره راغي، ځمکه یې دخدمت ښکل کړه و یې وې:

## قطعه

اي چې تا ته مي صورت حقیر ښکاریږي
زنهار مه ګڼه د تن ځریښت هنر
ډنګر آس په ورځ دجنګ په کار رادرومي
دسواري په وخت نه څو رب ګاو خر

راوړي دي چې لښکر د غلیم ډیر و دا لږ،څنو قصد د تیښت وکړ، دې هلك پرې آواز وکړ، چې اي مردانو! بهتر دي تاسې ته مخ په وړاندې کوښښ: چې دروانه غوندی، د ښځو پوشش.نور و ځوانانو لره په ویل دده غیرت ورغی تهوریې زیات شه،واړ و په یوه ځل په غلیم حمله وکړه، حق تعالیٰ فتح ورکړه، بری یې بیا موند. پلار پرې مهرباني وکړه، په سر سترګو یې ښکل کړ، په غیږ کې یې ونیوه،ورځ په ورځ یې متوجه په حال شه نظر یې د تربیت پرې کاوه،تر هغه وچې خپل ولي عهد یې مقرر کړ. ورونو یې حسد پیدا کړ، زهر یې دده په طعام کې واچول، خوریې له دریڅې ولیدل، تنبه یې ووهله ،ده په فراست معلوم کړل، لاس یې له طعام ونیوه.وې وې چې محال دي چې هنر مندان ومري بې هنران دد وی ځاي ونیسي.

---

۲_ح : وآنکه یگریز و بخون لشکری.

## قطعه

که هما ی مرغه دملکه څوك معدوم کا
د هما ی سيوره به کله حاصل بوم کا
له ازله څوك مسعود ځيني منحوس شول
سعدنحس نه آسمان نه يې نجوم کا[۱]

پلار يې په دا حال آگاه شه،ورونه يې دده وبلل، گوشمالي يې لکه حق و، هسې ورکړه،هر يوه لره يې حصه د ملك معينه کړه، فتنه يې تر منځ دفع شوه، نزاع ورکه . حکيمانو ويلي دي: لس درويشان په يوه ټغر کې ساعت تير وي. دوه بادشاهان په يوه ملك کې نه ځاييږي.

## قطعه

حقاني سړي که نيم ککوړی وخوري
وربه کا و بل فقير هغه بل نيم
که اوه اقليمه خپل کا گمان مکړه
چې به نه کا غم بادشاه دبل اقليم

---

۱ـ ز

# حکایت

**[ ۴ ]**

یوجماعت د عربو دغلو نو په غره کې ځای کړی و، لارېې د کاروان بند کړه، رهزني به یې کوله. رعیت دهغې نواحي پریشان او ترسان شه او لښکر د پادشاه مغلوب په دا سبب چې سخت ځای و، چې دوی په غره کې نیولی و، ورختل د لښکر محال وو، هر چې تدبیر کړوني دهغه ملك وو،سره کښیناستل،مصلحت یې ددوی دمضرت ددفع کولو کاوه. چې که په داروش څو مدت دوی په دا ملك تیر کا، مقاومت به ورسره مشکل شي .( چې لا تازه دي زور قوت یې نیولي نه دی دفع کول یې بویه.)[۱]

## قطعه

هره ونه چې تازه وي نهال شوي
په قوت د سړي و خیژي له ځایه
چې یې ولې زرغونې شي ستهه لویه
په څو کسه به وکښنه شي راته وایه؟
له اوله زیم دچینې په لښ خه بند شي
چې یې نم تر اوش کاله گل ولایه
په څو ورځو یې چې زور داوبو وشي
هاتي هم ځنې جار باسي مخ له ورایه

۱ ..

آخر الامر اتفاق په دا وشه، خبره يې مقرر كړه، چې جاسوس دې ورپسې تعين شي، تجسس يې جاسوسانو كاوه. يو وخت چې غلونو په يوه قوم باندې تاخت كړى و، ځاى دوروستو ددوى[۱] خالي پاتې شه، يو څو ځوانان چې كار ديده آزموده وو، وراغله دغره په لمن كې په ناله كې پټ كښيناستل. په شپه چې غلو نه له تاخته ستړي راغله، سفر يې كړي و، خوب پرې زورشوي و، ولجې يې كښيښنوې، ملا يې پرانسې اول غليم چې تاخت پرې وكړ خوب و. هرګاه چې كلك ويده شول[۲] هغه[۳] ځوانان له پيځوني وړپاځيدل واړه يې وتړل، صبايې په درګاه د بادشاه حاضر كړ، بادشاه حكم د واړو په وژله وكړ. ناګاه، په ميان كې دهغو غلونو يو ځوان و، ښايسته امرد

چې خط يې دعذارونو نوي ټوكيدلي و، بهاريې دحسن تازه غوړيدلي. يوه له وزيرانو پا يه د بادشاه ښكل كړه، عرض يې وكړ. مخ يې دشفاعت په مزكه كښيښنود، چې دې هلك دژوندون له باغ ميوه خوړلې نه ده. او دځوانۍ له بوستانه يې بهره موندلې نه ده. اميد له كرمه دبادشاه دا دى چې په بخښل دده دخون په بنده باندې منت كښيږدي. بادشاه مخ له دې خبر ي وجاريوست، موافق يې د بلند فكر رانغله ويې فرمايل:

---

۱. وچندآنكه باسي از شب درگذشت.

۲ ـ ح: قرص خورشيد درسياهى شد		يونس اندر دهان ماهى شد

۳ ـ ز

## بيت

تربيت كله اخلي چې بدذات وي بدنهاد
مړد كي كولي نشي په ګنبد باندې ايستاد

نسل او لا د ددوی چې منبع دفتنه دفساد دي، قطع كول يې بهتر(بيخ بتار ددوی له اصل راوكښل مصلحت)[1] اور مړول بخري پريښول كار د نادانانو دي.

## قطعه

كه وريځې د ژوندون او به كا توي
و به نه خوري هرګز څوك دولې بر
له بد ذات سره روزګار كول ضايع دي
له درمو به څوك بيا نه مومي شكر

## قطعه

كه اوره دژوندانه اوبه باران كا
په تاثير به يي شي واړه ونې لوېې
بيا به واړه ونې اصل ته رجوع كا
شنډې ونې به ميوې نه كاندي توې

---

۱ـح ـ افعي كشتن و بچه اش داشتن.

وزير چې دا خبره دبادشاه واوريده، خواه ناخواه يې پسند کړه. د بادشاه دفکر يې تحسين وکړ. آفرين يې ووې، عرض يې وکړ. هر چې صاحب فرمايي عين صواب دی. او مسٔله يې ځواب ده. اما دی لا هلك دی دبدانو دخوی اثر پکې شوي نه دی، بغض عناديې په وجود کې متمکن نه دي، ممکن دي که په صحبت کې دنيکانو داخل شي چې له ښو خويونو واصل شي. اثر پرې دصحبت وشي تبديل داخلاق وشي.[1]

## قطعه

دنوح زوی چې له بدانو سره کښيناست
د بدانو له صحبته نا خلف شه
پير و ي يې د ا صحاب کهف و کړ ه
هغه سپی په سپيو کې اهل شرف شه

دا يې ووې، نوريې بيا عرض مکرر وکړ، امرايان ، مصاحبان نور هم ورسره په شفاعت کې مددگار شول. بادشاه دهغه له خونه تير شه، وزير ته يې معاف کړ، وې فرمايل و مې باخښنه اگر چې مصلحت نه و.

## مثنوي

ورستم و ته زال پند وايه اي زويه!
کم غليم په زړه کې لو ی گڼلی بويه

---

۱ــ ز : -

ما له کمې چینې دی هسې رودلیدلی
چې دبار سره یې اوښ دی رغړه ولی

وزیر دهغه هلك په ناز په نعمت پرورش کاوه، ادیب یې ورته مقرر کړ. لا یق د بادشاهانو دجواب دسوال شه، ناست و لا ړ یې دملوکانو دخدمت حاصل کړ،دهر چا په نظر کې مقبول راغی. یوه ورځ وزیر دده له شمائل صفت باشاه ته وکړ. چې صحبت دعاقلا نو پرې اثر کړی دی، جهل قدیم یي له وجوده ووت. پادشاه وخندل دایې وفرمایل:

## بیت

عاقبت به دلیوه بچړی لیوه شي
که هر څو یې پرورش له سړي وشي

دوه درې کاله چې تیر شول، دمحلت له او باشو سره یې موافقت وکړ. په وقت دفرصت یې وزیر له زهمنو سره ووژې، دولت یې ډیر تر قیاس واخست. په هغه ځای کې چې یې پلارونه ناست وو، ورغي کښیناست. عاصي شه، باشاه واوریدل دارمان دحسرت ګوتې یې په غاښو نو دفکرت دحیرت وچیچلې،وې فرمایل:

## قطعه

له ترخې وسپنې کله ښه تیغ کیږي
کاریګر که هر څو ښه لري دسترس

که هر څو یې تربیت حکیمان وکا
دا محال دی چې ناکس سړی شي کس
باران کله په بارش کې تفاوت کا
ښه خوږه مزکه ګل کاندي ښوره خس

## قطعه

په ښوره مزکه کې کله زراعت شي
دامید تخم هرګز پرې مه کره
له بدانو سره ښه بدي له ښوشي
دا وینا ده وهر چا وته کره
عاقبت به دارمان ورغوي ژوي
یوزمان دې بدان نشي چا کره

## حکایت

## [ ۵ ]

شیخ سعدي وایي قدس الله سره العزیز چې یو سرهنګ زاده مي په وره کې د اغلم دسرای لیده چې عقل او پوهه یې زیاته تر بیانه وه. فراست او دانایي یې تیره تر حده، نخښې یې د بزرګۍ په تندي کې پیدا وې[۱] اونورې دهوښیاري په مخ جلوه ګر.

۱ــ ح: ازعهد خــروس.

## بیت

پاس په سریې ددولت ستوری رخشان و
خوش منظر شیرین کلام عالي نشان و

په لږ مدت کې مقبول د نظر د باشاه شه چې هم په حسن صاحب جمال و، هم په عقل څښتن د کمال و، حکماوو ویلي دي؛ توا نګري په زړه ده نه په ډیر مال، عقل په سر دی[1] نه په ډیروالي د کال.

## بیت

چې په عقل هلك پیروي و د انا و ته کبیروي

نور وسیالانو یې حسد رخه پیدا کړه، دده په منصب یې کینه وکړه، دده دوژلویې سعې بې فایده.

## مصراع

دښمن هیڅ کولی نشي چې پرې مهر لري دوست

## رباعي

چې هنر مندوي هغه حا سد لري
اغزي ګلونه رقیب شاهد لري
په سو به بنه یشي د بومو زاغو
باز چې جاله د شاه ساعد لري[2]

---

١. بزرگي به عقل است
٢ـ ز

بادشاه پوښتنه ورځني وکړه، چې موجب ددوی ددشمنۍ له تاسره څه دی، آزار يې په کوم سبب لتا زړه دی. عرض يې وکړ. چې په سايه مې ستا د دولت هر څوك خوشنود کړي دي. مګر حسود. چې دي نه راضي کيږي، بې زما د نعمت له زواله. ستا اقبال دولت دې ذولجلال باقي لري.

## قطعه

توانيږم چې هرګز به زړه دهيچا آزار نه کړم
بې حسده چې زحمت لري په زړه کې دحسد
دی به خلاص له دې زحمت هم هاله شي چې دي ومري
تر حسده په رنځونو کې هيڅ نشته بل رنځ بد

## قطعه

بد بختان په آرزو غوا ړي دنيکبخت زوال دجاه
شاه پيرك په ورځ نه ويني لمر هيڅ نه لري ګناه
دوی دې واړه پرې ړانده شي نه دلمر ستر ګه سياه

# حکايت

[ ٦ ]

يو له بادشاهانو ظالم و، لاس دظلم يې په مال د رعيت اوږد کړ، خلق د ده له ظلمه په ځان شه، بې وطنه آواره په جهان شه،

محصول د ملك په نقصان شه، خزانه ورکه (سپاه پریشان شه)[۱]
غلیمان له هره لوریه پرې ښکاره شول.

## قطعه

په محنت کې که څوك غواړي چې دی مله شي
په راحت کې د هر چا کړه دلبري
په احسان به بیګانه لکه برده کړې
ستا د پاره به په شا ځکوي وري
دعدل ، داد ، کرم ، احسان ولره بویه
سلطنت هسې کار نه دی، سر سري
مل هغه، چې په لرې درسره مل وي
تما مي جها ن ډېمل دی د برې[۲]

## رُباعي

هغه چې ستا دي چې یې ساتل نه کړې
ویره مې کیږي چې یې دبل نه کړې
که د ا د ې خوې دادې کر دا ر دی
خپل به پردي کړې پردي به خپل نه کړې[۳]

یوه ورځ په مجلس کې شاهنامه لوسته شوه، چې قصه د زوال
دضحاك دملك او فریدون ته بادشاهي رسیدل راغله، وزیر له بادشاه

---

۱ـ ز.
۲- ز.
۳- ز.

نه پوښتنه وکړه چې فريدون خزانه لښكر نه درلېه ؟ څرنګ ملك په ده مقرر شو؟ بادشاه وويل لكه اوريدلي دې دي خلق په تعصب چې دضحاك له ظلمه پريشان شوي وو، په ده ټول شه، قوت يې ونيو بادشاهي يې واخسته. وزير عرض وكړ: هرګاه چې جمع كيدل دخلق موجب د بادشاهي دي ته خلق ولې پريشان لرې؟ مګر خواهش دې د سلطنت نشته ؟

## بيت

شاهانو لره بويه پرورش دسپاهي
بې لښكر و نشي په ملكونو بادشاهي

بادشاه وفرمايل: سبب د جمعيت دلښكر د رعيت څه دي؟ عرض يې وكړ: بادشاه لره كرم بويه چې خلق پرې ټول شي، رحمت بويه چې ملك يې ودان شي[1] تا څخه له دواړو يو نشته.

## مثنوي

لكه نشي له ليوانو شباني
هسې نشي له ظالمه سلطاني
خرابي دملك له خپله لاسه كاندي
هر بادشاه چې ستم كا په خلكو باندي

---

(۱) ف: تادرپناه دولتش ايمن نشيند.

بادشاه ته پند دوزیر ناصح دلپذیر نشه، موافق یې د طبع رانغی[1] زندان ته یې واستوه، په لږ مدت کې وارثان دملك چې دده تربورونه وو، خروج یې وکړ، میراث یې دپلار طلب کړ، هغه قوم چې دده له ظلمه پریشان شوی و، په دوی جمع شول، قوت یې ونیو، ملك یې له ظالمه رانیو، دوی پرې مسلط شول.

## قطعه

چې ستم په زیر دستانو باندې ډیر کا
په معنیٰ دزورو ر غلیم دوستدار دی
دعادل بادشاه لښکر خپل رعیت دی
دعادل بادشاه هم عدل لوی حصار دی[2]

## حکایت

## [ ۷ ]

یو بادشاه په یو کښتۍ کې ناست و، یو مریی عجمي هم ورسره په خدمت حاضر و، مریي کله سیند لیدلی نه و، دکښتۍ ناستې یې ازمیلې نه و، ژړا زاري فریادیې آغاز کړ. اندامونه یې وارړه په لرزه شول (که هر څو مهرباني د لاسایې کوله آرام یې نه کیده. د

---

۱ ــ دروی از سخنش درهم کشید
۲ ــ غم زیردستان بخور زینهار بترس از زبردستي روزگار

بادشاه طبعيت ورځني برهم شه) له علاج يي عاجز. يو حکيم په هغه بيړۍ کې ناست و، عرض يي وکړ، که حکم وشي زه يې خاموش کړم. بادشاه ووې ډير منت به د ي راباندې بارشي. حکيم حکم وکړ، مريي يې سيند ته واچوه. څو غوټې يې چې وخوړې،تر ويښتو يې ونيو( بيړۍ ته يې را واچاوه. په لاس يې بيړۍ کلکه ونيوه) په ګوښه کښيناست آرام يې ونيو. بادشاه تعجب وکړ. وې فرمايل چې په دا کې څه حکمت و؟ حکيم عرض وکړ. چې ده محنت دسيند دغرقيدو ليدلي نه و،( دا دبيړۍ ناستی ده ته زحمت و)[1] هسې رنګ قدر دعافيت هم هغه څخه وي چې په مصيبت ګرفتار شي.

## نظم

د ماړه تر فهمه هيڅ نه ده غنمينه
ولې وږي ته حلوا ده اوربشينه
جنتيانو ته اعراف لکه د وزخ دی
د دوزخ عالم اعراف جنت ګڼينه
تفاوت دی چې يې يار په غيږ کې پروت وي
له هغه چې ګوري ور چې‌را بشينه
دواصلا نو ته يي زمبل ستر ګې حجاب شي
مهجوران په تش سلام سره پائينه[2]

---

۱_ وقدر سلامت کشتي را ندانسته.
۲_ ز.

# حکایت

## [ ۸ ]

هُرمز شاهزاده چا و پوښتیده چې دپلار وزیرانو دې څه خطا ولیده چې و دې ترل؟ وې یې: خطا یې معلومه نه ده. اما ومې لیدل چې زما هیبت یې په زړه کې ډیر دی. راځنې په ویره دي، باور یې را باندې نشته، وه ویریدم چې له خپلې ویرې به قصد زما دهلاکت وکا ، پس په حکم مې دحکماوُدقول کار و کړ چې ویلي یې دي:

### قطعه

که په پوهه په دانش نه یې سقیم
همیشه اوسه په نغته د حکیم
چې له تانه ډار لري ورځنې ډارکړه
که په زور په قوت نه وي ستا سهیم
ځکه مار گذار په پښه د شپانه کاندي
چې له کانې یې په ویره دی دبیم
پیشو هم دځان له ویرې په پړانګ زغلي
که هر څو حقیر جسه ده پړانګ جسیم

# حکایت

## [۹]

یو دعربو له بادشاهانو رنځور شه، په وقت د پیرۍ امید یې له ژوندو نه پرې کړی، چې ناګاه یو سور تروره راننه ووت، زیری یې پرې وکړ، چې فلانه کوټ موستا له اقباله فتح کړ، [۱] ( دښمنان څوك ومړل څوك بند شول، دوستان شادکام اوخورسند شول) ، سپاه رعیت دهغه ملك مطیع فرمان بردار شه ( هر چې مفسدان وو، ورك یې بیخ و تبارشه ) [۲] بادشاه سوړ آه له ګرمې سینې وکیښ چې دا زیری زما نه دئ بلکه زما دغلیمانو دی، یعنې وارثان دملك.

## قطعه

حاصل شول مقصدونه د دنیا له هره بابه
عاقبت به په ارمان ورځنې ځم سینه کبابه
دا امیدې چې پوره شه لا یې زیات اندوه دزړه شه
تللی عمر به را نشي روح له تنه پروا ته شه

---

۱_ بدشمنان رسید آمدند.
۲_ ز

## قطعه

اوس د کوچ نغاره وشوه حکم راغی له اجله
اندامونه تاسو واړه و داع کاندی یو ځبله
سترگو تاسو ته بایده دي وداع وکاندی له سره
دا بیلتون څه هسې نه دی چې بیا وینئ بې محشره
دصورت خاوري به گوره نصیب چرته چرته یوسي
تر قیا مته به هم هسې تارپتار ځبله ووسي
تاسې اي زما دوستانو غفلت لري کړئ له ځانه
د غلیم په نغته مه ځئ عبرت واخانړئ له مانه
مال و ملك که خزانې دي که حشم که سلطاني ده
خالي لاس ورځنې درومم تر حاصل مې پښیماني ده

## حکایت

[۱۰]

( شیخ وایي قدس الله سره العزیز چې ) څو ورځې په جامع کې د دمشق په زیارت دیحیٰی پیغمبر علیه السلام معتکف وم، یو له بادشاهانو دعغه ملك چې په بې انصافی مشهور و، په زیارت راغی، نمونځ یې اداء کړ، زیارت یې وکړ، حاجت یې وغوښت.

## بيت

درويش دي که غني دی محتاج واړه ددې دردي
بلکه لاتر درويشانو چې غنيان دي محتاج تر دي

بيا يې ماته وويل چې همت ددرويشانو يُمن برکت لري، اميد چې توجه دخاطر له موږ سره کړي، په دعا مو ياد لري چې له زوره ور دښمن انديښنه منديم. ورته مې ووې چې په ضعيف رعيت باندې رحمت شفقت کوه چې له قوي غليمه زحمت ونه وينې.

## قطعه

په قوت د ليچو زور په ضعيف مکړه
چې ونه ويني د بل زوره ور زور
که څوك خوږ کړې و پوهيږه چې به خوږ شې
دا مثل دی هرګز نه زړيږي پور
نيك و بد دخپل عمل ورته جاروځي
بيهوده په نورو کړي د کتوتور[1]
دستګيري د افتاده ځکه هوښيار کا
چې که پريوځي دستګيري يې وکانور
پنبه و کاره له غوږو عدل داد کړه
چې غليم دې سر نګون وي کرو کور
دا چې نن درته کمزور ی تر ميږي دي
عاقبت به يې په تا کاندي منګور

---

۱ـ داکيډيمي په نسخه کې دا مصرع داسي ليکلې وه: "بيهوده به تور د کړ که تو تور"

## قطعه

په معنیٰ کې آدم زاد واحد صورت دی
پلار یې یو اصل یې یو یویې فطرت دی
چې په درد شي یو اندام د آدم زاد
بل اندام کله له غمه وي آزاد
که پیدا د ښېې په نوك باندې آلم شي
هم له سترګو نه خوب لاړ په هغه دم شي
ته له غمه چې د بل آدم بیغم یې
نه پوهیږم چې حیوان یې که آدم یې

## حکایت

## [۱۱]

یو درویش مستجاب الدعوات په بغداد کې ښکاره شه، حجاج بن یوسف چا خبر کړ. درویش یې وباله، ورته یې ووې چې دعا راته وکړه. درویش ووې خدایه ځان یې رانسې [۱] حجاج ووې الله، الله داځه دعا ده؟ وې ئې دا دعا دخیر ده تا لره او مسلمانانو لره. که ته ومرې ته به له ګناهو نو خلاص شې. مسلمانان ستا له ظلمه.

---

۱ ـ و ـ خدایا جانش بستان.

## رباعي

چې دې له لاسه آزار وي زړونه
مرګ دې بهتر دی له دې ژوندونه
څو به دې بلې لنبې دظلم وي
آخر به و سوزي دا اور ستا خونه

## بيت

هسې رنګه ومره چې خپل ځان له خلقو خلاص کړې
نه چې يې سبب شي دخلاصي ستا رحلت[۱]

## حکايت

## [۱۲]

يو له بادشاهانو چې په بې انصافۍ په ستم مشهور و، يوه عالم رباني ته يې وويل چې: په عباداتو کې کوم عبادت فاضل تر دی. و بې يې: ستا خوب تر نيمې ورځې چې خلقو ته څو اوده وې آزارونه رسي. (له جوره دې په آرام وي)[۲]

---

۱- ز.
۲_ ز.

## رباعي

دچا چې خوب له وینبو الیه بنه وي
بیدار یې مکړه پریږده اوده وي
دساعت خوب یې چې هونبره سودلري
ته خو دقیاس وکړه مرگ به یې څه وي

## حکایت

## [ ۱۳ ]

یو له ملوکانو درسته شپه په عیش په عشرت مشغول و ، په عین مستئ کې وویل :

### بیت

په جهان کې ما ته بِه تردي دم نشته
چې دچا دښو له بدو مې غم نشته

یو درویش په ساړه کې دده تر قصر لاندي بر بنډ پروت و ، جواب یې ورکړ:

### بیت

اي چې نن د تا څوك سیال په عالم نشته
ستا که هیڅ نشته اندوه زما هم نشته

دبادشاه دده په ضعف رحمت وشه همیانۍ یې دزرو دینارو له دریچې را ویسته غږ یې وکړ، چې اي درویشه لمن ونیسه. درویش وې لمن له کومه راوړم چې جامه نه لرم. دبادشاه شفقت پرې زیات شه سرو پایې او هغه زریې ورلره راستول درویش هغه زر په ځو ورځو کې تار په تار کړه بیا راغی.

## رباعي

صبر په زړه کې د عاشقانو
دنیا په لاس کې د آزاد ګانو
لکه اوبه په غلبیل کې نه دري
هسې قرار نه کا ای تجربه دانو

( بادشاه ته دا دده صدا موافقه رانغله [۱] په غضب شه، مخ یې تر وجاریوست، ځکه هوښیارانو ویلي دي چې د بادشاهانو طبیعت شامل لازم دی. کله یې دماغ صاف وي په کښنځل خلعت ورکا، کله فقیر ورته دعا وکاء دي یې له دره بدرکا[۲]

۱ـ درحالیکه ملک را پروای او نبود حال بگفتند.
۲ـ از اینجا گفته اند اصحاب فطنت و خیرت که از حدت و صولت پادشاهان پر عذر باید بودن که غالب همت اینان معظلمات امور مملکت متعلق باشد و تحمل ازدحام عوام نه کنند. (پاتې په ۱۱۵ مخ لمن لیک کې )

## قطعه

په هغه نعمت حرام وي دبادشاه
چې فرصت دعرض نه لري نګاه
چې په وقت دولتمن ته کا عرضونه
و هغه ته ترخه کیږي ځوابونه

حکم یې وکړ چې دا شوخ چشم ګدای دی. بد خرڅ بې باك، لرې یې کانړې نوري مه راپریږدئ. دا هومره ډیر مال یې په څو ګاهه کې ضایع کړ. خزانه دبیت المال لقمه دمساکینو ده. نه طعمه داخوان الشیاطین.

## قطعه

هر ابله چې په ورځ شمع کافوري ږدي
بې ډیوې به یې په شپه ووینې کور
چې په خرڅ کې انداز نه لري ساتلی
زریا سوال ته و دري یا غواړي پور[۱]

یو له وزیرانو چې ناصح خیر خواه د بادشاه او دخلق[۲] و عرض یې وکړ چې مصلحت دادی چې ددې هسې خلقو وظیفه په قدر ددوی له حاجت معین شي چې روز مره ورته رسي، اسراف کولی

---

(د ۱۱٤ مخ لمن لیک پاتې برخه)

دلته چې کومو جملو ترجمه شوې ده . دغه جملي د پیښور او د "بهارباران" په نسخو کې په دي ځاي کې نه دي، بلکه هم ددي باب په شپاړسمه قصه "د سپاد گوش را گفتند..." کې راغلي دي.دپلاټس په نسخه کې په دواړو ځایونو کې راغلې دي

۱ - ز
۲ - ز

نشي، اما زجرو منع د محتاجانو مناسب دصاحب همتانو نه دي، يو ځل اميد وار كول بيا نا اميد له دره شړل خوى دځوانمردانو نه دى.

## قطعه

چې يو ځل ځان مشهور په سخاوت كا
نوم د داد و دهش كا په ځان پورې
نور هر گز بايده نه دي و هغه ته
چې به وركا په محتاج دوركړو پورې
په شيرينو او بو جمع د عالم شي
نه هغه اوبه چې تلخې وي يا شورې

## حكايت

## [۱۴]

يو بادشاه و په نګاهبانۍ يې دملك سستي كوله، لښكر يې په سختي ساته، په دا سبب سخت غليم ورته مخ ښكاره كړ، لښكر يې ورته شاكړه .

## مثنوي

بادشاهان چې له سپاهيانو ساتي زر
په تنګځه به يې سپاهيان وساتي سر
په ميدان به څرنګ جنګ كا له غليمه
چې لاسونه يې خا لي له زرو سيمه

په راحت کې آسوده ساته سپاهیان
چې په وقت دمحنت تیر شي تر خپل ځان
هغه څوك چې د سرونو بها خورینه
کوم انصاف دی چې یې څوك وږي لرینه

شیخ وې یوله هغو سپاهیانو زما اخلاص مند و، ملا مت یې کړ. چې سفله حق ناشناس وي، نمك حرام ناسپاس، چې په لږ تغیر حال خپل صاحب ته شاکا د کالونو حقونه پیمال. وې یې که غذر مې قبلوې شاید آس مي په سبب دلوږي له سوارۍ پاتو شوی وي او زین مي دخپل قوت دپاره ګانه. د باشاه چې په زر ورکول سپاهي سره بخیلي کا،سپاهي به په سرورکول څرنګه جوانمردي کا.

## رباعي

دملك بادشاهه که دې کشور بویه
تخت د شاهي تاج دې د سر بو یه
شرم ساتوني زرغورزوني شه
له سپاهي نه سر بویه، له تانه زریویه

# حکايت

## [ ۱۵ ]

يو دبادشاه له وزيرانو له وزارته معزول شه. په مجلس ددرويشانو کښيناست، دصحبت اثر پرې وشه،جمعيت يې دزړه حاصل شه، حرص يې ددنيا کُل زايل شه.

## رباعي

دښو و بدو صحبت تاثير لري
چې مس پرې زرشي اثر اکسير لري
له درويشانو سره چې کښيني
زړه يې نور بيا مومي زړونه منير لري

بادشاه څو ورځې پس دده له عزل پښيمان شه، بيايې خدمت دوزارت پرې سپاره، نه يې قبلوه. وې يې اى بادشاهه! ما لره دا معزولي ښه ده نه مشغولي.

## نظم

چې په ګنج دعافيت يې زړه آرام شي
عاقبت د عافيت په ګنج شادکام شي
ددې ګنج ويره هرګز دزوال نشته
هيڅ دولت له دې دولت سره سيال نشته

چې قانع په خمتا ین شي په شړې
غم یې نه وي د بادشاه له امیری

بادشاه ووې: مالره البته هوښیار وزیر بایده دي چې دملك بندو بست بې دښه وزیر له تدبیره نه کیږي، وزیر عرض وکړچې هوښیار صاحب تدبیر هم هغه دی چې دې کارته هوس نه کا.

## قطعه

چې قانع په یوه څاڅکي شي صدف
قیمتي ګوهر یې ځي په هرطرف
چې همای مرغه قانع په استخوان شه
په همه مرغو یې بیا مونده شرف

## حکایت

## [۱۶]

سیاه ګوش ته چا ووې چې: په څه سبب دې ملازمت دمزري اختیار کړي دی؟ وې یې: پس خورده دده دښکار خورم او له دشمنانو په پناه دده په آرام یم. ورته یې وویل، هرګاه چې اقرار دې دنعمت وکړ او په حمایت دده فراغت یې،ولې نیـژ دې نه وردرومې چې له خاصانو له مقربانو دې شمار کا؟ وې:هسې رنګك یې له حملې او له قهر ه په امن هم نه یم.

## فرد

که سل کاله پرستش داورګبران کا
یو ساعت که پکې پريوځي ځان به زيان کا
کله نديم دبادشاه زر بيا مومي، کله يې سر لاړ شي

## مثنوي

له صحبته د شاهانو کړه پرهيز
طبعيت ددوی تر اوره دی لاتيز
که دا اور هرګور ښالري پرنوردی
فراغت دی هم هغه چې ځنې دوردی
په خپل قدر و قار کار دحکيمانو
ظرافت بازي روش د نديمانو[1]

## حکايت

## [۱۷]

شيخ وايې يو آشنا زما وچې دروزګار له ګردش يې کار تنګ و ،اوقات ګذاري نه کيده، په قدر حاجت ضروري ، درمانده شوی .و. شکايت يې دخپل احوال يوه ورځ ما وته بيان کړو. چې عيال مي ډير

---

۱ـ داسي ښکاري چې دا اشعار داصل ددې عبارت په ځاي راوړي شوي دي چې: "وحکما گفته اند از تلون طبع بادشاهان پرحذر بايد بودن که وقتي بسلا مي بخند و ديگر وقت بدشنامخلعت دهندو گفته اند ظرافت بسيار هنر نديمان است و عيب حکيمان."

دی، آمد مې هیڅ نشته، طاقت دفاقې نه لرم، څو ځله مې په خاطر وګرځید چې بل ملك لره لاړ شم. ځان له وطنَ وباسم.

## بیت

چې دې قدر پکې نه وي وطن څه پکار بې ننګه
پاڅه زرځنې روان شه تا ته نه ده دنیا تنګه[1]

په هرصورت چې وي په نا آشنا عالم کې ګذران کوم څوك به مې په بد په ښه حال واقف نه وي.

## قطعه

ډیر مسافر وړې څوك یې نه پیژني څوك دي
که شاه که امرا وي څوك پرې نه وي خبردار
په خپل وطن کې ګران شي ګذران دنیستګارانو
مرګ یې وي هر دم چې نور عزیز ویني دی خوار
هر څو که وطن خوړ وي هم تر خواه ناخواه روان شي
وړې که برمنډ وي روزګار کا په بل دیار

بیا له پیغورونو ددښمنانو اندیښنه وکړم چې را پورې به خندا کا، سعی به زما چې په حق یې دعیال کوم، حمل په بیمروتۍ بې همتۍ وکا.

---

۱ـ ز.

## قطعه

و به نه ويني هر گز بې حميّته
په دنيا کې مخ دبخت و داقبال
دخپل ځان په خوشحاليو پسې ورك شه
وخوارۍ و ته يې وسپاره عيال

په علم دحساب دکتاب البته پوهيږم. که ستا په سفارش مې چيرته نوکري وشي په يوه خدمت منصوب شم. چې موجب مې د جمعيت وشي. بقيه عمر به ستاشکر گذار وم. وې مې ای وروره! عمل د بادشاهانو دوه لوريه لري: يا حاصل دنان يا نقصان د ځان.

## قطعه

درويشانو کره هېڅوك نه وردرومي
چې خراج دوځکې راکړه يا د باغ[1]
کله موږ کله فاقه روزګار بهتر دی
چې آرام وي دصورت دزړه فراغ[2]
يا قبوله پريشاني کړه غصه نغره
يازړه ورکړه چې تونګي پروهي زاغ
زاغان څوك دي حاسدان معا ندان دي
چې پرې سوزي چې بل ويني دچا چراغ[3]

---

۱-ج:وخلاف رای خرد مندان باشد بدان... معترض این بیم شدن.
۲_ز.
۳_ز.

وړی یې دا خبره دې موافق زما له حاله سره ونکړه. جوابدې:
زما دسوال ونه کړ. اوریدلي دي نه دي چې حکیمانو ویلي دي:
هرڅوك چې خیانت پرېږدي دي لاس یې په وقت دحساب نه ریږدي.

## نظم

چې کاږه وي دهغو له اوره غم وي
څه یې ویره له آتشه وي چې سم وي
له رښتینو سره مل پروردګار دی
راته ووایه څوك ورك په سمه لار دی

هوښیارانو ویلي دي: څلور تنه له څلورو تنو په ځان دي:
مفسد له سلطانه ، غل له پاسبانه ، فاسق له غمازه، روستایي[1] له
محتسبه. هرچې په حساب کې پاك وي له محاسبې نې څه پاك وي.

## قطعه

که ګډوډ زړه دی چې خوله بند کړې دچغلو
په عمل کې روزګار مه کوه بې رنګه
ته پاك وسه پاك په زړه کې له چا مکړه
خیرن نمري به وهي دوبي له سنګه
په نیت صاف په خوله شیرین وسه شه وینه
چې په امن وي د بنو بد و له جنګه[1]

---

۱ــ په اصل نسخه کې رو سپي لیکلې دی چې دمې یا بدکاري ښځې ته وائي.

وې مې حکايت دهغې تروړې مناسب ستا دحال دی، چې چا ليده چې تښتيده. کله پريوته کله پاڅيده. يوه وپوښتيده. چې سبب ددې خوف څه دی ، چې دا هسې ګريزانه لرزانه يې؟ وې يې اوريدلي مې دي چې اوښان[۲] په بيګار نيول شي. هغه شخص ورته ووې داوښ له تاسره څه مشابهت دی، ستا له اوښ سره څه مناسبت؟ وې يې:که حسودان ورته ووايي چې داوښ بچړی دی. څوك به غم زما دخلاصي کاندي؟ ترهغه چې تحقيق کاوه شي، زه به هلاك شم.

## بيت

له عراقه څو ترياق ورته رادرومي
مارچيچلی به دمرګ پياله و شومي[۳]

هسي رنګ لکه وايي ستا فضل ديانت او تقوي امانت شته ( ا ما دشمنان قابو طلب دي څوتي وهلي دي )[۴] که په خلا ف ستا دسيرت دخصلت تقرير و کا د بادشاه په غضب چې کښيوزې څوك به وې چې ستا د خلا صي غم وکاندي، دچا قدرت به وي چې ستا حقيقت به واقعي عرض کا. مصلحت دا وينم چې دقناعت په ملك سکونت وکړي او ترك درياست.

---

۱ـ ز
۲ـ په ځينو اصل نسخو کې د شتران په ځاي شيران هم ليکلي دي.
۳ـ داشعر دنثر ديوي مشهورې جملې ترجمه ده چې " چون ترياق از عراق " ...الخ
۴ـ ۹- ولیکن منعنان درکمين اند ومدعيان ګوشه نشين.

## بيت

که سود ونه په دريا کې بې شماره دي

خلاص هغه چې ترې ولاړ په کناره دي

دا زما دوستانه ويل په موافق دده د طبع رانغله، دي ښبښتن د مطلب، وصاحب الغرض مجنون، خبرې يې راته رنجش آميز وکړې، آزرده خاطر شه وې يې: حکما وو رښتيا وئيلي دي چې دوستان هغه دي چې ته په زندان کې وې ستا پکار شي، که نه وي په وقت دسفر دشمنان هم لکه دوستان ښکاريږي.

## قطعه

دوست يې مه شماره چې لافي داخلاص کا

په هغه ساعت چې ته وي په نعمت کې

هغه يار رښتنی يار ګڼلی بويه

دستګيري چې ديار وکا په زحمت کې

وپوهيدم چې متغير شه. نصيحت زما په غرض ګڼي، يو صاحب ديوان چې مي آشنا و. دم يي راسره داخلاص واهه. هغه لره ورغلم، دده احوال او قابليت مې ورته بيان کړ. سفارش مې يې قبول کړ. په يوه مختصر کار يې نصب کړ، پاکيز ګي يې د طبيعت وليده. امانت ديانت يي ورمعلوم شو، له اولي مرتبې يې پورته کړ، په اعلی مرتبه متمکن شه. هسي رنګ ستوري يي د بخت په ترقي و، تر هغه چې مقرب د بادشاه شه او اعتباري . په دا حال مې دده شکر و کړ، خوشحال شوم وې مې:

## قطعه

په محنت کې نا اميد له خدايه مه شه
محنتونه که هر څو در باندې ډير شي
پټ مهرونه د ښبتن په بند ګانو
چې وقت راشي عاقبت باندې برڅيرشي
په ظلمات کې دژوندون چينه مونده شي
په غمجن باندې مژده ښادي به وير شي
چرې نه وي وارخطا کړې په محنت کې
د دنيا محنت کوتاه دی زر به تير شي

هم په هغه مدت کې اتفاقاً ياران زما حج لره روان شول، زه هم ورسره ولاړم چې پس دحج ګذار لور او جار وتم، دی دوه منزله وړاندې استقبال ته زما راغی . ډير پريشان احوال، وې مې دا څه حال دی؟ وې يې: لکه تاوې هسي رنګ حاسدانو زما په مرتبه حسد وکړ. په خيانت يې منسوب کړم. بادشاه تحقيق دکار ونه فرمايه. ياران دوستان له حق ويلو خوله پټه شول، حق يې دصحبت وهير کړ.

## قطعه

د دنيا دولت چې مخ کا وسرې ته
خلقې ورسره کاندي ياري ډيرې
چې نکبت ورته دوڅارشي اقبال شا کا
همګې ياران يې کاندې ياري هيرې

هسي رنګك څو مدت په انواع عقوبت ګرفتار وم. چې خبر د حاجيانو دقافلي بادشاه ته راورسيده. شكرانه يې بنديان آزاده ول. زه هم ورسره خلاص شوم. وې مې ما خو اول درته ويلي وو، چې عمل د بادشاهانو لكه سفر د دريا دی. سوديې هم ډير دی، خطر يې لاترسو تير دی.

## بيت

سودا ګر كله حاصل له سينده سود كا
كله سيند يې ګكخړ سره وجود كا

زيات مي تر دا مصلحت ونه ليد چې څه مې ويلی. مالګې مې دده په پرهارونو دوړه ولی، خو په دادوه بيته مي خبره كوتاه كړه :

## قطعه

نيكخواهان نه كا تقصير په پندويلو
نيكبختان بويه چې غوږ ددوی په پند كا
په سوراخ كې دلړم چې ګوتې ږدينه
خود بخود نادان خپل ځان وته ګزند كا

## حكايت

## [ ۱۸ ]

شيخ وايي قدس الله سره چې: څو تنه ياران زما په صحبت كې وو. ظاهريې آراسته په شريعت. باطن يې بنايسته په طريقت. يو

له دولتمندانو چې په حق ددې طایفې نیك ګمان او معتقد ددرویشانو و . وظیفه یې ددوی یارانو مقرر کړې وه. ناګاه له یوه هسې حرکت ظاهر شه چې مناسبت ددوی دحال نه و، اعتقاد دهغه شخص ورځنې مات شه. بازار ددوی سوړ. هغه چې یې څه مقرر کړي وو منع یې کړ. زما خواهش وشه چې په یوه طریق یې هغه کفاف بیا په ځاي کړم. قصد مې دهغه دولتمند دوړتلو وکړ. دربانان مانع شول، نه یې پرېښودم. معذوري مې کړه، لکه هوښیارانو ویلي دي:

## قطعه

اول بویه چې حاصله وسیله کړې
له هغه پسې په وره ورشې دبادشاه
سپی، دربان چې مسافر سړی ووینې
پښې ګریوان دسړي نیسي خواه ناخواه

هرګاه چې مقربان دبادشاه په داحال خبر شو، په اکرام په عزت یې وروستم. ښه هسك ځای یې راته دناستې معین کړ، اما زه از روي تواضع کوز کېښناستم، وې مې:

## بیت

دمسند لیاقت نه لرم کمین یم
له کمینو سره ښه ناست په زمین یم

وې یې ازبراي خدا دا څه خبره وایې؟

## بیت

پاس په سر زموږه کښینه دلنشین یې
ستا ناز ونه به په سترګو وړو نازنین یې

آخر الامر کښیناستم له هره بابه، ګفتګو مذکور ونه کیدل، عاقبت خبره دیارانو دمذلت تر منځ راغله، وې مې:

## قطعه

لږ تقصیر ځنې واقع یا واقع نه دی
صاحت منع دیارانو کړه ادرار
بزرګي په خدای ښایي بنده نواز دی
هر ورځ کا ګنا هو نه ګنه ګار
عقوبت یې هر ګز دی په تلوار نه کا
رزق روزي یې په دستور وي برقرار
(سل زرعیب دبنده ورته ښکاره دي
دي ستار دهمه واړو دی ستار)[1]

حاکم دا خبره واوریده. اسباب یې دیارانو دمعاش لکه و په هغه شان بیا مقرر کړ، او ګذشته چې پاتو شوي وو، هغه هم ورکړه. شکر مې دنعمت وې، زمکه مې دخدمت ښکل کړه. عذر مې دګستاخي وغوښت. رخصت شوم .وې مې:

---

۱ـ ز

## مثنوي

دمقصود دکعبه که لرې په هیواد وي
هم ور درومي که اصیل وي که آزاد وي
تا ته بو یه تحمل د محتاجانو
بر هم مشه په تصدیع د فقیرانو
شنډې ونې و ته کله خلق ګوري
کاڼي تل په میوه داره ونه ووري

## حکایت

## [۱۹]

یو بادشاه زاده و، خزانه یې بې قیاسه د پلار له میراثه په لاس کښیوته. لاس یې په سخاوت کښیښنو. دولت یې ډیر تر حساب تیر په سپاه په رعیت شانده.

## قطعه

له اوله چې ځان وسوزې په اور کې
خوشبویي هاله مونده شي له اګره
د هقانان اول کندوان په کرل تش کا
له هغه پسه بې بهره اخلي له بره
که بزرګي غواړې کرم، ورکړه عادت کړه
نوم بې ورکړو دچا نه دروي پسره

یوه همنشین ورته ازروي دولتخواهي نصیحت آغاز کړ، چې بادشاهانو چې ګنجونه جمع کړي دي، دیوه مصلحت دپاره دي. دا جهان ځای دحوادث دی[1] لاس له دې حرکته کوتاه کړه، چې په وقت دحاجت درمانده نشي.

## قطعه

خزانه که واړه و ویشي په خلقو
لکه وریژه هر ګدا ی وته رسیږي
له هر چا که داوربشې برزر واخلي
خزانه به هره ورځ درته ټولیږي

بادشاه زاده مخ له دې خبري ورجاریوست، موافق یې د طبع رانغله، ورته یې قهر وکړ. ویې فرمایل: خداوند تعالي چې دا دولت ما لره راکړی دی، بویه چې هم یې خورم، هم یې بخښم، نه چې یې ساتم نګهبان یې شم.

## قطعه

دقارون که هرڅو ډیر مال او دولت و
څه په کار چې سبب شه دوبال
په ښه نوم دسخاوت حاتم ژوندی دی
که یې نه و دقارون غوندې ډیرمال[2]

---

۱_ که واقعیها در پیش است و دشمنان از پس.
۲_ (قارون هلاك شد که چهل خانه ګنج داشت نوشیروان نمرد که نام نیکو ګذاشت

# حکایت

## [ ۲۰ ]

نوشیروان چې په عدل په انصاف مشهور و. یوه ورځ ښکار ته وتلي و. څه یې وژلي و. کباب یې کاوه، مالګه حاضر نه وه. خدمتګار یې کلي لره واستوه چې ورشه مالګه په بها راوړه چې بدرسمي و نشي، کلي به خراب شي. چا وویل په دا هومره مالګه واوړل به څه خرابي کیږي. ده وې بنیاد ظلم اول لږ و، هر څوك چې حاکمان کیدل په وار وار یې زیاتوه، تر دي حده ورسیده.

### قطعه

که بادشاه دچا له باغه شفتالو په ظلم وخوري
دباغ ونې په له ویخه وکاږي دده مریونه
که ستم په یوه هو یه دغریب بادشاه روا کا
سپاهیان به یې چرګان درعیت کا په سیخونه

# حکایت

## [ ۲۱ ]

یو عامل و ظالم ، درعیت خو نه یې خرابه وله، د بادشاه خزانه یې ودانه وله، بې خبر له دې خبره چې هر څوك چې خلق دخداي تعالي آزاره وي، دمخلوق دزړه دښه کولو دپاره حق تعالی هم هغه مخلوق پرې وګماري چې مکافات دخپل کردار ورښکاره کا .

## بیت

هسي رنګ خرابي نه کا اور په خس
لکه آه په جهان کاندي د بيکس

ويلي شوي دي چې سرد حيواناتو مزرى دى . کمترين دجانورانو خر، به اتفاق دخردمندانو هغه خر چې بار وړي بهتر دى له هغه مزري چې مردم دردوي.

## مثنوي

خر که هر څو بې تميز دى | چې بار وړي هسې عزيز دى
اوښ غوځکي چې بار برداروي | له ظالمه بزرګ وا ر وي
( د د چې ومري تر ددې ځي | دى دوزخ ته په بدىځي)[۱]

بادشاه[۲] ته يې په وار وار حقيقت دظلم دستم معلوم شه، په شکنجه کې يې وځکاوه. په انواع انواع عذابونو يې ووژه.

## قطعه

که دې زړه وي چې بادشاه له تا خورسند شي
شفقت کوه د خداى په خلقو باندې
په هر څه کې رضا جوى د کردګار شه
چې راضي له تا نه خپل بندګان کاندي

---

۱ـ ز.
۲ـ ح : - باز آمدم به حکايت وزير غافل.

په داسي حال کې يو مظلوم چې دده له لاسه يې ډير ستم ليدلی و، په هغه لار تير يده، دی يې وليده په شکنجه کې[۱] ويې وې:

## قطعه

که هر څو يې جاه منصب تسلط ډير وي
ورته نه بويه چې اخلي آزا ر و نه
دا بې کسه عا لم مه ګڼه بې کسه
خپل څښتن پوره کوي ددوی کارونه
نمونه ورته ښکاره دخپل عمل شوه
په قيا مت به يې ويني انبارونه[۲]

## حکايت

## [۲۲]

له يوه مردم آزاره حکايت شوی دی. چې: ديوه صالح سړي سر يې په کاڼي ويشتلي و . هغه درويش عاجز و، توان يې دانتقام نه و. هغه کاڼي يې ځان څخه ساتلي درله، تر هغه چې بادشاه په هغه برګشته بخت باندې په عضب شه، په کوهي کې يې واچاوه، بند يې کړ. درويش راغی په هغه کاڼي يې په سر وويشت. وې ويې څوك يې؟

---

۱ـ -: درحال تباه وی تأمل کرد.

۱ـ (۱ـ زهر که قوت بازو و منصبي دارد * بسلطنت بخورد مال مردان بگناف* بخلق فرو بيرون استخوان دوست * ولي شکم به درد چون بگيرد اندر ناف.

او ولې دې په کاڼي وويشتم؟ وې يي زه فلا نه يم او دا کاڼی هم هغه کاڼی دی چې په فلا نه تاريخ دې زه پرې ويشتلی وم . وې يي دا هومره مدت چيرته وې؟ وې يي ستا له جاهه مې انديشنه کوله. نن مې چې په چاه کې وليدې،فرصت مې غنيمت وګاڼه،خپل انتقام مې واخست.[۱]

## قطعه

نالايق سړي چې ويني بخت يار

عاقلان ورته تسليم کاندي اختيار

چې قوت دانتقام ورڅخه نشته

لا علاج د ظالمانو وړه آزار

صبر وکړه خو به دور دده تيرشي

مخالف به شي دده سره روزګار

ورجار وځي به وده ته کر دخپلې

په سره سينه ترې و کاږه دې مار

# حکايت

## [ ۲۳ ]

يو له بادشاهانو په هسي زحمت ګرفتار شه چې له ياد ولو يې نه يادول بهتر دي. حکيمان ديونان متفق شول چې دې زحمت لره نور

---

۱_ ز

هیخ دار ونشته، مگر تریخی دسړي چې په داسن په دا صفت موصوف وي. طلب یې کړ، دهقان بچه یې بیاموندہ[۱] مور پلار یې وبلل. زریې ډیر ورکړه، خشنودیې کړل، قاضي هم فتوي ورکړه، چې د بادشاه دسلا متیہ دپاره یې مرګ روا دی. جلا د قصد دهلك دوژلو وکړ. هلك آسمان ته وکتل ویې خندل، بادشاه وپوښتیده، چې په دا ځای چې ته یې څه ځای دخندا دی؟ وې یې ای بادشاهه! ناز د فرزندانو په مور په پلار وي او دعوی قاضي لره وردرومي. دا دله بادشاهانو مومي. مور پلار مې په علت ددنیا زما په مرګ راضي شول. قاضي فتوی زما دمرګ ورکړه. بادشاه دخپل صحت دپاره حکم زما دکشتن وکړ، اوس بې خدایه بله اسره پاتې نه شوه.

## رباعي

چې مې به طمع دزړه و چا ته شوه
له همه واړو په وار وار ماته شوه
ا سرې د خپلو د پر د یو لاړې
اوس مې یوازې اسره وتاته شوه

بادشاه ډیر رقت وکړ، سترګې یې داوښکو ډکې شوې،وې فرمایل: هلاکت زما بهتر دی له وژله دهسې بیګناه. دهلك سترګې یې ښکل کړې . په غیږ کې یې ونیوه. ډیر څه یې ورانعام کړه. آزاد

۱_"همان صورت که حکیمان گفته بودند"

يي کړه، حق تعالي چې ده دا رحمت په مظلوم وکړ خپل رحمت يې په بادشاه وکړ، صحت يې ورعنايت کړ، هم هغه دم روغ شو.[۱]

## رباعي

چې يې رحمت په عالم اظهار شي
په هغو رحم د کردگار شي
نه په لمونځو نه په روژه د ه
چې رحم کار شي شيخ رحمکار شي.[۲]

## قطعه

ددرياب په غاړه پاس په هاتي سور و
مهاوت کاوه له ځانه قال و قيل
که تر پښو لاندې احوال دميږي زده کړې
هسې ځان ګڼل تر پښو لاندې دفيل
په اولا د داسرائيل فرعون غالب و
حق غالب کړ په فرعون رود نيل

---

۱ ـ ل ـ " هم در آن هفته صحت يافت "
۲ ـ ز

# حکايت

## [ ۲۴]

يو مريي دعمر ليث بادشاه تبنتيدلی و، څوك يې وريسې واستول وېې نيو رايي ووست. دوزير ورسره البته څه عداوت په زړه کې و، عرض يي وکړ چې وژل بويه چې د نورو مريونو عبرت وشي. داهسې حرکت و نه کاندي.هغه مريي بادشاه ته سرپه زمکه کښيښود عرض يې وکړ:

### بيت

هر چې په ما کيږي چې يي ته پسند ي روا دي
ته صاحب زه دي بنده يم څه زما دعوې له تا دي

اما په موجب ددې خبر ي چې پرورده د نعمت يم، نه غواړم چې په قيامت زما په خون گرفتار شې. که خواه نخواه زه وژلی شم، بارې په تا ويل مې د شرع ووژنه، چې په آخرت مأخو ذ نشې. بادشاه وويل: تا ويل شرعي څه وکړم. وې يې حکم وکړه چې وزير ووژنم. پس له هغه مايې په قصاص کې ووژنه. بادشاه وخندل، وزير ته يې وويل:څه مصلحت وينې؟ وزير وويل چې په صدقه دخپل پلار، دگور دا شوخ ديده معاف کړه، چې زه ترې خلاص شم. گناه زما دی چې په قول مې دحکيمانو کارونه کړ، لکه يې ويلي دي:

## قطعه

له جاهل سره چې جنګ کوې هوښیاره
خو به مات کړې خپل تندی په نادانه یې
چې ګذار دی په غلیم د غشي وکړ
ترې حذر لره چې یې اوس نشانه ته یې

# حکایت

## [۲۵]

دیوه بادشاه[۱] وزیر و، ډیر نیکخواه او خیر خواه دخلا یق و، دلبرې یې دهر چا کوله، رو بروېې دهر چا حرمت کاوه، پسې شا به یي ددوست ددښمن صفت، اتفاقاً له ده هسې حرکت واقع شه چې دبادشاه پسند نه و، محبوس یې کړ. هغه نګاهبانان چې ممنون دده داحسان وو، څو ورځې چې دی په قیدو، واړو یې خدمت کاوه. او په هر کار کې ورسره رفق او ملا یمت. دده په دلګیري واړه دلګیر وو چې بند دده داحسان په زنځیر وو.[۲]

---

۱ _ ا_: " ملك زوفن "
۲ _ ب:- وزجر و معافیت روانه دا شتی

## رباعي

خاطر دهر چا په ښه ويل ښاد کړه
چې بد د ې ياد کاته يې په ښه ياد کړه
وايي که بد درته دچا ونه رسي
په دوست دښمن باندې احسان کرم زباد کړه

ځو[۱] مدت په سبب د باقي تاوان په زندان کې پاتې شه،يو له بادشاهانو دهغه نواحي چې دده په ديانت په کفايت واقف و. پټ يې ورلره جواب کتابت راستوه، چې دغه پادشاه څخه ستا قدر نه و، ځکه يې په لږ تقصير داهومره بيحرمتي،بيعزتي درورسوله.[۲] که په دي لوري د نيت دراتلو وي[۳] دا عالم خاص و عام ستا اشتياق لري. وزير چې په دا حال خبر شه[۴] مختصر جواب هم په شاد هغه خط وکيښ[۵] روان يې کړ. يو دده له معاندانو چې په دا حال واقف شو بادشاه ته يې وويل چې فلانه چې محبوس دی، دفلا نه بادشاه سره آمد ورفت ترمنځ لري، خط کتابت يې ځبله وردرومي. بادشاه بر هم شه، جاسوسان يې وګمارل چې کشف ددې کار وکا. قاصد يې ونيوه خط يې ولوست. کښلي يې وو چې نيك ګماني د بزرګانو په بنده زيات د بنده تر فضيلته ده. اما درتله د بنده چې په خدمت دحضور

---

۱_ ح : - "آنچه مضمون خطاب ملک بود از عهده بعضي بيرون آمد و ...."
۲_ ا.و بيغيرتي کردند.
۳_ ا:- دررعايت خاطر ش هر چه تما منز سعي کرده آيد.
۴_ ح:- " از خطر انديشيد."
۵_ح:- " که اگر بر ملا افتد فتنه نه باشد."

مشرف شي امکان ددې امر داجابت نشته. بنده پرورر ده دنعمت ددې خاندان دی. په لږ تغير حال له مخدوم قديم جاروتل خدمتګار لره مناسب نه دي. بې وفايي کيږي.

## بيت

دهر چا چې عنايت په تا هردم وي
باريې وږه که يي په تا کله ستم وي

دبادشاه دده دا خوی دوفا داری او دحق شناسۍ ډير پسند شه، خلعت اونعمت يي ورته عنايت کړ، عذر يې ورځنې دماسبق وغوښت چې ما خطا وکړه، چې ته مې بيګناهه آزرده کړې، عرض يې وکړ چې دصاحب په دا کار کې هيڅ خطا نشته ، بلکه تقدير دحق عز اسمه په دا مقدار شوی و، چې دا محنت به ما ته رسيده. ښه وشول چې هم ستا له لاس راورسيده چې حقونه دې‌دنعمتونو راباندې ثابت دي.

## رباعي

| | |
|---|---|
| که ګډدوستان که دښمنان دي | چې رسوونې د سود زيان دي |
| واړه له خدايه ګڼلي بويه | غير به ونه ويني چې عارفان دي[1] |

---

۱ـ ګرچه تير ازکمان همي ګذرد　　　ازکماندار بيند اهل خرد

# حکايت
## [ ۲۶ ]

يوه بادشاه دعربو حکم وکړ په خپلو د يو انيانو چې د فلا نه خدمتگار يو ميه تر سابق مضاعف کاندي چې هميشه په خدمت حاضر د حکم منتظر وي. دا نور خدمتگاران په لهو په لعب مشغول دي، په خدمت کې کاهل. يوه صاحب دل واوريدل ويې ژړل ويې ويل چې مرتبه موندل په درگاه دحق تعالی هم دا مثال لري.

## قطعه

په خدمت کې چې حاضر وي دبادشاه
يوه ورځ پرې آخر وکاندي نگاه
عابدان چې عبادت په اخلاص کاندي
البته پري رحم کيږي د الله[۱]

## رباعي

که مهتري غواړي فرمان بردار اوسه
په عبادت کې دکردگار اوسه
په ورځ انصاف کړه په شپه بيدار اوسه
دبل آزار وړه ته بې آزار اوسه[۲]

---

۱ـ ز.
۲ـ "هر که سيماي راستان دارد سرخدمت بر آستان دارد"

# حکایت

## [۲۷]

یوظالم و، شریر، چې لرګي به يې له درويشانو پيرودل. ازران په زور ،توانګرانو لره به يي ورکول ګران په سود. يوه صاحب دل ورته ووې:

### بیت

( مار يې ته چې په هر چا باندي ګذار کړې
ياګنګی چې چيرته کښيني مز که غارکړې[1]

### قطعه

زور قوت دې که پيش ځي په فقيرانو
دځواب توفيق دې نشته ويزدان ته
زنهار مه آخله آزار د فقيرانو
چې آهو نه يې لاړ نشي و آسمان ته

ظالم له دې خبر و رنځيده، مخ يي وجاريوست، التفات يي ونکړ. ناګاه دباورچيخانه اوريې په انبار دلرګيو ولګيده، درست

---

۱ــ ز.

کوریې له متاع سره وسوه[1]. اتفاقاً هم هغه درویش چې نصیحت یې ورته ویلی و، ده مخ ترې جار یستلی و[2] په هغه لار تیریده، هغه ظالم له خپلو یارانو سره خیرې کولې. چې نه پوهیږم دا اور زما په کور له کومه لوریه ولگیده، درویش ورته وویل چې له آه ددرویشانو.

## قطعه

په حذر اوسه د خوږ و زړوله آهه
چې آخر دزړه نښه ژبه ښکاره کا.
دیو کورخه چې له دې اوره لوی ښهرونه
هسې سوزې چې عالم یې نندارہ کا[3]
دالطیفه په تاج د کې خسرو بادشاه کښلې وه.

## رباعي

څو څو کالونه به را باندې تیر شي
شیرین صورت مې به په بل بل پیر شي
دا ملك د نورو و ما ته راغی
بل ته به هسې لما نه و یر شي

---

۱ـ واز بستر فرش بر خاکستر گرم نشانه
۲ـ ز -
۳ـ ا - "بهم برمکن تا توانی دلی که آن جهانی بهم بر کند"

# حکایت

## [ ۲۸ ]

یو پهلوان و چې په هنر کې د پهلوانۍ کامل و، تیر صو شپیته هنره یې فاخر ددې کسب حاصل وو، هره ورځ به یې یو هنر ښکاره و. مګر په یوه شاګرد یې مهرباني تر نورو زیاته پیدا شوې وه. تیر صو یو کم شپیته بندونه یې ورته وښیل، یو بند یې ورځنې پټ کړ، په ښیل کې یې دفع الوقت کاوه. عاقبت هغه هلك هم په هنر کې د پهلوانۍ سر آمد شه. نور شاګردان یې پس کړه، د چا مجال نه و، چې له ده سره یې برابري وکړي. یوه ورځ د بادشاه دوړاندې لاف وواهه چې د استاد په ما باندې فضیلت از روی حقوق داستادۍ دی. چې تربیت کړی یې یم، او که نه په قوت تر ده کمتر نه یم، او په صنعت کې ورسره برابر یم. بادشاه ته دا خبره دشواره ښکاره شوه. بده پرې ولګیده، حکم یې وکړ، چې سره دې مصارعت وکا. میدان یې د پهلوانۍ ورته جوړ کړ. پادشاه ارکان دولت امرایان[1] واړه جمع شول. خلق ډیر ټول شه. هغه ځوان لکه مست هاتي راغی،په هسې دماغ چې که دوسپنو غرېې په مخ کې وی، هم به یې لوړ ولی و، استاد یې فکر وکړ. چې دي ځوان دی. په قوت تر ما ډیر دی، هغه هنر یې چې ترې پټ کړي و ورته یې واچوه. شاګر د یې دفع کولی نه شه، عاجز شه، استاد په دواړه لاسه پورته کړو، تر سریې ځار کړ، په

---

۱ ــ ح :- " زور آوران روی زمین "

ځمکه يي وويشت. شور له خلقه پاڅيده، بادشاه وفرمايل چې استاد لره يې خلعت او نعمت ورکړئ، او شاګرد يې ملامت کړ چې له خپل استاد سره دا هومره شوخي کول څه مناسب، وې يې اي بادشاهه! استاد په ما په زور په قوت غالب نشه، بلکه له ما يې يو هنر پټ کړي و، زه يې نن ورځ په هغه هنر لاندې کړم. استاد وې: ما همددې ساعت دپاره له تا دا يو هنر دريغ کړی و، چې هو ښيارانو ويلي دي چې:دوست لره هو مره قوت مه ورکوه چې که احياناً غليم دې شي برابري درسره وکا.[۱]

## قطعه

يا وفا په دا جهان کې ځاني نه وه

يايې نه کا څوك زموږ په زمانه

له هر چا نه چې ويشتل د غشيو زده کا

هم هغه په عاقبت کا نشانه

(د دو دام له ديو سړيو وفادار وي

ښه چې ګرځي ليوني په ويرانه)[۲]

---

۱ـ ح : "نشنيده که چه گفت آنکه از پرورده خويش جفا ديد."
۲ـ ز.

# حکایت

## [ ۲۹ ]

یو درویش وو مجرد ګوشه نشین، په صحرا ناست و، دبادشاه پرې ګذر وشه. درویش په ملك د قناعت توانګر و. هیڅ التفات یي ورته ونه کړ، بادشاه په خپل سلطنت مغرور و. ورځنې برهم شو. وې ویل چې دا طایفه په مثال د حیواناتو ده . آدمیت اهلیت ورڅخه نشته. وزیر دوریش لره راغی ورته یې وویل چې بادشاه ددې ملك په داتیر شه ، تا یې ولې خدمت او ادب په ځان رانه وړ؟ درویش ووې: بادشاه ته ووایه چې اُمید دخدمت له هغه کوه چې امید ددولت له تا لري. بل دا چې بادشاه ساتندوی درعیت دی، نه رعیت ساتندوی[1] دبادشاه سَیِّدُ الْقَوْمِ خَادِمُهُمْ دا دګمکر تر غوږ نه دي رسیدلي:

### مثنوي

په معنی با دشاه خادم درعیت دی
که هرڅو ښبتن د حکم حکومت دی
رعیت لکه رمه بادشاه یې شپون وي
چې خدمت درمې نه کا شپون زبون وي
هم یې ژغوري له لیوه هم یې ښه پیایي
هم تر قوت هومره اخلي چې پرې پایي

---

۱ ـ ز

د رمې څښتن مالك پروردګار دی
تصرف ډې شپون پرې نه کا که هوښيار دی

## قطعه

د يوه که کل مراد زړه حاصل دی
د بل زړه په نا مرادۍ زير و زبر
نامراد دې يو څو ورځې صبر وکا
مرګ به زر کاندې دوی دواړه برابر
د پادشاه د ګدا هيڅ تفاوت نشته
چې څيري د مرګ اره ددواړو سر
که قبر ونه يې څوك وران کا ويې ګوري
څوك به وايي چې دا خوار دی دا توانګر

بادشاه ډير په دا ويل ددرويش خوښ او ممنون شه، ورته يې وويل چې څه وغواړه. وې يې: دا غواړم چې له ما څه نه غواړې (غرض را سره نه لري) بادشاه ووې پند راته ووايه:

## بيت

دا څو ګاهه غنيمت دې نګاهبان شه دانفاس
که دې ملك که ډې دولت يې لاچار درومي لاس په لاس

## رباعي

عدل انصاف کړه دملك بادشاهه
څو دې لاګرځي په ځان کې ساهَ

راتلنه کیږي د مرگ نا گاهه
په ځان خبر شه دځان گمراهه

# حکایت

## [ ۳۰ ]

یو وزیر په خدمت د ذوالنون مصري رحمة الله علیه راغی همت یې وغوښت چې په شپه او ورځ په خدمت د بادشاه مشغول یم له خیره یې امید واریم، له شره یې په ویره، ذوالنون وژړل چې که زه له خپله خدایه هسې په ویره په هیبت وی، لکه ته له بادشاهه، له جمله و صدیقانو به وم.

### قطعه

که بې خدایه یې امید وچا ته نه کړی
ددرویش قدم به پاسه په فلك و
که وزیر له خدایه هسې ترسنده وی
لکه ترس کا له ملك نور ملك و

# حکایت

## [ ۳۱ ]

وزیران د نوشیروان جمع شوي وو، تدبیریې دیوه ملك د بندو- بست کاوه. هر یوه په موافق دخپل فکر مذکور کړ، بادشاه یو تدبیر

چې په زړه کې يي جوړ کړي و، بيان يې کړ، برز جمهر دبادشاه رايې پسند کړه، نور وزيرانو وويل چې: دبادشاه په رايې کې دې څه خوبي او مصلحت وليده چې په هومره وزيرانو کې ستا دده مصلحت غوره شه؟ حکيم ووې: په دا سبب چې آخر د کار په يقين معلوم نه دی. او فکر دواړو په مشيت کې د الله تعالی . والله اعلم خطا دی که صواب، پس موافقت د بادشاه له راې سره بهتر چې که احياناً خلا ف صواب راشي چې متابعت دده دفکر وي. له غضب به دده ايمن وم.

قطعه

د با دشا ه متابعت و رلره بو يه
که څوك ځان عزت دده له قهره ژغوري
رڼاورځې ته که ووايې چې شپه ده
وايه وختې پريو ونې غټې غټې ستوري

# حکايت

## [ ۳۲ ]

يوه شخص وينبنته دسر ګيسو کړه چې زه سيديم، دحجاز له قافلې سره راغي چې له حج راغلي يم، قصيده يي دشعر بادشاه لره يو وړه چې ما ويلې ده. بادشاه خلعت نعمت وروبخښل، يو دبادشاه له همنشينانو هم په هغه کال له سفره راغلی و، عرض يي وکړ چې ما دي دلوی اختر په ورځ په بصره کې ليدلی و. حاجي څرنګك دی؟ بل

ووې: زه يې پيژنم پلار يې نصراني دی، سيد په څه شه. شعر يې دا نوري په ديوان کې بيا موند. ده شعر دزدي کړې ده . بادشاه پرې په قهر شه، حکم يې پرې دوهلو وکړ چې دا هومره دروغ دې دڅه پاره ويل؟ وې يې.[1] يوه بله خبره که حکم شي ووايم که هغه دروغ شي. نور هر عقوبت چې رارسوې سزاورا يم. بادشاه وفرمايل: ووايه ، ويې وې:

## قطعه

چې يو کاسه اوبه چمچې شنو بې وي
دفقير کره اوګره هاله شي سپينه
په دروغو دبنده په غضب مشه
جهان ګرد سړی اکثر دورغ واينه[2]

# حکايت

## [ ۳۳ ]

دهارون رشيد له زهمنو يو پلار لره راغی، خشمناك، چې فلانه امرا زاده ما ته ښکنځل دمور کړي دي. هارون رشيد ارکان دولت وپوښتيدل چې سزا د هسې سړي څه ده؟ يوه يې اشارت په

---

۱- ح : - اي خداوند روي زمين.
۲ ح: ملک راخنده گرفت از اين راست تر سخن تا عمر او باشد نگفته است . فرمود: آنچه مامول اوست مهيا دارند و به دلخوشي او را گسيل کنند"

وژلو وکړ، بل ووې دژبې پریکول یې بویه، بعضو یې قید[۱] مصحلت ولید. هارون ووې، اي زویه! نیك خویي او کرم دا دی چې عفو یې کړې او که نه توانیږي ته هم ورته ښکنځل وکړه. نه وي چې له حده تجاوز وکړې. ظلم به هاله ستا له لوریه شي. دعوه به درباندې دده:

## قطعه

مست هاتي خوني مزري سره که جنګ کا
که به لاف دمردي کا ورته نه ښايي
مرد هغه دي په نژدې د ښو څوا نانو
چې په قهر کې باطل چاته نه وايي

## حکایت

## [۳۴]

شیخ وایي قدس سره چې له بزرګانو سره په بیړۍ کې ناست وم، یوه کشتۍ ډوبه شوه. دوه ورونه په ګرداب کې پریوتل، یوه له بزرګانو ملاح ته وویل چې دا دواړه وکاږه چې سل دیناره درته انعام کړم[۲] ملاح یو خلاص کړ، یو ډوب شه. وې مې سبحان الله باقي عمر یې پاتو نه و( ځکه په وکښل کې دهغه تاخیر واقع شه.[۳] ملاح وخندل وې یې چې یقین دی په دا کې شك نشته ( مرګ دهر چا په

---

۱_اصل لفظ مصادرت دی.
۲_ ف:- " که به هر یکي پنجاه دینارت بدهم.
۳_ ف:- " از این سبب درګرفتن او تاخیر کردي و در آن دیګر تعجیل"

خپل وار دی(۱) اما بل سبب هم و. وې مې هغه څه دی؟ وې يې دا چې خلاص شه(۲) ، يو وقت په بيابان ستړي شوم (د تلوقوت مې نه و) په اوښ يې سور کړم، تر منزل يي ورسولم، او ددې بل له لاسه مې تازيانه خوړلې وه . وې مې: صَدَقَ اللّٰهُ الْعَظِيْمَ مَنْ عَمِلَ صَالِحاً فَلِنَفْسِهٖ وَ مَنْ اَسَاءَ فَعَلَيْهَا.

## قطعه

چې بد ښه عاقبت ځان ته راجاروځي
زنهار مه اخله د هيچا آزارونه
په دنيا په دين خپل کر سړي اخلي
کر د ګلو کوه مه کره خارونه(۳)
تل حاجت پوره کوه دمحتاجانو
چې ستا هم څښتن پوره کاندي کارونه

## حکايت

## [ ۳۵]

هارون رشيد چې ملك دمصر ونيو. وې يې: په خلاف دهغه باغي چې په غرور يې ددې ملك دعوې د ربو بيت کړې وه، و به نه

---

۱ـ ز
۲ـ ح:- " ميل خاطر من برهانيدن اين يکي بيشتر بود"
۳ـ ۹:- " تا تواني درون کس فخر ش کاندرين راه خارها باشد"

بخښنم. دا ملك مګر خسیس ترین و ته دمریونو یو حبشي مریي دده وو خضیب نوم، هغه ته یې ملك د مصر و باخښه. وایي چې حماقت یې تر دې حده و چې رعیت راغی شکایت یې وکړ. چې پنبه مو کرلې وه په کناره درود نیل، باران بې وقته وشه، سیلاب راغی، واړه تلف شوه. وې یې: روخ وه چې تاسي وړیه کرلی وی. یوه صاحب دل واوریدل وې یې:

## قطعه

رزق روزي که زیاتیدی دچا په پوهه
په دنیا کې به تل خواروو نادانان
په کم عقلوباندې هومره دولت ډیرکا
په حیرت شي ورته پاتو دانایان
کیمیا ګر هنر مندان په خواري ومري
ابله مومي خزانه په بیابان

# حکایت

## [۳۶]

یوه بادشاه ته یې له ختن وینځه راوسته، خواهش یې ورسره دصحبت وشو، په هغه حال کې چې دی مست و، وینځې ځان ته نه پریښه، منع یې کړ. بادشاه په غضب شه، غلام حبشي ته یې وبخښله

چې ډیر بدرنګک بد قیافه و. پاس شونډه یې تر پوزې رسیدلې وه، او کوزه شونډه یې په ګریوانه پریوتې وه.[۱]

## قطعه

لکه ختم په یوسف دحسن کارو
هسې دی په بدرنګک والي کې دوخارو
دیو به هم ورته نظرکاوه په کرکه
هسې رنګک کریه منظر بغل مردار و[۲]

راوړي دي چې نفس د هغه حبشي دمدتو نو طالب و، شهوت پري غالب و، مهر یې پري پیدا شه. مهر یې تر واخست. صبا په وقت بادشاه وینځه یاده کړه[۳]، احوال یې ورته ووایه. بادشاه په غصه شه. ویي فرمایل چې دواړه سره وتړی، له کوټې یې وخندق ته واچوئ. یو له وزیرانو چې خیرخواه دخلایق و، عرض یې وکړ چې بیچاره ګناه نه لري. ګناه ترې صادر شوې نه ده، بلکه واړه بندګان امید وار دصاحب له انعامونو دي. او پرورده د نعمتونو پادشاه. وفرمایل چې که یوه شپه یې تاخیر کړی وی ما به بها دوینځې دوچنده ورکړې وه. وې یې[۴] مګر صاحب نه دي اوریدلي چې چا ویلي دي :

---

۱ـ ح:- هیکل که صخره جنسي از طلعت او با سیدي و عین القطي از بغلش بگزیري.
۲ـ داشعر په اصل کي نشته، خو داسي ښکاري چي بره یې د نثر د کومو جملو ترجمه نه ده کړي، دا شعر یې د هغو په ځای یې راوړی دی.
۳ـ ۹:- بجست و نیافت .
۴ـ ح:- آنچه فرمودي راست است.

## رباعي

تږي چې ووینې اوبه دوړاندې
که مست هاتي وي په اوبو باندې
ترڅان به تیر شي او به به وڅښي
که یې هاتي کا تر پښو دلاندې

## رباعي

ملحدوي وږي خونه خالي وي
ډك له طعامه ښېي تا لي وي
غم به هیڅ نه کا له رمضانه
روژه خوړل به یې په خوشحالي وي

پادشاه په دا لطیفه دوزیر خوښ شه، وې فرمایل چې حبشي مي تا ته بخښلی، اما دا وینځه څه کړم؟ وزیر عرض وکړ. چې وینځه هم حبشي ته و بخښه. پس خور ده دسپي سپي ته بویه.

## قطعه

که هرڅو یې ښه پوشاك ښه یې زیور وي
د بازار لولۍ بدبو یه وي خبیثه
پس خورده د سپیو سپیو لره ورکړه
نصیحت واخله زما له دې حدیثه[۱]

---

۱ ـ (۱ـ هرگز او را بدوستي مپسنده که رود جاي ناپسند یده . ، " تشنه را دل نخواهد آب زلال
نیم خورده دهان گندیده "

اَلطَّیِّبَاتُ لِلطَّیِّبِیْنَ اَلْخَبِیْثَاتُ لِلْخَبِیْثِیْنَ
په کتاب کې را غلي دینه[۱]

## حکایت

## [۳۷]

سکندر رومي چا و پوښتیده ، چې ملك دې دمشرق د مغرب په څه وینو، تر تا پخوا بادشاهان چې تیر شوي دي ، لښکر خزاني عمرونه یې تر تا زیات وو، دا رنګ فتح ورته میسره نشوه؟ سکندر وفرمایل: په مدد مې د الله تعالی هر ملك چې وینو رعیت مې نه آزاره وو او نوم مې دبادشاهانو بې نیکۍ په بدۍ نه یادوو.

### بیت

په بزرګي به یې هوښیار سړي نه ستایي
سپك ویل چې بزرګانو و ته وایي

### قطعه

واړه هیڅ دي چې تیر یږي که دې بخت که دې تخت
د ښو نوم په ښه آ خله په دوه کونه شه نیکبخت

---

۱ـ ا- دست سلطان دگر کجا بیند چون بسرگین در او فتاده ترنج
تشنه را دل نخواند آن کوزه که رسید است بر دهن سکنج

له هر چا شه په خوى نرم — جهان دى له سختو سخت
په خپل وقت عدل انصاف کړه — تل به نه وي د تا وخت
دښه بد قماش معلوم شي — هرڅوك ونغاړي خپل رخت

# حکايت

## [ ۳۸ ]

چا زيرى په نوشيروان عادل باندي وکړ، چې فلا نه د ښمن دې حق تعالي له جهان واخست.وې يې: هسې دې اروېدلي دي چې ما به پرېږدي؟

### قطعه

دغليم په مرګ چې وار وې هرګز مه کړه ښادماني
نن دى لاړ صبا به ته ځې دا ځاى نشته وداني
عاقبت له دې جهانه تله دهر چا په نا کام دي
ته هم نور وغوندې وکړه يو څو ورځې کامراني (۱)

# دویم باب

## په بیان دخوی خصلت ددرویشانو

### حکایت

[ ۱ ]

یوه له بزرگانو یو پارسا وپوښتیده په حق د فلا ني عابد څه وایې؟ خلق وزئني خبرې،چې مناسب نه دي، وايي.پارسا ووې: په ظاهر یي عیب نه وینم، په باطن یې په غیب نه پوهیږم.

### قطعه

په ظاهر چې څوك ووینې چې پارسا دی
پرهیز ګا رېې وګڼه نیکو کردار
که یې نه یې خبر دار له ا ند رونه
محتسبه ستا په کور د چا څه کار

# حکایت

## [ ۲ ]

شیخ وایي قدس الله سره العزیز چې یو درویش و چې سر یې په آستانه د کعبې ایښی و. ژړل یې مناجات یې کاوه، یا غفور یا رحیم ته پوهیږې چې له ظلوم له جهول به څه کار کیږي.

## قطعه

تقصیرونه مې راوړي د خدمت دي
تکیه نکړم په طاعت په خپل کردار
که عاصیان له ګناهو نو استغفار کا
عارفان له طاعتو نو تو به ګار

عابدان جزا د طاعت غواړي، سوداګران بها د بضاعت. زه بنده امید وار راغلی یم، نه په طاعت په درویزه راغلی یم،نه په تجارت.

## قطعه

ای چې وما ته وایې ښه نه یې
ښه چې زه بد یم ښه چې ته ښه یې
زه به هغه کړم لکه چې زه یم
ته هم هغه کړه لکه چې ته یې [1]

---

۱ـ داقطعه ددي عبارت ترجمه غوندي ده: اِصْنَعْ بِنَا اَنْتَ اَهْلُهُ وَ لاَ تَفْعَلُ بِنَا مَا نَحْنُ بِاَهْلِه

## بيت

که مې وژنې که بخښې مې، سر مې يښی ستا په در دی
څه يم زه،څه مې خواهش دی دتا حکم زما سر دی

## قطعه

دکعبې په وره سر يښی يو سايل و
دا دعا يې خپل څښتن ته په زار زار کړه
دازه نه وايم قبول زما طاعت کړه
گنا هو نه آ و ا ر ه زما بد کا رکړه

## حکايت

## [ ۳ ]

شيخ وايې قدس الله سره العزيز چې شيخ عبدالقادر گيلانې رحمة الله عليه مې ليده[۱] چې مخ يې په ديوال د کعبې يښی و، مناجات يې کاوه، چې ای رب العالمينه! ومې بخښې او که نه لايق دعذابو يم، نو په قيامت کې مې نا بينا پاڅوه چې دنيکانو له مخه شرمنده نه شم.

## قطعه

مخ هميش دعاجزۍ په خاوره مږم
هر سحر چې ستا له لوريه راشي باد

---

۱ ـ ۱:-"ديدند" يعني "چاو ليده" . دا درست ښکاري ځکه چې شيخ سعدی (رح) د شيخ عبدالقادر گيلانی (رح) دوفات نه ورستو پيدا شوی دی.

چې يو دم مې له خاطره بيرون نه يې
دا بنده په رحمت هم کړه کله ياد

# حکايت
## [ ۴ ]

يوغل پارسا کره ننوت څه يې بيا نه موندل. نا اميد روان شه. پارسا خبر شه. په هغه ګليم چې ملا ست[1] و، وايې خست. دغله په لار کې يې واچاوه چې محروم نه درومي دا يوسي.

## قطعه

اوريدل مې چې مردان دخداى دلاري
زړه يې نه وي چې غليم ترې ځي دلتنګ
دا مقام به تا ته کله ميسر شي
چې دې تل وي له دوستانو سره جنګ

هر چې ځوانمردان دي، روبروپسې شا يك همان دي. نه چې پسې شادې عيبونه وايي، روبرو دې صفت کاندي.

## نظم

رو برو د ې په نقاق کاندي ستا ينه
سرومال دې په نيت خوري د زړه دننه

۱ _ دکالج په نسخه کې "نماستا" ليکلى دى.

دا چې ته باندې گمان کړې چې یاران دي
ظاهر نښه له زهرو ډك لکه ماران دي

څوك چې عیب د بل راوړي درته وایي
هسې رنگ به ستا عیبونه بل ته نمایي

# حکایت

## [۵]

شیخ وایي قدس الله سره چې څو تنه سیاحان وو، شریك درنج دراحت، اراده مې وشوه چې زه هم له دوی سره په سیر د جهان ملگرې وکړم، اما نه یې پرېښوم. زما په رفاقت رضا مند نه وو، ورته مې ووې: عجب دی، د بزرگانو له خویه چې مخ له مصاحبته دفقیرانو جار باسي . البته زه هم په ځان کې هومره قوت وینم چې په خدمت کې حاضر وم نه چې باردخاطر وم. یوه له دوی وویل چې له دې خبرې دلتنگ مشه په دا څو گا هه کې یو غل چې په صورت د صالحانو له موږ سره مل و ،موږ پرې اعتماد وکړ، ده را باندې فساد وکړ.[۱]

### مثنوي

ظاهر حال د فقیرانو کند خرقه د ه
چې خدمت یې کا ورماته خلقه ده

---

۱ ـ ل :- خود را در سلک صحبت ما منتظم کرد " از آنجا که سلا مت حال درویشان است گمان فضولش نه بردند و به یاری قبول کردند :

کښنو نی پوه وي چې په دا مضمون نامه ده
دپارسا د سپاهي فرق دليل جامه ده
قول فعل خپل په شرع برابر کړه
غم دې نشته په تخت کښينه تاج په سر کړه
چې هوا حرص يې لرې کړه فقير دی
فقيرنه دی چې دنفس په بند اسير دی
مړ نی و ته اسباب د جنګ بهبود دی
مخنث که بختر واغوندي څه سود دی
چې بې خدايه يې خاطر له هر څه سوړ شي
له هغه پس به پرې نوم د فقير جوړ شي

القصه يوه ورځ مو پند درسته ورځ وکړ، ستړي ستومانه شو، په شپه ديوه حصار لاندې ويده شوو، هغه غل پاڅېده، کوزه يې واخسته چې طهارت لره درومم، غارت لره روان شه.

## بيت

چې د فقر جامه واغوندي ناکس
دخره ځل شي دکعبې کښلی اطلس

هرګاه چې له نظره غايب شه.( برج يې مات کړ، غلايې وکړه)[1] چې صباشه ډلري لاړو، دا ياران يې بې ګناه چې هيڅ په دا حال نه وو آګاه، کوټ ته يې ننه يستل، په زندان يې کړه، پس له

---

۱_۱:- برخی برقت دور جی بدزديد.

ډیرو عذابونو شد تونو خلاص شوو[۱] دهغه تاریخ په راهیسې مو ترك دصحبت وکړ، اختیار مو عزلت کړ.

## قطعه

چې په قام قبیله کې یو بد وکا
په سبب دیوه بد واړه یادیږي
خرغوڅکي دیوه ګډ دچا په کبنت شي
بد نامي یې تمام کلي ته رسیږي

وې مې الحمد الله که له صحبته د بزرګانو محروم شوم، اما له دې حکایت مستفید[۲] تمام عمر دا نصیحت را لره کافي دی.

## قطعه

یو نا تراش هسې کاروکا په مجلس کې
چې له شرمه درست مجلس پرې سرنګون شي
یو دوه مچ په من فليلو کې چې پریوځي
همګي فلیل زبون کاندي بد بوی شي

# حکایت

## [ ۶ ]

یو زاهد میلمه د بادشاه شه. طعام یې لږ وخوړ تر خپل عادته[۲] او[۳] قرأت یې اوږده کړو دکور تر قرأته، چې که ارادت د

---

۱ـ ز.
۲ـ ف:- " از فواید درویشان محروم نماندم، اگرچه بصورت از صحبت جدا افتادم بدین حکایت که گفتی مستفید گشتم ".
۳ـ ا:- ارادت.

بادشاه په صلاحیت دده تر اول زیات شي د ( عوام خلك په تتبع د بادشاه ورمات شي.)[۲]

## قطعه

و کعبي و ته به څر نګه ور سیږې
روان شوی چې په لور د ترکستان یې
چې ګاټه شي پرې جنت هغه نمونځ بل دی
ته په دا لمانځه دوزخ وته روان یې[۴]

هرګاه چې کور ته راغی طعام یي وغوښت چې وخوري. زوی یي صاحب فراست و وې یې اي پلاره! په مهماني د بادشاه لاړ وې ولې دې طعام ونه خوړ ؟ وې یې: په نظر مې دودی هومره څه ونه خوړل چې پکار راشي. وې یې سکه نمونځ هم قضاو جارباسه چې هسې به دې نه وي کړی چې دې‌پکار راشي.

## رباعي

عیبونه پټ کړې هنر څرګند کړې
ځان د عوامو و ته پسند کړې
څو به د قلپور و پوخرید کړې
آخر به بند شي دځان ګزند کړې

---

۱_ ح:- " چون به نماز برخاستند"
۲_ ز.
۳_ ز.

# حکایت

# [ ۷ ]

شیخ وایي قدس الله سره العزیز چې په هلك والي په عبادت مین وم. شب خیز محبت مي ډیر په تقوي په پرهیز. یوه شپه دپلار په خدمت کې ناست وم، قرآن مجید مې په غیږ کې ترسحره مې تلاوت کاوه. بعضې خلك چاپیر تر مونږ او ده وو، تر خولې مې ووتل چې یو هم سر نه پورته کوي. هسې په خوب دغفلت ویده دي چې ګویا مرده دي. پلار راته وویل چې اي زویه! دریغه ته هم اوده وی چې ددوی عیب دې کړی نه وی.

## مثنوي

که در وبخبني حق سترګې خدا بینې
ځان به ته تر همه خلق بتر وینې
دګمان پرده که لرې کړې د وړاندی
همیشه به بد ګمان شې په ځان باندې

# حکایت

# [ ۸ ]

دیوه بزرګ صفت چا په مجلس کې رو برو ډیر کاوه، په ستاینه کې مبالغه وشوه. هغه بزرګ پس له ډیره فکره، سر پور ته کړ، وې ویل ،من آنم که من دانم.

## قطعه

په ظاهر که دعالم ته ښه ښکارېږم
په باطن کې تر هر چا نه شرمساریم
شرمنده تر خپلو پښو لکه طاوس یم
که نور خلکو ته په نقش و په نګاریم

## حکایت
## [ ۹ ]

یو دیونان[۱] دمشایخو چې مقامات یې په ملك د عربو مشهوروو، او کرامات یې په خاص و عام کې مذکور. ددمشق په جامع کې یې د حوض په غاړه اودس کاوه، پښه یې وښویده، په حوض کې پریوت، په ډیر مشقت خلاص شه، راووت چې نمونځ یې وکړ. یوه یار ورته عرض وکړ، چې: " زما یو مشکل دي امید واریم چې حل شي." شیخ ووې ووایه! وې یې په سیند مې دمغرب لیدلې چې پورې و تې. قدمونه ئې تر نه شو. نن ورځې په حوض کې چې قد آدم او به دي پریوتي. له هلاکته څه پاتو نه وو[۲] شیخ سر د فکر په ګریوانه ننه یوست، پس له ډیره درنګه یې پورته کړ. ویې وې: اوریدلي دې نه دي چې خواجه عالم صلي الله علیه وسلم فرمایلي دي: «زما له خدایه سره هسې وقت وي چې نه ځایږی هور ته نه مقربې

---

۱ـ ۱:- لبنان . یاکوه لبنان.
۲ـ دلته یې څه عبارت حذف کړی دی.

فرشتې، نه انبياء مرسل، هسې يې ونه ويل. چې هميشه دا هسې وي.

## بيت

کله مخ کړې و خپل يار ته کله بيا وده ته څټ کړې
تود بازار دخپل ښايست کړې دی دعشق په لنبوټ کړې

## حکايت منظومه[۱]

## [ ۱۰ ]

چا سوال وکړ له يعقو به دا سروواپه وماته
ديوسف[ع] دکميس بوي له مصره درغي و تاته
په کوهي کې دکنعان و، ولې ته پرې خبر نه شوې
په تاثير يې د زلفينو دبوی هيڅ موثرنه شوې
وې يې حال مقام زموږ ه په معنی لکه بريښنا دی
کله کله له موږ پټ شي کله کله هويدا دی
گهي پاس په آسمانو نو باندې گشت کو پروازکړو
گاه په مزمکه تر پښنو لاندې اغزي نه وينو نماز کړو
که نبي دی که ولي دی، دم په دم په بل بل حال دی
چې تبديل تغير يې نشته يو قادر بر کمال دی

۱ـ په اصل کې دې ابيا تو ته مثنوي ليکلی دی، يعنې دا د تېرې قصې يو برخه گرځولې شوې ده.

# حکایت

## [ ۱۱ ]

شیخ وایي قدس الله سره العزیز چې په مسجد جامع کې د بعلبك وعظ مي وایه، یو څو افسرده، دل مرده راته ناست وو، هیڅ تاثیر پرې نه کیده.[۱] وپوهیدم چې په صورت انسان په سیرت حیوان دی. دریغ راغی چې تربیت کوم دچارپایانو، آئینه داري کوم دکورانو اما ور دمعنی پرانتی شوی و لا چار بیان کاوه شه، په دا خبره ورسیدم .[۲]

### قطعه

یار و ما وته تر ما نه لا نژدې دی
عجب دا چې دی نیژ دې زه څنې دوریم
څه کړم چاوته احوال دزړه بیان کړم
یار زما په غیږ کې ناست زه ترې مهجور یم

زه په پیاله ددې خبري مست وم،تتمه په پیاله کې لاجرعه پاتو وه،چې یو شخص په کناره د مجلس تیریده ، اثر پرې وشه. فریاد یې وکړ، په جوش راغی. هغه نور افسردګان په موافقت دده

---

۱ـ "راه ازعالم صورت به عالم معنینه برده"

۲ـ ۹:- در معنی این آیت وَ نَحْنُ اَقْرَبُ اِلَیْهِ مِنْ حَبْلِ الْوَرِیْد " سخن بجای رسانیده بودم که می ګفتم"

په خروش[۱] وې مې سبحان الله لرې خبر دار حضور دی. حضور بیخبر او دور دی.

## قطعه

مستمع چې فهم نه کا دخبرې
قوت کم شي د ګفتار دسخن ګوی
دسامع په موافق خبرې کړونې
دګفتار په چوګان وړې د معنو ګوی

## حکایت

## [ ۱۲ ]

شیخ وایي قدس الله سره العزیز یوه شپه په بیابان دمکې دلار ي خوب را باندې زور شه، تلی نه شوم، سر مې ولګوه. شتربان ته مې وویل: چې ته درومه ما پرېږده .

## قطعه

بیچاره پیاده هیڅ ملا مت نه دی
په دا لار که شبګیر کولی نه شي
بختی اوښ په دا منزل کې درمانده شي
ومنزل نه تر بار لاندې تللی نه شي

۱ـ" وخانان مجلس درجوش"

بعضو يارانو راته ووې اى وروره! حرم دوړاندې دى. حرامي (۱) دې دورستو، كه لاړې ځان به يو سي. او كه اوده پاتو شوې و به مرې.

## قطعه

دشبګير په شپه خوب ډير لري لذت
له ضروره مسافر پريږدي راحت
چې جدا له قافلې شي هغه ورك شي
په هرحال ورسره بو يه رفاقت

## حكايت

## [۱۳]

شيخ وايې قدس الله سره العزيز چې يو پارسامې وليده، په كناره د سيند پروت و. پړانګ زخمي كړى، جراحت يې په هيڅ دارونه ښه كيده. ډير مدت رنځور و. شكر يې دخداى تعالى په هردم وايه چې الحمدالله په مصيبت ګرفتار يم نه پر معصيت.

## قطعه

| | |
|---|---|
| كه مين توره راوا خلي | وكشتن ته مې شي خير |
| دا ګمان له زړه بدركړه | چې په مرګك به وم زهير |
| غم اندوه مي به په داوي | چې له ما وشه كوم تقصير |
| چې دا هسې مشفق يار مې | آزار شوى دى د لګير |

---

۱ـ" په اصل كې همدغه لفظ راغلى دى،هلته يې معنى د ډاكه ماريا شو كمار ده "

# حکایت
## [۱۴]

یوه درویش لره ضرور پیښ شه. څه څیزیې [۱] دیار له کوره پټ کړ. حاکم حکم وکړ، چې لاس یې پرې کاندئ. صاحب دهغه مال [۲] شفاعت وکړ. چې ما بخښلی دی، لاس یې مه پرې کوئ. حاکم ووی: دا سیاست شرعي ما ته نه رسي، چې عفو یې کړم [۳] وې یې رښتیا وایي حکم هسې دی. اما دوقف مال که څوك په غلا یوسي قطع یې لازم نه ده. اَلْوَقْفُ لاَ یُمْلِكُ. هر چې ملك د دوویشانو دی، وقف په محتاجانو د ی. حاکم لاس ورځنې و کښل،ورته یې از روی نصیحت ووې چې جهان در باندي تنگ و، چې دهسی یار له کوره دې غلا کوله ؟ وې: اي بادشاه! آوریدلي دې نه دي، چې هوښیارانو ویلي دي. ددوستانو کور جار وکړه ددښمنانو په وره مه ودره.

### قطعه

که سختی درباندې درشی چیرې نه پکې عاجز شې
پوستین اخله ددوستانو پوست وکاږه دغلیم

---

۱_۱ :- گلیمی.
۲_ ۹: گلیم.
۳_ ۹:- گفتار به شفاعت توحد شرع فرونه گذارم.

دا فتوي د شريعت ده اهل حق به پرې پو هيږي
کاني خوره غابښو نه مات کړه روټۍ مه خوره دليم[۱]

# حکايت

## [۱۵]

يوه بادشاه يوه درويش ته وويل: هيڅ دې زه هم کله ياد شم. وې يې: هر ګاه چې حق تعالی مې هير شې ته مې ياد شې.

### فرد

چې يې وشړی له دره وهر درته هغه زغلي
کله درومي وبل در ته و خپل درته يې بللي

# حکايت

## [۱۶]

يوله صالحانو خوب وليده چې بادشاه په جنت کې و. پارسا په دوزخ کې. پوښتنه يې وکړه، چې موجب دده دجنت دورتلو څه دی، سبب دهغه ددوزخ کوم ؟ چې زموږ ګمان په خلاف ددې و" وې يې" بادشاه په ارادت ددرويشانو جنت بياموند. پارسا په صحبت د بادشاهانو دوزخ.

---

۱ـ ز.

## قطعه

که یې لږ خاطر دنیا وته مایل دی
دنیا دار به یې ګڼي چې اهل هوش دی
چې خالي یې ددنیا له مینې زړه کړ
قلندریې وګڼه که زربفت پوش دی

## حکایت

## [۱۷]

یو درویش[۱] دحجاز له قافلې سره له کوفې را ووت[۲] خرامان خرامان پیاده په لار ته، دایې وې:

## نظم

شکر شکر چې نه شاه نه یې وزیر یم
نه ارباب دیوه ملك نه خان امیریم
نه مریې د چا خواجه نه یې نفر یم
نه تر بار لاندې د چا شتر نه خریم
نه د آس داوښ ښتن نه چرو داریم
دچا کار را باندې نشته په خپل کاریم

---

۱_ ح:- سرو پا برهنه.
۲_ح:- " وهمراه باشد نظر کردم که معلولی نداشت"

نه اندوه د نیستۍ کړم نه د هستۍ
هسي رنګ دبلندۍ نه د پستۍ[۱]
معلوم نشته اندیښنه د معدوم نه کړم
اعتبار په دا جهان موهوم نه کړم
په خوښی مې عمر ځي شکر ګذار یم
هر نفس په یاد دخپل پروردګاریم

یوه په اوښ سواره ورته ووې: ای درویشه! وجار وځه. پیاده درومي په سختۍ به ګورې چیرته ومرې. درویش پرې غوږ نه یستل، هم هسې یې قدم په بیابان کښیښ روان شه. هرګاه چې په نخله د بني هلال (چې دیوه منزل نوم و)[۲] قافله ورسیده، هغه تونګر ته اجل ورسیده، درویش یې په سرو دریده، وې بې موږ په سختۍ ونمرو ته په بختې ومړې.

## فرد

درسته شپه یې په بیمار باندې ژړا وه
بیمار روغ شو ومړه دی دده قضا وه

## قطعه

ډیر تندرست آسونه پاتو شي په لارې
ډنګر خر په ورو ورو ورشي تر منزله

---

۱ـ ز.
۲ـ ز.

غوځ په تورو رنځوارن له کټه پاځي
تندرستان زلمي مرګ بيل کا له محفله

# حکايت
## [۱۸]

يو عابد و جاهل بادشاه حضور ته وباله، عابد انديښنه وکړه چې دا رو به وخورم چې بادشاه ته ضعيف نحيف ښکاره شم، چې اعتقاديې را باندې وشي. دارويې وخوړل، خو دهغه زهر کشنده وو له هغه ساعت و مړ، هلاك شه.

### قطعه

هغه څوك چې مې پسته ګانه پر مغز
سر په سر واړه پوستونه لکه پياز و
هر پارسا يې چې يې کعبه دزړه مخلوق وي
که يي ملا په نمانځه خم کړه بې نماز و

### بيت

هر زاهد چې په اميد د بکرو زيد وي
له دې زهده به سود بيا نه مو مي شيد وي[۱]

---

۱ـ ف:- "چون بند خدای خويش خواند – بايدکه بجز خدا نداند"

# حکايت

## [۱۹]

په زمکه ديونان غلونو کاروان وواهه، ډير مال يې لوټ کړ. هر څو چې سوداګرانو ژړا زاري کوله، خداى تعالى او رسول يې صلى الله عليه وسلم شفيع کړه، فايده سود يې ورته ونه رسيده .

### بيت

غله چې بيامومي برى په کاروان باندې
کله غم دسودا ګرله ژړا کاندي

(شايد[۱] په هغه کاروان کې لقمان حکيم و) چا ورته وويل، چې پند نصيحت ورته وکړه، ګوندې دا مال پريږدي. دريغ چې دا هومره متاع بيځايه ضايع کيږي. لقمان وفرمايل: دريغ دى، دوى ته دحکمت خبرې ويل (چې مرغلري په خولو کې د سپيو تليږي)[۲]

### قطعه

| | |
|---|---|
| هريو تيغ چې مور چه وخوري | په صيقل يې نه ځي زنګ |
| نصيحت و سيه د ل ته | ګويا ميخ وهې په سنګ |

---

۲ـ ز.
۳ـ ز .

## قطعه

ځو لا جوړ يې خير خيرات کړه په فقراو
چې دعا به ددوی ستا د بلا سپرشي
چې سايل درځنې سوال کاندي څه ورکړه
ګنه مال به دې په زور د ستمګرشي

## حکايت

## [۲۰]

شيخ وايي قدس الله سره العزيز چې په ابتداءِ حال کې شيخ احد شمس الدين ابو لفتح خوارزمي له آرويدو دسماع په مبالغه منع کولم . امر يې راته دعزلت دخلوت کاوه، اما په ما ځواني غالبه وه. نفس مې دهوا دهوس طالب و. په خلاف مې دده له حکمه سرودآرويده، مجلس مې داهل سماع سره کاوه،چې نصيحت مې به د شيخ ياد شه وې مې:

## بيت

که قاضي له موږه کښيني هم به هسك په سماع لاس کا
محتسب که ميخوري کا مست به څه ځنې وسواس کا

يوه شپه اتفاقاً په يوه مجلس پيښ شوم، مطرب يې په منځ کې ناست و.

## بیت

رګګ وپی به په لرزه شول چې به ده سرو د آغاز کړ
چا به وې په مړه نارې شوې چې له خولې به یې آواز کړ
کله به دحریفانو ګوتې په غوږ ونو کې وې، چې که دا سرود وانو وري،کله به یې په شونډو کښیښوي، یعنې خاموش اوسه څه مه وایه.

## مثنوي

د مجلس عالم به هاله په آرام شه
چې خاموش به شه غزل به یې تمام شه
و مې وې د کور څښتن و ته ای یاره!
وکړه ما سره یو کار له دې دوه کاره
یا پنبه راوړه چې غوږ پرې دواړه بندکړم
یاورلرې کړه چې ووځم زړه خورسند کړم
په هرحال مې دیارانو دخاطر دپاره موافقت وکړ، په ځان مې اختیار مشقت کړ. هغه شپه مې له ضرور تیره کړه .

## قطعه

ګړیال د شپې له حاله خبر نه دی
چې ګړیال وهي دا هسې بې هنګامه
حقیقت دشپې پوښته له بیمارانو
چې بې خوبه پرې تیر یږي شپه تمامه

صبا په وقت مې دستار له سره کوز کړ، خرقه مې له بره وکښله[۱] دینار مې له ملا پرانت، سرو دي لره مې ورکړه، په غیب کې مې ونیو، ( مهرباني مې پرې وکړه. یارانو ملا مت کړم . حمل یې په خفت د عقل وکړ، ژبه یې د اعتراض را باندې اوږده کړه ، چې داځه مناسب وو[۲] چې خرقه د بزرګانو دې هسي ډم لره ورکړه ، چې تمام عمر یې درم په ورغوي کې چا نه وویښي [۳]( چې یو ځل چا لره ورغلی دی بیا یې نه دی پرېښی.)[۴]

## نظم

وردې نشي دا بد بخت د چا په خونه
و وژلي که نوي ترس دده له خونه

چې یو ځل یې په کور د چا ګذرشي
ګمان مه کړه چې به بیا دوباره ورشي

په آواز یې چې دحلق رګونه کلك شي[۵]
په صورت دآرویدوني ویښته لك شي

په نارو نارو بدبخت خیرې خپل حلق کړ
درسته شپه یې تمامی مجلس حلق دلق کړ

---

۱ـ ز.
۲ـ ډ: ویسی شکر ګفتم - یاران ارادت من در حق وی برخلاف عادت دیدند. و بر خفت عقلم نهفته بخندیدند - یکی از آن میان زبان تعرض دراز کرد و ملامت کردن آغاز ، که این حرکت مناسب رای خردمندان نکردی.
۳ـ ح :- و قراضه و ردف.
۴ـ ز.
۵ - دا کلمه دکالج په نسخه کې طینګ یعنې ټینګ لیکلې ده .

وې مې: مصلحت دادی چې ژبه د اعتراض كوتاه كاندي بدگماني پريږدي. گمان راباندې نيك وكاندي. چې ما ته كرامت دشيخ ظاهر شه. وې يې ( مونږ هم خبر كړه، وسواس موله زړه بدر كړه. چې كيفيت څرنگ و. چې شبه مو له زړه ووځي[1] وې مې:شيخ بارها راته فرمايل چې سرو دمه غوږ ياسه، ما نه اوريده، مگر نن شپه چې بخت مې رهبري وكړه دولت ياوري، دې ځاى لره راوستم ددې مطرب له لاسه مې نن شپه دسماع له اوريدو توبه وكړه چې باقي عمر به يې وانه ورم:

## قطعه

كه نغمه ورسره نه وي په داځه شي

هرآواز ښايسته دخولې اثر كا

كه بدرنگ سړى سرود كا په څو شانه

بيهوده دسامعانو درد سر كا

# حكايت

## [۲۱]

لقمان حكيم ته چا ووې ادب دچا زده كړى دى؟ وې يې "له بې ادبانو" وې يې څرنگه؟" وې يې" هر فعل چې ددوى راته بدښكاريده ما ترې احتراز كاوه ."

---

۱_ (۱)- گفت مرا نيز بر كيفيت آن واقف گردان تا همچنين تقرب نمايم و بر مطالبه كه رفت استغفار گويم.

## قطعه

دمعنو ښښتن عبرت ورځنې واخلي
که په لار ې کې پروت وو يني خسړی
که سل بابه دحکمت ورته بيان کړې
همگي واړه به باد گني باد وړی
( هيڅ په ما باندي منت داديب نشته
ما ادب له بې ادبو دی زده کړی)[1]

## حکايت

## [۲۲]

يو عابد و چې په شپه به يې لس سيره طعام وخوړ، ترسحره به په نمانځه مشغول و. يو صاحب دل واوريدل، وې يي: که نيمه روټۍ يي خوړلی درسته شپه يې خوب کولی له دې شب بيداری ورته بهتر و.

## قطعه

اندرون يې چې خالي وي له طعامه
زړه يې هاله ډك په نور دمعرفت شي
چې تر حلقه گيده ډکه په غله کا
له هغو کله خبر ې د حکمت شي

---

۱ـ ز.

# حکایت

# [۲۳]

دیو ورك شوي په تیاره کې د بیابان د فسق دګمراهۍ،چراغ دهدایت ورته عنایت شه. په حلقه دمحققانو داخل شه، په تاثیر د دوی دصحبت[۱] ذمیمه خویونه یې په حمیده بدل شول. لاس یې له نفساني خویونو کوتاه، اما ژبې دطاعنانو په حال دده هم هسې لااوږدي وې. ( چې زهد یې بې اعتباره دی، صلا حیت یې له اضطراره دی)[۲]

## نظم

په توبه له ګناهونو سړی خلاص شي
چې تائب دخدای دپاره په اخلاص شي
دا محال دی چې له خلقه نجات مومي
که هرڅو یې مصلي په هوا درومي

طاقت یې دبد ویلو د خلقو رانه وړ، شکایت یې دخپل پیر په خدمت یووړ ،شیخ وژړل، وې فرمایل چې شکر به ددې نعمت کله په ځای راوړی شې چې ته بهتر وې له هغه چې خلك درته وایي:

---

۱ـ"به یمن قدم درویشان و صدق نفس ایشان"

۲ـ"که برقاعده اول است و زهد و صلاحش بی معقول؟"

## رباعي

چې ښه وي خلك درته ښه نه وايي
ښه دى چې بد وي درته ښه ووايي
نظر په خداى كړه خلقو ته مه ګوره
كه درته بد وايي كه درته ښه وايي

(مشكل كار زما دى چې واړه خلك مي صفت كاندي او زه په باطن كې په خلاف د دوى دګمان يم. خلك مې كامل بولي، زه په كمال نقصان يم.[۱])

## قطعه

(په ظاهر كښلى ليده شم ډك له زهر و لكه ماريم
له اوصافو ذميمه و په زړه پور لكه اناريم
په دا څه شو كه عالم وته عابد زاهد ښكاريږم
زه چې ننه په باطن كې خپل ښښتن ته ګنهګار يم)[۲]

# حكايت

## [۲۴]

يوه شخص يوه شيخ ته ګيله وكړه چې فلا نه سړى په حق زما په فساد ګواهي كوي. وې يې: په صلا حيت يې شرمنده كړه.

---

۱ـ (۱ـ اما حسن ظن بزرگان درحق من بكمالست . و نيک مردی من در عين نقصان روا باشد انديشه بردن و تيمار خوردن."
۲ـ ح: "بيت گرانبها كه می دائمی كردی نكو سيرت و پارسا بودی."

## قطعه

بد انديش دې که عيبونه شماري څه شي
ته نيکي کړه په اصلاح کړه خپل اعمال
دی به خود په ديو ويلو شرمنده شي
کړی به نه شي بيا له تانه بد مقال
چې تارونه په آواز کې موافق وي
له مطربه سرود نه مومي گوشمال



## حکايت
## [۲۵]

يو له بزرگانو چاو پوښتيده چې حقيقت د تصوف څه دی؟ وې يې: پخوا تر دې هسې عالم و، چې په صورت پريشان په باطن جمع، نن گانده هسې خلق دي چې په ظا هر جمع وي، په باطن پريشان.

## قطعه

هر ساعت چې زړه له تا په هر ځای درومي
گمان مه کوه چې ته خلوت نشين يې
که دهقان ،که سودا گر، که سپا هي يې
په معنی خلوت گزين يې چې حق بين يې

# حکایت

## [۲۶]

شیخ وایي قدس الله سره العزیزچې له کاروانه سره تمامه شپه مې شبگیر کړی و. سحر په کناره د ځنگل اوده شوو. یو دردمند شوریده حال له موږ سره مل و، فریاد یې وکړ، مخ په بیابان روان شه، له نارو له آهونو یې یو دم آرام ونکړ، چې ورځ روشنه شوه ورته مې ووې دا څه حال و؟ وې یې بلبلي مي لیدې چې په ونو یې نغمه سرایي کولې، زرکو په غرونو کې آوازونه کول، غوکانو په رود بارونو کې نارې وهلې. بهایم په ځنگل کې. نورمې اندیشنه وکړه، چې دا څه آدمیت دی. چې واړه په تسبیح مشغول دي. او ته په خوب اوده .

### مثنوي

نن سحر مرغونو غږ کاوه خروش
یو یې وړ زما له دله صبر هوش
بې اختیاره مې آواز ترخولې بیرون شه
له دوو سترگو مې روان دځیگر خون شه
یوه یار را باندې غږ وکړ دا څه کړې
یار حاضر نارې سورې وهې ښه نه کړې[۱]

---

۱ـ "یکی از دوستان مخلص را ، مگر آواز من رسید بگوش ، گفته باور نداشتم که ترا بانگ مرغی چنین کند مدهوش"

وې مې ځان راته ښکاره لکه حيوان شه
تر حيوا نه لا بتر غا فل انسان شه
کوم انصاف دی چې تسبيح وايي مرغونه
موږه کلك په خوب ويده لکه مړه يونه

## حکايت

## [۲۷]

شيخ وايي قدس الله سره العزيز چې په سفر دحجاز له يارانو سره تللم. يو صاحب دل و، چې ګاه ګاه به يې نغمه کوله، محققانه بيتونه به يې ويل ( يو عابد هم په قافله کې و، انکار به يې په دا کار ډير کاوه، منکر و ددرويشانو له حاله. بهره يې اخستې وه له اقواله )[1] هرګاه چې په نخله دبني هلال ورسيدو يو هلك و د عربو له صحرا نشينانو، آواز يې وکيښ چې ډير موثر و. دعابد په اوښ يې اثر وکړ، په رقص ګډ شه،عابد يې پر يوست په بيابان روان شه وې مې اي شيخه ! دسرود اثر په حيوان بې زبان وشه ستا پرې هيڅ تغير حال ونشه.

### فرد

چې په اوښ دآواز هسې رنګ اثر دی
په سړي چې اثر نه کا ګاو يا خر دی

۱_"عابدی بود منکر حال درويشان و بيخبر از درد ايشان"

## رباعي

چې څوك په ځمكه يا په آسمان دي
په تسبيح واړه دپاك سبحان دي
نقصان په غوږ كې د سامعانو دى
آ شيا يې واړه مُسبِّحا ن دي

## حكايت
## [۲۸]

يو بادشاه و، حيات يي په آخر ورسيده. اجل پرې منګل كښيښوه. قائم مقام يي ځوك نه و. وصيت يي وكړ. چې هر څوك چې صبا په وقت ښار ته راننه وځي دملك بادشاه دې هغه وي! اتفاقاً اول چې داخل د ښار شه يو ګدا ی و چې همه عمر لقمه ټولوله، خرقه يې په خرقه ګنډ له، هر چې اركان دولت او اعيان مملكت وو وصيت د بادشاه په ځاى راوړ، ( تاج يي د بادشاهۍ دده په سر كښيښه، په تخت يې د سلطنت كښيناوه)[1] كوټ او خزانې يې پرې وسپارلې،څو مدت يي بادشاهي وكړه. اخر الا مر بعضې امرايانو ورځنې ګردن پيچي وكړه. په منازعت يې پاڅيدل ( طرفين يې لښكرې جمع كړې)[2] څه ملك يې ورځنې را ونيوه. دده له تصرفه

---

۱ـ ز.
۲ـ ز:"وبه مقاومت لشكر آراسته فى الجمله سپاه و لشكر بهم بر آمدند".

ووت (په هغو دښمنانو باندې مقرر شه)[۱] له دې واقعې ډیر دلگیر په زړه خسته شه په دا حال کې یو یې له قدیم دوستانو ملاقي شه چې د فقیرۍ له حال یې په توانگرۍ، په پادشاهي کې ولیده. شکریې وکړ[۲] چې الحمدالله تعالي بخت درسره مدگار شه چې دولت دې یار شه. اغزی دې د نامرادي له پښو ووت (د مقصود گل دې شگفته شه په دې مرتبه چې په دنیا کې بله مرتبه داهل دنیاو ترې اعلی نشته ورسیدې)[۳] اِنَّ مَعَ الْعُسْرِ یُسْراً اِنَّ مَعَ الْعُسْرِ یُسْراً ط

## قطعه

که خواري ددې جهان درباندې درشي
زهیر مه شه زړه فارغ کړه له اندوهه[۴]
کله ونه په خزان کې برهنه وي
کله بیا خوبي دپاڼو پري ا نبو هه[۵]

وې یې: ای ورورہ! رخ دی چې تعزیت مې وکړې. څه ځای د تهنیت دی؟ هاله چې تالیدم غم را سره دیوه نان و، اوس راسره غم د ځان او دجهان دی.

## نظم

که دنیا راځخه نه وي په طلب کې یې دردمند وم
چې دولت راته موجود شي لا په مهر یې پای بندوم

۱ـ ز:
۲ـ و: "که درحالت درویشی قرین او بود. از سفر باز آمد بچنان مرتبتش دیدش گفت."
۳ـ "گلت از خار و خارت از پای بدر آمد. تا برین پایه رسیدی."
۴ـ ز.
۵ـ و: "شگوفه گاه شگفته است و گاه خوشیده درخت گاه برهنه است و گاه پوشیده"

هيڅ بلا لهٔ دې جهانه بله سخته بلا نشته
غم يې لا په شته کې ډيرو ي څه خو لږ وي چې لا نشته

## قطعه

که هرڅويې دولت ډير طالع نيستګاروي
چې قانع په ماحضر شه توانګر دی
اتفاق دی دبزرګانو په دا باندې
تر غني سخي صابر فقير بهتر دی
که خيرات بهرام ګور کباب دګورکا
ميږې پښه دملخي ورکا سخي تردی

## حکايت

## [۲۹]

شيخ وايي قدس الله سره العزيز چې يو زما له دوستانو په خدمت د بادشاه سرفراز شه، عمل يې دديوانۍ بيا موند. ډير په اعزاز شه، مدت وشه چې ملا قات مې ورسره واقع نشه، چا له يارانو ووېل لا رغه وشول، چې فلا نی ليدلی شوی نه دی. ما ووې: رضا مې نه کيږي، چې ملا قات ورسره وکړم، يو دوه له خدمتګارانو حاضر وو، وې يې: څه خطايې کړې ده چې نه يې وينې؟ وې مې: هر دوست چې عامل وي هاله ليدلي بويه چې معزول شي.

## قطعه

په عمل کې له یارانو فراغت وي
عامل یار ته هاله ورشه چې تغییر شي
چې مشغول په کار وبار دعمالۍ وي
ستا په ورغله ته خوښ وې دی زهیر شي
چې معزول شي له خدمته پا حساب شي
د زړو یارانو ها له خبر گیر شي

## حکایت

## [۳۰]

دیوه شخص مخالف باد په ګېډه کې پیچ وکړ، طاقت یې دضبط نه و بې اختیاره ترې آواز صادر شه، وې یې: اي یارانو زما په دا فعل کې اختیار نه و، ګناه به یې هم په ما ونه کئ او راحت ما ته ورسیده . تاسې می هم از روي ستاري او کرم معذور کاندئ.

## رباعي

ګېډه زندان ده دباد هوښیاره بنده یې مه لره ای خبر داره
په دم نرم یې له ګېډې لر کړه خپل ځان زرخلاص کړه له بده باره[1]

---

۱_ح: "حریف ترش روی نا ساز گار چو خواهد شدن دست پیشش مدار"

# حکایت

## [۳۱]

شیخ وايې قدس الله سره العزیز چې ددمشق له یارانو ملول شوم. په بیابان دقدس روان شوم، څو ګاهه مې له حیواناتو سره انس اختیار کړ، ناګاه په بند دفرنګ ګرفتار شوم. له جهودانو سره یې کار دخندق راباندې کاوه. ختې مې څکولې، اتفاقاً یو آشنا دحلب دملك چې سابقه آشنا یې راسره و ه، پیښ شه، غږ یې را باندې وکړ. چې دا څه حال دی[۱]؟ وې مې:

### قطعه

له سړ یو تښتید م په بیا با نونو
چې بې خدایه مې له هیچا نه و کار
قیاس وکړه نن ساعت مې به حال څه وي
چې په بند د ناکسانو یم ګرفتار

### بیت

بند زندان سړی ته ښه دي چې دوستان وي
بیګانه سره زندان وي که بوستان وي

آخر الامر په حال یې زما رحم وکړ، په لس دیناره یې له قیده دفرنګو خلاص کړم، له ځان سره یې حلب لره راوستم،لوریې ما ته

---

۱_ ح: " که موجب ملال است."

په سل دیناره کا بین راکړه (هغه لوریې ډیره بد خویه ستیزه رویه وه، حکم به یې په ځای نه راوړ، نافرمان برداره وه،[۱] بدګویه وه) عیش به زما ترې اکثر مکدرو.

## نظم

بده ښځه د نیکخوی سړی په کور کې
دوزخ ده، پریو ځي دې په دغه اور کې
پناه غواړه همیشه له بده یاره
بد یاراور دی ترې مې ژغوره کردګاره

یوه ورځ یې ژبه راباندې اوږده کړې وه، پیغور یې راکړ چې ته خو هغه یې چې پلارمې په لس دیناره دفرنګو له بنده خلاص کړی یې. وې مې:هو په لس دیناره یې له هغو خلاص کړم په سل دیناره یې ستا په بند ګرفتار کړم.

## نظم

دلیوه له خولې یې خلاص کړ چا زړه و سه په ورغومي
په بیګاه یې په خپل کور کې ده چاړه کښیښوه په کومي
چې مری یې پریکو له غړ یې وکړدا یې ووې
له لیوه دې خلاصولم خبر نه وم ته لیوه وې

---

۱ـ "مدتی برآمد دختر بدخوی ستیزه روی زبان درازی کردن گرفت."

# حکایت

## [۳۲]

یوه بادشاه له عابد[1] پوښتنه وکړه چې ګذران څرنګ کوې؟ وې یې: درسته شپه مناجات، سحر طلب دحاجات، په ورځ فکر دعیال داخرجات. بادشاه ددې خبرې په معنو وپوهیده، مضمون یې ورمعلوم شه، مایحتاج یې دعیال مقرر کړ، چې په جمع خاطر طاعت عبادت کاندي.

### نظم

اې چې بندیې په غمونو دعیال
فراغت دخاطر خیال ګڼه محال
غم داوړ کیو د جامې اندوه دقوت کا
ګشت به څرنګ په عالم دملکوت کا
درسته ورځ له خپله زړه فکر ونه وکړم
چې نن شپه به په صاف زړه نمونځونه وکړم
زړه حاضر په ډیر محنت کړم چې تکبیرکړم
په قیام کې بیا ددوی د قوت تدبیر کړم
هم مې هسې رنګ رکوع قومه سجود وي
له دې هسې عابد حق کله خشنود وي

---

۱_ح: "که عیال بسیار است."

# حکایت

## [۳۳]

یو دشام له عابدانو په ځنګل کې ګذران کاوه، پانې یې دونو خوړلې. بادشاه یي په زیارت ورغلی و، پس له ملا قاته یي ورته عرض وکړ، چې: که مصلحت وي ښهر لره راشي، ښه ځای (دسکونت خانقاه دعبادت دپاره به درته ساز کړم)[۱]، چې په جمع خاطر عبادت بهتر له دې مقامه کاوه شي. او ستا سې له برکته نور هم مستفید شي. زاهد دا خبره نه قبلوله، مخ یې تري وجار یوست. وزیر عرض وکړ، چې پاس د بادشاه دخبرې بویه، څو ورځې په ښهر کې تیرې کړه، که صفا دوقت میسر نه شي اختیار باقي دی. په هر حیله چې وه[۲] عابد راضي شه، ښهر لره راغی. (ښه مقام یې په باغ دګلونو آراسته دده دپاره سازکړ.)[۳]

## نظم

سره یې ګل لکه رخسار و دخوبانو
سنبل هم لکه ویښته دمحبوبانو
(پکې ونې میوه دارې خوش قامته
تل سر سبزې له خزانه سلا مته)[۴]

---

۱- ۱ـ تا برای تو مقامی بسازم.
۲ـز .
۳- ۱ـ "بستان سرای خاص ملك را بدو پرداختند، مقامی دید دلکشای روان آسای."
۴- ۱ـ " همچنان از نهیب برو عنحوز شیر ناخورده طفل دایه هنوز"

هسې رنګ يي ښه ښايسته خدمتګاره نازنينه، مخ نسرينه ورستوله.

## نظم

سرو قده آفتاب رويه زنخ سيبه
خوش خرامه، خوش کلامه دلفريبه
سنبل مويه ، عنبر بويه، مو کمره
ملك خو يه ، ناز پروره تمام زيبه
که جلوه يې صد ساله زاهد ته وکړي
ګمان مکړه چې به نه شي ناشکيبه

بيا يې وريسې ډير صاحب جمال مريي ورستوه چې په صورت سيرت يې دواړه په اعتدال وو.

## رباعي

په قد عرعر و په مخ ګلزار و
په غاښو شونډ و جواهر بار و
شيرين ګفتار و هم شيرين کارو
صفت يي څو کړم عجب نګارو

عابد چې څوګاهه لذيذ لذيذ طعامونه وخوړل، الوان الوان سرو پايونه يې واغوستل، په جمال يي ددلبرانو[1] نظر کړ، کار يې

---

۱ـ(۱)ـ غلام و کنيزك

بل شه. اثر يې له مخه د زهدو رياضت زايل شه ، په تنعم عادت شه، ورنه پاتو صورت دعبادت شه [۱] هوښيارنو ويلي دي. [۲]

## قطعه [۳]

که عابد دی که زاهد دی که فقيه دی پاك نفس
چې داخل شه په دنيا کې شه په شهدو کې مګس
(څو چې خواروړی محتاج وي هومره ښه ګڼه دانس) [۴]

بادشاه يي بيا ديدن ته ورغی. عابد يې وليد [۵] سورسپين مسند نشين [۶] فاخري جامې آغوستې (په خدمت يې ولاړيو څو نازنين) [۷] بادشاه يي په دا احوال شاد ماني وکړه له هربابه مذکورونه وشول. بادشاه په دا خبره راغی چې زه دا دوه عالمه ډير دوست لرم: يو عالمان، بل زاهدان. وزير دانا فيلسوف جهان ديده و، عرض يي وکړ: شرط ددوستۍ دادی چې ددواړو طايفو سره احسان کاوه شي، علماوو لره زر ورکوه چې نور هم علم کاندي، زاهدانو لره څه مه ورکوه. چې له زهده پاتې نشي .

---

۱ـ ز.
۲ـ ح- زلف خوبان زنجير پای عقل است و دام مرغ زيرك.
۳ـ ح:"درسرو کار تو کردم دل و دين با همه دانش با مرغ زيرك بحقيقت منم امروز تو دامی – فی الجمله دولت وقت زاهد و يا مجموعش، بزوال آمد."
۴ـ ز.
۵ـ ح:- از هيئيت نخستين بگرديده.
۶ـ ح:- و فربه شده .
۷ـ وبربالش ديبا تکيه زده وغلام پر ی پيکر بارو حه طاوس بربالای سرش ايستاده .

## فرد

چې زاهدسړی درم واخلي دينار  پريږده دا دبل زاهد شه طلبگار

## قطعه

چې ښه خوی ښه يې ادب خاطريې صاف وي
که مريي وي که کسبي وي که اشراف وي
په تحقيق هغه زاهد گڼلی بويه
بيهوده دبې ادب د زهد لاف وي
د لبري ته کفايت صورت شيرين کا
که جامه زيور هيڅ نه لري معاف وي[۱]



## حکايت

## [۳۴]

يوبادشاه و،مهم ورته ضروري مخ ښکاره کړ. نذر يې کښيښ که دا مهم يې موافق په مراد دزړه تمام شي، دا هومره درمه به زاهدانولره ورکړم . چې حاجت يې پوره شه، جمعيت يې دزړه حاصل شه. وفا دنذر په وجود دشرط ورته لازم شوه .يوه خدمتگار لره يې کيسه ډکه درو پو ورکړه، چې ورشه په زاهدانو يې قسمت کړه. هغه خدمتگار ډير زيرك او هوښيار و، درسته ورځ وگرځيده، په شپه راغی کيسه يې درو پو د بادشاه دوړاندې کښيښوه چې

---

۱ـ تامرا هست و ديگرم بايد، گر نخوانند زاهدم شايد.

طلب مې ډیر وکړ، وګرځیدم، زاهد مې بیانمونده ، بادشاه ووې دا څه خبرې کړې، په دا ښار کې چې زه پیژنم څو نصو زاهدان د ي. وې یې: اي بادشاه هر چې زاهدو، زرې نه اخستل، او هر چې یې اخستل و هغو لره مانه ورکول چې[1] زاهد نه و. پادشاه وخندل، ویې فرمایل چې څو زما په خدمت د بزرګانو ارادت، هومره ددې شوخ دیده ورسره عداوت دی،اما په (دي مذکور کې)[2] ،حق دده په لور دی.

### بیت

که عابد سرې زر واخلي هم ویل ورته عابد شی
چې زاهد درم اخلي بویه دا چې بل زاهد شي[3]

## حکایت
## [۳۵]

له یوه عالم چا پوښتنه وکړه چې دوقف روټی خوړل څرنګ دي؟ وې یې که دجمعیت دخاطر دپاره یې خورې. چې زړه فارغ وي عبادت وعلم وته. ورته روا او حلال او که خود کسب کا په ځای ورته کښیني هم هغه خوري، هغه ته ( ناروا او وبال)[4]:

---

۱_ ز.
۲_ ز.
۳-ا_ زاهد که درم گرفت و دنیار زاهد ترازو دگر بدست آر.
۴-ا_ حرام

## قطعه

که مقصود دې فراغت دخپل خاطر او عبادت وي
که له وقفه که له سواله چې قوت خوري ورته رخصت وي
او که کسب باندې نشي مسجد و نسي شينكى شي
دمحلت ټوکره چټ پټ کاندي خوراك يي ښنکې شي
گدايي يې بهانه وي د مسجد دټوکړو سپى وي
په مسجد په مدرسه کې د پريښولو کله دی وي
خواه ناخواه دې وراته شي چې حلال کسب اختيار کا
نه دسوال کا نه دمفت خوري ورکووني بزه گار کا
مگر دا چې ځان خادم کا کل خدمت دمسجد کاندي
له هغه پسه به حلا له دا ټوکړه شي په ده باندی[۱]



## حکایت

## [۳۶]

يودرويش چا کره ميلمه شه، څښتن دخونې مرد کريم النفس مهمان دوست و، اهل فضل خلق ورڅخه ناست وو،له هر ه بابه حکايت لطائف بيانيده. لکه رسم د فاضلا نو د مجلس دی. درويش کوفته دلارې و، سترى وړی خو له پټه ناست و، چاورته ووې: ته هم څه ووايه، وې يې زما هومره بلا غت پوهه نشته، که په يوه بيت له

---

۱ــ دقطعې ددی پنځو شعرونو په ځای په اصل کې دا شعر دی:
نان از برای کنج عبادت گرفته بود . صاحب دلان نه کنج عبادت برای نان

ما قناعت کوي و به وایم. واړو ورته په رغبت وو ې، ووایه په یوه بیت به دې معذورکړو.

## بیت

زه وږی محتاج یم سفره ینبې ده یارانو
ناست لکه لونډیم وحمام ته دزنانو

یارانو واړو وخندل، سفره یې دنانونو راوړه، دکور څښتن ووې: که څه خو توقف وکړې، خدمتګاران کوفته کباب تیاره وي. درویش سر پورته کړ ویې وې:

## بیت

دسفر په کوفت کوفته یم داوچ نان را ته کوفته دی
په هر ځای چې راشي څملي هر ځای ستړي ته روفته دی

# حکایت

## [۳۷]

یوه مرید و پیر ته ووې: څه وکړم چې له خلقه خلاص شم، دیدن لره ډیر عالم را درومي، وقت زما مشوش کوي. پیر ورته وفرمایل: هر چې درویشان دي هغو لره قرض ورکوه. او هر چې تونګران دي له هغو قرض غواړه، له دواړو ګروهو په خلاصي بیا مومې.

### بيت

داسلام لښکر که ووځي ګدايان يې پيشرو دروميﺇ
کافران دسوال دويرې په چين که څوك بيا مومي[۱]

## حکايت

## [۳۸]

يوه فقير[۲] پلار ته وويل: هيڅ په ما باندې اثر ددېو متکلمانو خبرې چې په تمام فصاحت بلاغت يې وايي نه کاندي.[۳]

### بيت

بل ته وايي دنيا پرېږده باندې مکړه دزړه مينه
دوی يې مټ په ټولول کا کله دا په دين کې دينه

### قطعه

هر عالم چې تن پرست شي کامراني کا
دی به څښکله ددين نګهباني کا
چې عمل په علم کا اخلاص يې مل وي
هم هغه به ځان عالم رباني کا[۴]

قوله تعالي اَتَاْمُرُوْنَ النَّاسَ بِالْبِرِّ وَ تَنْسَوْنَ اَنْفُسَكُمْ.

---

۱ ـ گر گدا پيشرو لشکر اسلام بود　　کافر از بيم توقع برود تادرچين

۲ ـ ۱:- فقهی

۳ ـ ح:- بحکم آنکه نمی بينم ايشان را کرداری موافق گفتاری.

۴ ـ ز.

## بيت

هر عالم چې تش ويل كاندي نوربس
هيڅ اثر يې ويل نه كا په بل كس[۱]

پلار ورته وويل: اي زويه! په مجرد باطل خيال بنويه له علمه مخ جار يستل او دعالمانو خبرې نه اوريدل، په طلب دعالم معصوم. دعلم له فوايدو پاتو كيدل محروم، لكه يو نا بينا په ختهو كې پريوت، نارې يې وهلې چې چراغ راوړئ چې زه ووځم. يوې ارتينې هسې رنګ ورته ووې: ته چې چراغ نه وينې په چراغ به څه وينې؟ هسې رنګ مجلس د وعظ لكه دكان د بزازانو دی چې نقد درڅخه نه وي رخت به څرنګ ځنې وړې. چې ارادت رانه وړې له مجلسه په سعادت كله وړې.

## رباعي

(زه تاته نه وايم چې نيكو كاريم شيخ يم پارسايم يا پرهيزګار يم
ته په ويلو زما ځان صاف كړه زه كه هر څو نا پاك مرداريم)[۲]

## قطعه

د عالم خبرې اوره پرې عمل كړه
كه ګفتار يې موافق د كردار نه وي
داباطل دی چې ناقص عالم ته وايي
بل به كله بيدار كا چې بيدار نه وي

---

۱- ح: عالم آنكس بود كه بد نكند نه كه گويد بخلق وخود نكند
۲- ز.

چې مردان دي البته پرې عمل وکا
کښلې ولې نصيحت په ديوار نه وي

# حکايت منظومه

## قطعه[۱]

درس ته راغی يوعابد له خانقاهه
ترك يې کړ د سالکانو ښه طريق
وې مې فرق دعابد څه وو له عالمه
چې اختيار دې له هغه کړ دا فريق
وې يې مټ عابد دځان په خلاصول کا
عالم سعی کا چې و کاږي غريق
چې يې نفع و عالم و ته رسيږي
هم هغه په مقام کښيني د صديق[۲]

# حکايت

## [۳۹]

يو په لار کې مست پروت و، دعقل وياسته يې له لاسه پريو تلې وه. دعابد پرې ګذر وشه، دده په قبيح حال يې په کراهيت نظر وکړ. هغه ځوان سرپورته کړ ويې وې:

---

۱ـ ل:- قطعه
۲ـ ز.

## قطعه

سپك نظر عاصي ته مه کړه پرهيزگاره
درحمت د بخشايش په ده نظر کړه
دی که هر څو جوانمرد په کردار نه دی
ته په ده دجوانمرد غونديې گذر کړه

## حکايت

## [۴۰]

يو درويش چا وواهه، آزار يي کړ[۱] شکايت يي خپل پيرته وکړ[۲] پير يي ورته ووې: اي زويه! جامه ددرويشانو رضا ده. هر چې په دا جامه کې تحمل دنا مرادۍ نه کاندي مدعي دی، دفقير جامه پرې حرامه.

## قطعه

په ويشتل دکاڼيو سيند نه خيرنيږي
هر عارف چې ورنځيږي نری رود دی
رنځ راحت به عارفان گني له خدايه
چې له غير ويي گني دشرك دود دی[۳]

---

۱ـ طايفه رندان بخلاف و انکار درويشان بدر آمدند و سخنان ناسزا گفتند و درويشی را بزدند.

۲ـ ح: که چنين حالتی برمن رفت.

۳ـ ز.

## قطعه

ته ځوك مه آزاره وه كه دې آزار كا
په بخښنه به يې ته له جرمه پاك شې
عاقبت چې خاورې كيږې زما وروره
درقه بويه چې پخوا ترمږګه خاك شې

# حكايت منظومه

## [۴۱]

يوه ورځ نشان پردې ته حكايت كړ
له روزګاره يې ودې ته شكايت كړ
ديوه صاحب موږ دواړه خدمتګاريو
په نصيب دتا آرام موږ ناقرار يو
يو ساعت آسوده نه وم له خدمته
ته د كور دننه تل وې فراغته
هميشه مصاحبت كړې له مهرويو
له ښووينځو نازنينو سمن بويو
زه په مخ كې دسوروپلين دوان يم
ګرد آلود جامې ريمنې سرګردان يم
په خدمت چې زه له تانه پيش قدم يم
ته تل كور زه تل حاضر په غره په سم يم

ته په څه سبب غوريزه زه ذليل شوم
دذلت دليل نه مومم بې دليل شوم
پردې ووې زه پرده سرا فگنده يم
يښې سر په آستانه لرم بنده يم
ته خپل سرآسمان ته وړې سر بلندي کړې
تش بادونه پيمايي پرې خورسندي کړې
افتاده وخاص و عامو ته رويدار وي
وهر چا ته گردن کش بيقدره خوار وي

# حکايت

## [۴۲]

يوه صاحبدل يو زورور پهلوان سړی وليده. په قهر شوی و، له ډيرې غصې يې خګک له خولې لوسته. پوښتنه يې وکړه، چې ده ته څه حال پيښ شوی دی ؟ چا ووې يوه شخص ورته ښکنځل کړي دي. په غضب شوی دی.وې يې:دا سفله فرو ما يه سل منه کاڼي اخستي شي، توان ديوې خبرې نه لري.

### قطعه

لاف دزور دعوې دې نه کا دمردی
چې عاجز شه وخپل نس ته هغه زن دی

مَرد هغه ګڼه چې خوله دچا خوږه کا
نه چې خوله دچا په سوك وهي مشت زن دی

## قطعه

که په سوك سره تندی دهاتي مات کا
نه دی مرد چې پکې نه وي مردمي
د شیطان اصل داور د آدم خاورې
که ځان خاورې کا هاله دی آدمي

# حکایت

# [۴۳]

شیخ وایي قدس الله سره العزیز چې یو بزرګ مې وپوښتیده چې خوی ددین دیارانو څرنګه دی؟ وې یې: کمترین مرتبه دیارۍ داده چې مراد دیارانو په خپل مراد مقدم لري. حکیمانو ویلي دي.[۱]

## قطعه

چې خود رای وي هغه کا چې یې زړه خپل وي
بیګانه یې وګڼه که هر څو خپل وي[۲]
چې په لاره ګرځندی له ملونو د رومي
دهغه له ملګري به څوك سود مومي

---

۱ج-برادر که دربند خویشست نه برادر نه خویشست.
۲_دا د برنې محذوف عبارت ترجمه ده.

هر عزیز چې بې تقوی بې د یا نته
قطعیت ورځنې بِه تر مؤ د ته[۱]
چې له حق سره آ شنا که بیګانه وي
بیګانه دحق تر ځار که هم خانه وي

## حکایت مظومه

## [۴۴]

یو پیر مرد و چې لور شوه ورکره لویه
په فکرت یې شه چې شوی ورلره بویه
خبر نه د چا له اصله له تبا ر ه
بې خبره یې عقد و کړ له چمیا ره
هسې رنګ یې مردك شونډې و چیچلې
چې له شونډو یې سرې و ینې بهیدلې
په صبا یې چې وپلارته حال عیان شو
زوم ته راغی په غضب ورته ګویان شو
چې بې شرمه دار نبي که دې دندان دي
پر یکوې یې دا خرمن ده که لبان دي
دا و یل په هزل نه دی نصیحت دی
هر سړی هغه کوي چې یې عادت دی



---

۱_ح:- یار دارم که یکی از مدعیان( یامدعی) برقول من اعتراض کرده بود و گفت ( کردو گفته) حق تعالی در کتاب مجید از قطع رحم نهی کرده است ( فرموده) و بمودت ذولقربی امر فرموده و آنچه تو میگویی مناقض آنست . گفتم غلط کردی که مطابق قرآن است وَ اِنْ جَاهَدَكَ عَلٰی اَنْ تُشْرِكَ بِیْ مَالَیْسَ لَكَ بِهٖ عِلْمٌ فَلَا تُطِعْهُمَا.

طبعیت چې له هرڅیزه عادت مومي
باور مکړه چې بې مرګه ځنې درومي

## حکایت

## [۴۵]

دیوه فقیه لور وه، نهایت زشت رویه، که هرڅودولت نعمت یې و، اما په سبب د قباحت چا یې په نکاح رغبت نه کاوه.

### رباعي

(د کړلو نه دی دا دوه خبرې    دواړه هرګور دي له عقله لرې
په نامزدۍ چې نغارې وهي    یا په بدرنګه ناوې سندرې)[1]

### قطعه

که هر څو یې په واده نغارې کنبیږدي
په خوړه یې ډیرو ګړي سره ټول کا
دپسا له صفت یې شي درنګ یې نشي
څوك چې پورې په بدرنګه ناوې پسول کا

اخرالامر یې له ضروره دیوه ړانده سره نکاح وتاړه. ناګاه په هغه ښار کې یو حکیم راغی، چې دړندو سترګو دارو یې کول. ډیر ړانده یې په دوا بینا شول. چا فقیه ته وویل: چې ته هم دخپل زوم

---

۱ـ ز: زشت باشد و بیقی و دیبا    که بود بر عروس نا زیبا

دستركو علاج وكړه. وي يې ويريږم چې كه بينا شي زما لور لره به طلاق وركا.

### بيت

هره ښځه چې خيره لري بدرنګه
بويه دا چې ړوند څښتن يې وي دڅنګه

## حكايت
## [۴۶]

راوړي دي چې يوه بادشاه ددرويشانو په طايفه يوه ورځ نظر دحقارت وكړ، يو له دوى په فراست وپوهيده، وې يې اى بادشاهه! موږ په دنيا كې لتا نه په جيش كمتر يوو، په عيش خوشتر يوو، په مرګ سره دواړه برابر، په قيامت انشاء الله تعالى له تا بهتر يوو.

### مثنوي

كه دې ملك بادشاه كامران دى — حاجتمند ګداى دنان دى
ګداى ښه دى له بادشاه — هغه دم چې ووځي ساه
جدا كيږي له سامانه — بادشاه ډك ځي له ارمانه
هغه دم چې دواړه مرينه — خو كفن له ځانه وړينه
چې لحد ته دواړه ورشي — فرق يې لاړ شي برابر شي
د فقير پاتو هيڅ نه وي — تر و ارمان به يې دځه وي

ظاهر حال ددرویشانو جامه ده ژانده، او حقیقت یې نفس دي مُرده زړه زنده.

## قطعه

نه هغه چې ورته وايي عارف نه يې
له هغه سره دعوی کا په جنګ پاخي
که له غره دژندری کاڼي پري راپريږدي
عارف نه دی چې له لاري د سنګ پاخي

## قطعه

(چې له خپله آشنا نه لري ګِله
له نور چانه به په څه لري ګِله
نه عارف دچا په ښو شکر ګذاروي
نه په بدو ددښنه نه لري ګِله[1]

حقیقت ددرویشانو ذکر فکر دی، شکر صبر، خلوت، قناعت، طاعت، توحید، توکل، تحمل[2]، هرڅوك چې په دا صفتونو موصوف وي په حقیقت کې درویش دی. صادق اګر چې په قبا کې وي، او که بیهوده ګوی، بې نماز، هوا پرست، هوا باز، چې شپه و ورځ په بند د شهوت وي، هر چې مومي په غفلت یې خوري،هر چې په ژبه ورځي هغه وايي مدعي دی، کاذب، اګر چې عبا کې وي.

---

۱ ـ ز.
۲ ـ په اصل کې فکر، صبر، خلوت، نشته، ددې په ځای "خدمت، ایثار، تسلیم دی."

## قطعه

آراسته يې په تقویٰ چې ننه زړه وي
که سپاهي وي پرهیزګاریې وګڼه
چې خالي يي له تقوی نه اندرون وي
که کند پوش وي دنیا دار يې وګڼه[1]

## حکایت منظومه [2]

## [۴۷]

په نظر را غله تا زه د سته ګلو نه
چې ترلي د وښو په تا نګی وونه
چا ویل چې څه ګیاه څه يې شرف وي
چې داخل دښایسته ګلو په صف وي
ګیاه وا وریده خبره په ژړا شو ه
په جواب دحال په ژبه ورګویا شوه
زه که هرڅو په دې باغ کې یم ناڅیزه
په صحبت دګلو شوم هسې عزیزه
صحبت کله هیروي چې کریمان وي
هرچي پاس دصحبت نه کا لیمان وي

---

۱ـ ای درونت برهنه از تقوی کز برو جامه ریا داری
پرده هفت رنګ را بګزار تو که درخانه بوریا داری
۲ـ مثنوی.

زه که هر څو بې جماله یم بې رنګه
لویه شوې یم آخر دګل دځنګه
زه بنده هم امید واریم له کریمه
پرورده یې د نعمت یم له قدیمه
زه که هر څو بې هنر یا هنر مند یم
بیا له مهره امیدوار دخداوند یم
وسیله مې نه طاعت نه ښه خصلت دی
تکیه ګاه مې دده فضل عنایت دی
زوړ بنده ښبنتن آزاد کاندي دستور دی
دا دستور په درست جهان کې مشهوردی
اې چې شپه ورځ په خلقو کرم دادکړې
زه هم زوړ بنده یم ستا که مې آزاد کړې
تمام عمر ما بدي تا ستا ري کړه
ما له تا سره جفا تا به یاري کړه
په زوړ والي مې لاکار ترځوانۍ ښه کړه
معزز مې په د نیا په عقبی ته کړه

# حکایت

## [۴۸]

یو حکیم چاو پوښتیده چې سخاوت بهتر دی که شجاعت؟
وې یې: هر څوك چې سخاوت لري حاجت یې شجاعت و ته پاتې نشي.

## رباعي

کښلي په ګور د بهرام ګور دي
سخيان بهتر تر ښښتن د زور دي[۱]
(چې ډېرې خوان وي ډير يې اخوان وي
بيل له ممسکه خپل سپين خپل تور دي)[۲]



۱ـ ح: گرفتيم عالم بمردی وزور ولیکن نبرديم باخود بگور
۲ـ دا شعر تيری دی. ددی شعر نه وروستو ديوې قطعې ترجمه نشته
نماند حاتم طائی و ليک تا بابد بماند نام بلندش به نيکويي مشهور
زکوة مال بدرکن که فضلهٔ رزرا چو باغبان ببرد بيشتر دهد انگور

# دریيم باب

## په بیان د قناعت

### حکایت

### [۱]

یو سایل[۱] وو په حلب کې د بزازانو په دوکانونو ګرځیده. دا آواز به یې کړه چې: ای دنیا دارانو! که تاسې څخه انصاف وي، موږ څخه قناعت، روش به دسوال له جهانه لاړو.

### قطعه

ربه مو ږ مې په دولت دقناعت کړه
چې دده غوندې نعمت بل نعمت نشته
خزانه د صبر بخره د لقمان وه
د هر چا چې صبر نشته حکمت نشته

---

۱ـ(۱ـ خواهنده مغربی.

# حکايت

## [۲]

دوه اميرزاده په مصر کې وو. يوه طلب دعلم کاوه، بل مال ټولوه. آخر الا مر هغه علامه د عصر شه،هغه بل عزيز د مصر. يوه ورځ دې تونګر په خواره سترګه په فقيه ورور نظر وکړ، ورته يې ووې چې زه په سلطنت ورسيدم، ته هم هسې په مسکنت کې پاتو شوې. وې يې اى وروره! شکر دنعمت دحق تعالي تر تا په ما ډير واجب دى چې زه يې ميراث ته د پيغمبرانو عليهم السلام و رسولم او ته يې د فرعون او هامان په ميراث کښينولې.

### قطعه

وبه نه وو ځم ددې نعمت له شکره
چې قوت يې د آزار د چا رانه کړ
دميږي غوندې پايمال دخاص وعام يم
دمچۍ غوندې يې نيش و ما رانه کړ

# حکايت

## [۳]

يو درويش و، په اور کې د فقر و فاقې سوه شه، خرقه په خرقه يې ګنډله، په دا بيت به يې تسکين دخاطر کړ:

## بيت

قناعت په وچ ټوك ښه دی په خپل ځيرې ځيرې دلق
بار محنت په سرې ښه دی نه پرې بار منت دخلق

چا ورته ووې: څه ناست يې، فلانه په دې ښار کې طبع کريم لري، کرم عميم.

## رباعي

طبع کريمه کرم عميم لري
دی خودنيك ذات دی نيك ذات نديم لري
هغه ته ورشه چې آسوده دې کا
غريب نواز دی دا خوی قديم لري

درويش ورته ووې: خوله پټه شه، په لوږه کې مرګ بهتر دی نه حاجت چا ته عرض کول.

## بيت

هم خپل کند مرقع ښه دي جامه مښلې
نه رقعه و دنيا دارو و ته کښلې [1]

---

۱ـ ح ــ حقا که با عقوبت دوزخ برابر است رفتن بپاي مردي همسايه دربهشت

# حکایت

## [۴]

یو حکیم چا وپوښتیده[1] چې په ورځ څو قدر طعام خوړلی بویه ؟ وې یې څو شیر شاهي[2]، وې یې دا به څه کفایت کاندي؟ وې یې دا مقدار تا ګرځوي چې ترې زیات شي ته یې ګرځوې.

### رباعي

خوراك د ذکر د ژوندون د پاره وي
نه ژوندون، دپاره دخوراك ای یاره وي
تل به تندرست وي چې لږ خوراك خوري
تل بیماري د ډیر خور بسیاره وي

اتفاق دی دحکیمانو چې که هر څوك چې ډیر وږی شي هاله طعام خوري او چې لاوږی وي لاس له طعام وکاږي، محتاج به د طبیب نشي.

### رباعي

ویل به هاله حکیم آغاز کا | لاس به لقمې ته هاله د راز کا
چې یې خلل پاخي په نه‌ویل کې | چې نه‌خوري روح به ځنې پرواز کا[3]

---

۱ـ درسیرت آرد شیر با بکان آمده است که حکیم عرب را پرسید.
۲ـ ا: صد درم.
۳ـ ز.

# حکایت

## [۵]

دوه درویشان وو، په سیاحت په مسافرت هم سفر، هم صحبت ، یو ضعیف همیشه په روژه کمزوری، بل قوي هیکل ډیر خوری[۱] په یوه ښار کې په تهمت د جاسوسۍ دواړه گرفتار شو. دواړه یې بندي خانه کړه، وریې ورپسې په دیوال پورې کړ، پس له دوو هفتو معلوم شول چې بیگناهه وو، چې وریې پرانت هغه قوي هیکل مړ و، ضعیف ژوندی. خلق متحیر شو، چې گمان یې په خلاف ددې و[۲] یوه حکیم وویل د تعجب ځای هاله و چې که ضعیف مړ وی، قوي ژوندی پاتو وی. وې یې څرنگ موږ هم و پوهوه؟حکیم وې[۳] هغه چې مړ دی عادت په ډیر خوراك و، چې څو ورځې فاقه شو تاب یې رانه وړ، هلاك شو دا بل په لوږه عادت شوی و صبر یې وکړ، سلا مت پاتې شو.

### قطعه

په ساړه غارمه عادت په لوږه تنده
چې محنت ورباندې راشي قوتناك شي

---

۱ـ یکی ضعیف بود که روزه داشتی و بعد از دوشب افطار کردی. و دیگری قوی که روزی سه بار ( نان ) خوردی.
۲ـ ز.
۳ـز.

پرورده د نعمتونو په ناز لوی وي
چې سختي مشقت ويني هلاك شي[۱]

## حکايت

## [۶]

يوه حکيم زوي ته نصيحت کاوه چې ډير خوراك مه خوره، سړی رنځور په ډير خوراك شي. وې يې ای پلاره! سړی چې نه خوري هم هلاك شي.[۲] وې يې: ای زويه! اندازه ساتلې بويه. قوله تعالي كُلُوْا وَشْرَبُوْ وَلا تُسْرِفُوْا

### مثنوي

حق چې امر په تا کړی د کُلُوا دی
نه چې حد يې دربنيلی دګلو دی
هومره قوت چې په قوت يې شي ملا سمه
بيا يې کړې په عبادت د معبود خمه[۳]

### بيت

نه هومره خوراك بويه چې په ځان باندې تاوان شي
نه هسې رنګك لوږه چې بيرون له تنه ځان شي

---

۱ـ دپلاټس په نسخه کې دی پسې دا شعر هم ليکلی دی
تنور شکم دم بدم تافتن        مصيبت بود روز نايافتن
۲ـ ح: نشنيده ؟ که ظريفان گفته اند به سيری مردن بِه که بگرسنگی جان سپردن .
۳ـ ز.

## قطعه

که هر څو طعام سبب دژوندانه دی
بویه دا چې هومره خوړ شي چې پرې پایي
چې ډیر وړی شی هاله تناول کړه
په مړه ګیده بیابیا خوراك نه ښایي
ډیر خوراك خوړل منشاء دهر زحمت دی
حکیمان په اتفاق واړه دا وایي
په جهان کې به یو څو دلوږې مړه وي
ډیر خوراك وګورستان ته خلك بیایي

## قطعه

هیڅ له خلقه له خالقه شرم نه کړې
پسو خوښ په حیواني په ګاو و شئ[1] یې
لاس دې یښې په کندو قدم په کنده
مشغول شوی شپه و ورځ په که کشئ[2] یې

# حکایت

## [۷]

دیوه بقال څو درمه په یوه له صوفیانو و او ښتل. هر ه ورځ به یې تر ې غوښتل، بیهوده ګویي به یې ورته کوله. تصدیع یې

---

۱_دخارو و عادات.
۲_پولی را کښل . جاروهل، فضول کار ونه کول.

ورسوله. که هر څو خسته دل و.[۱] چاريې بی تحمله بله نه وه. يوه صاحبدل واوريدل. ويې وې نفس لره وعده د طعام ورکولو ډيره آسانه ده تر وعدي د درم ورکولو بقال لره.

## قطعه

دخواجه له احسانونو مې توبه شه
خومې مه ليدی جفا د بوابانو
په اُميد دغوښو مړ سړی بهتر دی
تر غوښتنه د بد پور دقصابانو

## حکايت

## [۸]

يو جوانمرد په جنګ[۲] کې زخمي شه. سخت جراحت ورورسيد. چا ورته وويل که له فلانه سوداګر نه نوش دارو وغواړې، شايد دريغ يې نه کا. هغه سوداګر په بخل مشهورو، لکه حاتم په سخاوت.

## قطعه

که دنان په ځای يې لمر په سفره پروت وي
ترقيامته به تياره وه په جهان کې

---

۱-ل-اصحاب او تعنت او خسته خاطر همی بودند.
۲-ل-درجنگ تا تار.

(چې کاله يې پرې مخ صاف د آينې کړی
خاکستر يې هو مره نه وو په ديگدان کې)[۱]

جوانمرد وويل نوش دارو ترې وغواړم گوره را کاندي که يې رانه کاندي. که يې راکا، گوره نافع رالره شي که نشي. اماسوال کول له ده في الحال زهر کشنده دي.[۲] حکماو ويلي دي (که آب حيات په آبرو يې خرخيږي داخستو نه دي.)[۳]

## مثنوي

مړه غو نې خوره د لاسه دخوشخويه
نه خوړل دناشپاتي له ترشرويه
(تر صحته دمرگ ښه دی په زحمت کې
دارو مه خوره د بخيل له کوره زويه)[۴]

# حکايت

## [۹]

يو له علماوو چې خرچ يې ضروری زيات تر آمده و، يوه دنيا دار ته،چې دده معتقد و، احوال بيان کړ چې کفاف لږ لرم، عيال ډير، توان طاقت مې د فاقې دبار نشته. هغه دولت مند مخ ترې وچاريوست، سوال يې ورته قبيح ښکاره شه.

---

۱ــ ز.
۲ــ ح: هر چه از دونان بمنت خواستی ـــ ذر تن افزودی و از جان کاستی
۳ــاگر آب حيات فروشند فی المثل بآب رويي ، دانا نخرد که مردن به از زندگانی بذلت.
۴ــ ز.

## قطعه

که له بخته ګله مند وي تر يو تريخ مه ورځه ويارته
دی به خوښ په عيش ناست وي ته يې عيش مکدر کړې
په خندا په خوشحالی د زړه احوال ورته وو ايه
چې دی لا خوشحال خوشحال شي عرض که هر څومکرر کړې

وظيفه يي هغه دولت مند تر اوله زياته کړه، اما ارادت يي تر سابقه کم. پس له څو ورځو چې مجلس واقع شه، هغه ګرمي د صحبت يې ونه ليده ويې وې:

## نظم

زيات مي په روز کې دينار درم شه
صحبت د ډيرو کالو برهم شه
له لوږې مړ وی نه دا سوال کړی
روټی می زياته عزت مې کم شه

## حکايت

## [۱۰]

يو درويش ته ضرور واقع شه، چا ورته وويل چې فلا نه شخص نعمت ډير لري مروت هم، که ستا په حاجت واقف شي، په پوره کول به يې توقف ونه کا. وې يې: زه يې نه پيژنم. تر لاس يې ونيو. رهبري يي وکړه. هغه شخص کره يي ورو وست. درويش چې دی وليده، وچولی يې غوټه، شونډې ځوړ ندې ناست و. هيڅ يې

ورته ونه ویل وجار ووت، چاو پوښتیده چې څه دې وکړه ؟ وې یې: دده عطا مې دده په لقا و بخښله.

## قطعه

حاجت مه وړه په نیژدو دترش رویو
په بد خوی بد خاطر فرسوده کاندې
ښایسته شیرین زبان ته مطلب وایه
چې دزړه په یافت نایافت آسوده کاندې

## حکایت

## [۱۱]

شیخ وایي قدس الله سره العزیز خشك سالي په سکندریه کې مخ ښکاره کړ، اکثر خلك یې له وطنه آواره کړ، ځمکه بې نمه شوه بې بارانه،ګردونه یې لا ړل پاس تر آسمانه .

## قطعه

که مرغونه که ماهي که نور حیوان وو
شپه و ورځ وو په ژړا په آه فغان
عجب دا چې دا آهونه جمع نه شول
چې وریځ شوی وریدی څنې باران

په دا هسي کال کې یو مخنث و[۱] صاحب د ډیر مال. خلقو سره یي امداد احسان کاوه.دستګیري د تنګدستانو کوله.دښار خلقوسره یې زر ورکول. په طریق دمساعدت مسافرانو لره به یې طعام ورکاوه از راه ضیافت، بعضې خلك وو، چې فاقه پرې ډیره غالبه شوه. ما لره راغله، مصحلت یي راځنې وغوښت چې په دعوت به یې ورشو. ما موافقت ورسره ونه کړ، ابامې راوړه، او دوی مې هم منع کړه، ورته مې ووې.

## قطعه

پس خورده به مرزی نه خوري د سګانو

که له ډیرې لوږي ومري په خپل غار کې

له سفله نه هرګز خواست د طعام مکړه

خپل ځان وو ژنه له لوږې په آزار کې

که دولت یي د قارون ملك دنمرود شي

بي هنر سړی داخل دی په کوم شمار کې

که پوشاك یې د زربفت و دکمخاب وي

چې بې نفع وي ځهره ده په دیوار کې

۱_دلته یې یو اوږد عبارت حذف کړی دی.

# حکایت

# [۱۲]

حاتم طايي چا و پوښتيده چې له ځانه دې هم بلند همت ځوك ليدلی دی، يادې آوريدلې دی؟ وې يې: يوه ورځ مي څلويښت اوښان ذبح کړي وو، اميران مې دعربو( او فقيران) بللي وو. نا ګاه مي په صحرا يو خارکش وليده، دلرګيو ګيډی په سر، ورته مې وويل چې په مهمانۍ دحاتم ولې نه وردرومې؟ خلك پرې جمع شوي دي، دعوت يې عام کړی دی. وې يې:

## بيت

هرچې خوري دخپل محنت روټۍ
څه به کاندي دحاتم داوښ بوټۍ

هغه شخص مې په همت په جوانمردۍ ترځان هسك وليده.

# حکایت

# [۱۳]

موسی عليه السلام يو شخص وليده چې له برهنګۍ، له خوارۍ په شګو کې ناست و. په شګو يې خپل ستر عورت پټ کړي وو، عرض يې وکړ چې ای موسی (ع) ! حق تعالی ته زما د پاره عرض وکړه چې قدر کفاف راکا، له بې طاقتۍ په ځان شوی يم، مهتر موسي صلوة الله عليه دعا وکړه، حق تعالی دستګاه ورکړ،

پس له څو روځو موسی علیه السلام هغه شخص ولیده، ګرفتار شوی، خلك پرې انبوه، ترې چاپير شوي، پوښتنه يې وکړه، چې دا څه حالَ دی؟ وې يې خمرې خوړلي و، مست شوی و، يو شخص يي په ناحق ووژی، اوس يې قصاص لره بيايي.

## قطعه

لوي حکمت دی چې وزر د پيشو نشته
دی به وکښله دهمه مرغو نو ولې
که دا ښکر چې دغوايي دي که دخره وی
خلقي به يې په ښکر سره وهلې
ډير شل ګوډ چې يې روغ شوي لاس و پښې وي
ماليدلی چې پردی خوني به يې سولې
(که فرعون او نمرود خوارو بې دستګاهه
دوی به کله دخدايي دعوې کولې)[1]

موسی علیه السلام په حکمت دجهان آفرين آفرين ووې[2] او په خپلې نادانۍ اقرار او له خپلې ګستاخۍ استغفار.

## قطعه

چې سفله ښتن دجاه وسيم وزر شي
د پاپو شو ووهل ته يې جوړ سر شي
د ميږي چې پرونه نه وي خيريت دی
چې يې وقت دورکيدو راشي په پرشي

---

۱_ز:- ددې نه ورستو يو آيت او دعربي يو شعر حذف دي.
۲- اقرارکړ.

دی دده په کار ترده بهتر پوهیږي
خوار خوار ښه دی ورته زیان دی که تونګر شي
ګبینه به پلار ها له وزوی ورکا
له صورته یې چې سره مخه بدر شي

# حکایت

## [۱۴]

یو اعرابي په دکان د جوهري[۱] ناست و، نقل یې کاوه، چې یو وقت مې لار غلطه کړه، په بیابان سر شوم. تو ښه دخوراك هیڅ راڅخه نه وه. زړه مې په هلا کت کښیښی، له ژوندون نهِ مي امید قطع شه، ناګاه مې ډکه کڅوړه دمرغلرو بیا مونده، هرګز به مې هغه خوشوقتي هیره نشي، چې ګمان مې وشه چې وراته غنم دي. بیامې به هغه غم له زړه فراموش نشي، چې مې ولید ل مرغلرې وې.

### قطعه

په بیابان یې چې له تندی وچ لړمون شي
څه سیپۍ څه مرغلرې په دهان کې
چې له لوږې مسا فر شي له تلو پاتې
څه کودري، څه مهران دده په میان کې

---

۱ـ ۱ : جوهریان بصره .

# حکایت

## [۱۵]

په میره په بیابان کې یوه مسافر لار غلطه کړه. ډیر وګرځیده، لارېې بیا نه مونده، توښه ورځخه نه وه، له سختی له لوږې هلاک شه. څوك پرې برابرشول، ویې لیده مړ پروت و، دینار درم ورته په خاورو پراته وو، په ځمکه یې دا کښلي وو:

### قطعه

مسافر که هر څو سره مهران لرینه
بې توښې دې و سفر ته نه ږدي ګام
مسافر څخه تر ځښتو د سرو زرو
روټی ښه ګڼه چې خوږ کا باندې کام

# حکایت

## [۱۶]

شیخ وایي هر ګز مې دزمانې له جوره نالش کړی نه و، نه مې دایام له ګردشو آه فریاد، مګر یوه ورځ چې له برهنګی د پښو چې پاپوش مې نه وو. استطاعت هومره نه و چې موجود شوی، ډیر په زړه کې تنګ شوم. ناګاه مې په جامع دکوفې کې یو کس ولیده چې پښې یې نه وې، شکر مې دنعمت دحق تعالي وکړ، او په خپلو بربنډو پښو صابر شوم.

## قطعه

و ماړه ته که ښه چرګ وي تلولی
په نظر يې سپك را ځي له ترکاری
وريت تيپر ورته دچرګ ترکباب ښه وي
چې هميش وږی فاقه وي له خواری

# حکايت

## [۱۷]

يوبادشاه له ځو خاصانو سره ښکار ته لاړ و په ښکار مشغول شه، وقت دژمي وو، له ودانی لرې ووت. په شپه يې ديوه دهقان خونه وليده، وې فرمايل چې شپه به هور ته کړو، چې دسړو زحمت ونه وينو. وزير ورته عرض وکړ چې لا يق د بادشاهانو دقدرنه دي، ددهقان کره ورتله. هم دلته به خيمه قايمه کړو، اوربه بل کړو. دهقان خبر شه، ما حضر يې چې په کور کې موجود و په خدمت يې حاضر کړ، ځمکه يې د خدمت کښل کړه، عرض يې وکړ، چې دباشاه له بلنده قدر به هيڅ کم شوي نه وو، اما ددهقان دسربلندی نصيب نه و. د بادشاه داخبره مطبوع پسنده شوه. په شپه يې ده کره نقل له هغه مکانه وکړ، ورغی، صبا يې ډير څه ورانعام کړه، بادشاه سور شو، دهقان يې په رکاب کې ته،دايې ويل:

## قطعه

د بادشاه له مراتبه څه کم نه شول
په مقدم یې دا ذلیل په ډیر اعزاز شه
ددهقان سر ستر وی وشه تر آفتابه
په سایه یې په سیالانو کې ممتاز شه

## حکایت

## [۱۸]

یوحریص ګدای و، ډیر دولت یې په ګدایي په خواست جمع کړی و. یوه بادشاه ورته ووې چې معلومیږي مال خزانه زیاته ترشماره درځخه ده. ماته مهم پیش شویدی، و جه قرض دست ګردان څه راکړه ، چې محصول را ورسي ادا به شي، وې یې: ته بادشاه د روی زمین یې، لا یق تالره نه دي چې زما غوندې ګدای چې ټوکونه مې ټول کړي دي، خرڅ کړي مې دي، کور په کورګرځیدلی یم، رنځونه مي ځکولي دي. څه مې جمع کړي دي، ته یې راځنې غواړې. بادشاه ووې: غم نشته زه یې کافرانو لره ورکوم اَلْخَبِیْثَاتُ لِلْخَبِیْثِیْنَ.

## بیت

که کوهي دنصراني پلید ناپاک دی
په اوبو یې مړ جهود وینځی څه باك دی

گداي شوخ چشم و، مجادله، مباحثه يې آغاز کړه. بادشاه حکم پرې وکړ چې په زور، په زجر يې هغه مال خزانه ترې واخستله دنورو زړه يي ښاد کړ.

## مثنوي

په نرمۍ چې تمامښت نشي دکار
و سختي ته آ خر ورشي لا چا ر
په خپل لاس محافظت دخپل عزت کړه
وړاندې ورستو فهم ښه وکړه حجت کړه

## حکايت

## [۱۹]

شيخ وايي قدس الله سره العزيز يو سوداګر مې وليده، سل پنځوس اوښان يې د سودا ګرۍ په متاع کښلي. څلويښت يې مريونه دخدمت دپاره وو، زيبا کُښلي. په يوه منزل يې زه خپلې حجرې ته بوتم. درسته شپه يې آرام ونه کړ. پريشان ويل يې کول. چې فلانه انبار مې په ترکستان کې، فلا نه متاع مې په هندوستان کې پروت دی، دا قباله دفلا نه ځمکې ده، په فلا نه مې هومره قرض پور دی فلانه يې ضامن دی، کله به يې وويل چې سکندر يه لره به درومم، هوا ښه لري، کله به يې ويل دمغرب په لور تله نه بويه، تشويش ډير را رسيږي، اي سعدي! يو سفر مې دوړاندې دی چې هغه هم وکړم.

نور به گوښه کښينم، قناعت به اختيار کړم. وې مې: هغه کوم سفر دی؟ وې يې: گوگړ به له فارسه چين لره يوسم او ديبايې رومي به له رومه هندوستان لره يوسم، او فولاد هندي حلب لره. اوښيښې پيالې حلبي يمن لره، او بردِيمني پارس لره، پس له هغه به ترک د سوداگري وکړم، په دکان به کښينم. هومره ماخوليايې بيان کړه چې ورته متحير شوم[1] آخر يې وويل چې ای سعدي ته هم څه ووايه[2] وې مې:

## قطعه

په بيان کې سوداگر له اوښه پريوت
په سرلگيده په ځمکه شه نسکور
وې يې سترگې دحرص ددنيا دارو
يايې ډکې قناعت کا يا يې گور

## حکايت

## [۲۰]

يو مال دار و، چې په بخل هسې مشهور و،لکه حاتم په سخاوت، امساك[3] يې هسې په وجود کې ځای نيولی و، چې که څوك په يوه لقمه له مرگه خلا صيدی ده به لقمه ورنکړه، پيشو[4] ته

---

۱ـ(که بيش طاقت گفتن نماند .
۲ـح: - زآنها که ديدی و شنيدی.
۳ـ(بخست نفس.
۴ـگربه ابوهريره را.

اچول طعام سپی[۱] ته اچول دهډوکي ورته دځان غوښه پرې کول هډ ماتول وو[۲] آخر په لوري دمغرب په عزم د تجارت په بحر کې په کشتۍ کښيناست. لاريې دمصر ونيوه، خيال يي په زړه کې دفرعونۍ حَتّٰى اَدْرَكَهُ الْغَرَقُ مخالف باد والووت[۳] ( دده بيړۍ يې غرقه کړه)[۴] لاس يې په دعا پورته کړل، فريادونه يې بې فايدې ډير وکړه، اما سودمن نه شول.

## بيت

ددعا په وقت لاس اوږد کړی په ساعت دورکړوشل
له دې هسې د عا کله دفرشتو آمين وي مل

## رباعي

مال دې په کور کې که زرکه سل وي
دا گمان مه کړه چې ستا به تل وي
بهره په ورکړه ځنې حاصل کړه
دا چې نن ستا دي صبا دبل وي

راوړي يي دی هرگاه چې ده ته مرگ ورسيده. په مصرکې يې خوار عزيزان وو. په بقيه مال يې هغه تونگر شول، زړې جامې يې په ماتم کې څيرې کړې، نوې سرو پايونه يي ځان ته وريښمين

---

۱_سگ اصحاب کهف را .

۲_ح: فی الجمله کسی خانه او را ندیدی درکشاده . وسفره او را سر کشاده.

بیت: درویش بجز بوی طعامش نشمیدی — مرغ از پس نان خوردن او ریزه نچیدی

۳_ح:- باطبع ملولت چې کند دل که نسازد — شرط همه وقتی نبود لائق کشتی

۴_ز.

وسکښتل. شيخ وايي يو مې له هغو وارثانو ليده، په يوه بادپايي سور، مريونه دوړاندې په جلب کې زغله، وې مې: سبحا ن الله د بخيل مال هاله له خاورو سرهسك کا، چې دی سر په خاورو ننه باسي.(۱)

## بيت

دبخيل په اموال زيرى زړه دې شاد کا
چې له قيده به يې مرګ ظالم آزاد کا(۲)

له ماسره يې سابقه آشنايي وه، تر لستوڼي مې وينو ورته مې ووې:

## قطعه

خوره خوروه حاصل ددو جهانو واخله
بد بخت کوم چې دولت ټول وبل ته پرېږدي
نيك بختان يې بهره واخلي له امواله
دی هم هسي خالي لاس ورځنې ليږدي(۳)

# حکايت

# [۲۱]

يوصياد و ضعيف، ماهی يې په دام کې قوي و نښت، طاقت يې د يستلو نه و، دام يې هم له لاسه يوړ.

---

۱ـ ز.

۲ـ ده که گر مرده باز گرديدی / بميان قبيله و پيوند
رد ميراث سخت تر بودی / وارثان را زمرگ خويشاوند

۳ـ بخور ای نيک سيرت و سره مرد / کان نگون بخت گرد کرد و نخورد

## قطعه

غلام لاړو چې اوبه راوړي له دوره
ناګاه رود پرراغی یویې وړ غلام
دام دار لاړ چې به ماهي راوړم له سینده
ماهي یو وړ ددام دار له لاسه دام

نورو صیادانو ارمان وکړ او ملا مت یې کړ، چې دا هسې لوی ماهي دې په دام ونښت، هومره مردي درکې نه وه، چې ضبط کړی دې وی. وې یې: معذور مې لرئ زما رزق په کې نه و. دده څو ګاهه لا رزق و.[1]

## بیت

که سړي وي که ماهي رزق یي مقسوم دی
چې طلب د بل دبخرې کا محروم دی[2]

# حکایت

# [۲۲]

شیخ وایې یو احمق په ښه تازي آس سور،جامې اغوستې، ورښمین زرین په شان په شوکت تیریده، چا راته ووې: ای سعدي ! څرنګ یې وینې ؟وې مې خط دی کښلی په اوبو د زرو کښلی.[3]

---

۱ـ ح ـ وحکما گفته اند" صیاد بی روزی در وجله ماهی نگیرد و ماهی بی اجل بر خشکی نمیرد.
۲ـ ف ـ صیاد نه هر بار شکار می ببرد باشد که یکی روز پلنگش بدرد
۳ـ ف:- خطی زشتتکه بآب زر نوشتت.

## قطعه

رنګ جامې يې دسړي وينې چار پاى دى
که خبر شې د نا اهل له د رونه
په دا هومره ډير متاع په ډير اسباب کې
هيڅ يې نشته حلال بې دده له خونه

## رباعي

شريف که هر څو ضعيف نحيف شي
نه چې به قدر دده ضعيف شي
دوره تنبې يې که د سرو زرو وي
ګمان ومه کړه چې جهود شريف شي

## حکايت

## [۲۳]

يوه غله و ګداى ته ووې چې: شرم نه لرې چې ددنيا د پاره هر يوه ليم ته لاس ونسې، خواست ورځنې وکړې. ګداى ورته په جواب کې ووې:

## قطعه

لاس وبل وته په خواست اوږد کړ ى ښه دى
نه چې دوه درمه پټ کړې لاس دې پرې کا

(داد سوال خیرې خرقې گدای ته ښې دي
ته جامې چې بیا یې ستا په وینو سرې کا)[۱]

## حکایت

## [۲۴]

له یوه مشت زنه نقل دی چې له مخالفه بخته په فریاد و، شکر یې د تندرستۍ او دقدر کفاف په ځای نه راوړ، همیشه به غمجن ،ناشاد و. یوه ورځ یې له پلار مصلحت دسفر وغوښت چې نیت مې شوی د ی چې یوه لورته مسافر شم، په وطن کې سړی بې قدره وي.

### رباعي

چې وطن پریږدي غریب گوهر شي — هاله له خپله قدره خبر شي[۲]
چې ځان یو ځله په اور کې واچوي — ښکاره له پسه ښه بدا گرشي

پلار ورته ووې: ای زویه ! دا محال خیال له سره لرې کړه، پښې دقناعت په لمن کې ونغاړه، سلامت په دا کې دی. بزرگانو ویلي دي: دولت په ډیر کوشش په لاس نه رادرومي ، (دولت په بخت په قسمت مومي.)[۳]

۱ـ ز.
۲ـ ز.
۳ـ چارهٔ آن کم جو شید نیست.

## مثنوي

د دولت لمن نيوی نشي په زور
بی فايدې دي تورول سترګې دکور
که دهر وينبتته په سر هنره سل وي
چې بخت نه وي له هنره څه حاصل وای
که هر څو يې قوت ډير په ليچو سخت وي
بيا به نه مومي دولت چې نګون بخت وي

زوي ورته ووې: اې پلاره! فايدې دسفر ډيرې دي. سړی پکې تجربه کارشي، عجايب غرايب ويني، وار وي، ګردش دجهان کله په يوه وار وي، سړی جهان ديده کار آزموده ښه دی.

## قطعه

څو به ناست دکوردننه اوسې خامه
ګرم سرد په ځان قبول کړه چې پُخته شې
ننداره دجهان کړه ترهغه وړاندې
چې په مرګ سره له تخته په تخته شې

پلار ورته ووې: منافع د سفر لکه تا وويل تردا زيات دي، اما مسافرت پنځو کسانو لره مسلم دی:

اول: سوداګر چې ډيربضاعت لري، ښه مريونه دخدمت لري، ښايسته وينځې د صحبت لري، څوياران ورسره سواره په سفر کې مله لري. په ښه ښه ځای مقامونه کاندي، ښارونه ګوري، نندارې کوي، دمقصود په لوري په آرام تله لري.

## نظم

د نعمت ښښتن که غر که بیابان وي
و د اني و یراني ده وته یکسان وي
په هر ځای کې خیمه لکه سازبارګاه کا
هراسباب ورته موجود وي ځان بادشاه کا
نامراد چې په نصیب دده افلاس وي
په وطن کې ناست غریب او ناشناس وي

**دویم:** چې عالم وي ورته سفر مسلم و ي. په ښه فصیح کلام زړونه دخلکودبلاغت په دام بند کا، که بادشاه که امرا وي خاص وعام یې خدمتونه په ځان پسند کا، هرچیرته چې درومي عزت حرمت مومي، واړه خلق وده ته احتیاج وي، نه چې دی دچا ته محتاج وي.

## قطعه

د عا لم سړی و جود په معنی زردی
په هر ملك په هر دیار کې په عزت وي
که جاهل دبادشاه زوی چې مسافر شي
په هر ځای کې به بیقدره بې قیمت وي

**دریم:** ښایسته که سفر ته ځي ګنجایش لري، خو بروی هر چیري سر خروی دی. زړونه دهر چا دده په لور مایل وي، ارزویې دا وي، که له ده واصل وي. که دی اصیل وي که بدذات وي دګردن

کشانو ورميږونه ورته مات وي، يو يې تر لاس ونسي چې نن ماكره ميلمه شه ورته وايي:

## رباعي

راشه راشه ښايسته راشه زما د غم دجونګړې رڼا شه
په هغي لار چې ته راتللې د هغې لار بلا په ما شه

بل ورته زاري كا، چې ما كره تشريف وفرمايه. ورته وايي:

## رباعي

كه دزړه نه شي چې را كره ډير كړې
شل شپې خو بويه چې دا كره تير كړې
زړه مې ډوب كړی انديښنو پوچو دی
چې همه واړه را ځنې و هير كړې

هوښيارانو ويلي دي چې ښايسته دخسته زړونومرهم دي، ښايسته لرې كووني دغم دي، لږ جمال بهتر تر ډير مال، صحبت يې هر څوك غنيمت ګڼي، خدمت يې واړه په ځان منت ګڼي.

## قطعه

كه په قهر يې پلار وشړي له كوره
كښنلي لاتر كوره بل ځای په عزت وي
چې بيرو نه له صدف شي مرغلرې
څو چې لرې ملك ته درومي پُر قيمت وي
د طاوس وزر مې وليد په مصحف كې
وې مې څه دی پرچې هسې يې قربت وي

وزر ووې چې شه هرچې ښايسته وي
په هر چا باندې يې قدر منزلت وي

**څلورم:** خوش آواز سفر حضر ورته دواړه برابر وي. هر چې زنده دل وي، صحت يې دحواس حاصل وي، محبت به په ښه آواز کاندي. خوش آوازي لويه مرتبه ده، ځکه حق تعالی داؤ د عليه السلام لره په کمال ورکړې وه.

## رباعي

دچا چې نرم حزين آواز وي لايق هر چيرته دډير اعزاز وي
د عاشقانو دزړه دمه وي سرود غمجنو سره همراز وي[1]

**پنځم:** هنرمند چې ښه حرفت کسب لري، هر چير ته کفاف قدر حاجت، په موافق دخپل هنر ورته موجود وي. محتاج دبل ددرنه وي. خپله آبرو ي يې په ځاى وي.

## قطعه

که له خپله شهره ووځي مسافر شي
قوت به هر چرې حاصل کا کسب گر
که بادشاه دولايت وي چې غريب شي
يا خواست غلا کا يا وي وږى بې هنر

هر څوك چې په دا صفت موصوف وي چې بيان وشه. په سفر کې به يې البته جمعيت دخاطر ميسر وي، او هر چې له دې

---

۱ـ چه خوش باشد آواز نرم و حزين بگوش حريفان مست صبوح
به از روى زيبا ست آواز خوش که آن خط نفس است و اين قوت روح

اوصافو بی بهره وي له سفره یې بهره خواري، مشقت، مذلت سرگرداني وي.

## قطعه

له هر چا سره چې دهر په کینه شي
رهبري یې بیهوده و ته ایّام کا
دکوترې چې دانه په جهان نه وي
خواه ناخواه به الوتل په لور ددام کا

زوی ورته ووې: دحکماوو له قوله مخالفت نه بویه، ویلي دي چې رزق اگر چې مقرر او مقسوم دی، اما اسباب یې د تحصیل شرط دی. او محنت بلا اگر چې مقدره او مرقومه ده احتیاطِ حذر کول ورځنې واجب.

## قطعه

رزق روزي که هر څو رسي بیگمانه
بایده دي بیا طلب لټا له ما نه
بي اجله خو د معلوم چې هیڅوك نه مري
بیا احتیاط کړه دا ژورو له دهانه

دا صورت دا قوت چې زه لرم په قوت په دلاورۍ به خرطوم دمست هاتي تاو کړم، په منگلو دمزري منگل. ما رخصت کړه چې سفر وکړم، آزمایش دخپل بخت سرې ته ضرور بویه، نور مې توان د بی نوایي د تنگدستي نشته.

## قطعه

چې سړي له خپله کوره مسافر شي
څه يې غم وي درست جهان شي دده ځای
تونګران په شپه ورځې و ودان سرای ته
ددرويش چې چيرته شپه هغه يې سرای
هيڅ حاجت يي په مقام په منزل نه وي
دخداي ملك تمامي كور دی دګدای

دا يې وويل، له پلاره يي وداع وكړه، دعا همت يې وغوښتل روان شه.[1] څو منزله چې له خپله ښهره لرې ووت، په كناره د يوه رود ورسيده چې ډير زور ورتيز رود و. سنګك به يې ويشته له سنګه، آواز به يې ته په څو فرسنګه.

## قطعه

هسي رنګك په تندي تللي هغه رود و
چې هيليو پکې کړی نشه قرار
په چپو به يې لا هو كړ ترساعته
كه دژندري پل يي پروت وي په كنار

په هغه سيند باندې بيړې وه، ملا حانو به له هر چا ملاحي آخسته. پکې به يې کښينول، مشت زن څخه دنيار درم موجود نه و. ژبه يې په دعا په ثنا دملاحانو پرانته، زاري يي ډيره وكړه، اما ملاحانو په دا نظر نه درله، خو زريې غوښتل، ملاح بې مروت دده په اقوال افعال وخندل ناخوال يې وكړ، ورته يي ووې:

---

۱ـح: با خويشتن همی گفت: هنر ور چو بختش نباشد به كام بجای‌رود كش ندانند نام

## قطعه

زور زاري په پردي ملك نه پكاريږي
راوړه زر چې محتاج نړۍ زاري زورته
(كه څه زر درڅخه شته په بيړۍ كښينه
كه زر نه لري ورځه پستنه كور ته)[۱]

دی ډير دملاح له دې پيغوره برهم شه ، انتقام ته يې عزم محكم شه، اما ملاح بيړۍ روانه كړه، ده ورپسې آواز وكړ چې كه په دا جامه چې مې آغوستې ده، قناعت كاندې دريغ نه ده. ملاح په طمع د جامې بيړۍ وجار ياسته:

## بيت

طمع نور دستركو ورك د خرد مند كا
شهبازان طمع داوړكيو په دام بند كا

خو چې بيړۍ وكنار ته ورسيده،دده لاس دملاح وګريبان ته ورسيده، ځان ته يې وښكاوه. بې محابايې لت كاري كړ، نو رو ملاحانوشفاعت وكړ،خلاص يې.ورځني په ډيرې زارۍ كړ. آخر الامر يې از راه لاچاري اومكاري بې مزده په بيړۍ كښيناوه. په نفاق يې په سر په ستركو كښل كړ، معذرت يې دماسبق ورسره مل كړ.

## نظم

په نرمى چې تما ميږي هغه كار
څه حاجت چې رساوه شي تر كارزار

---

۱ـزرنداری نتوان رفت بزور از دريا زورده مرد چې باشدزريك مرد بيار

چې هاتي سره مهاوت شيرين زبان شي
عاقبت دده په حکم په فرمان شي
که جاهل درته ګرمي کا ته سردي کړه
په عالم کې ځان مشهور په جوانمردي کړه

بيړۍ روانه شوه. ديونان وداني چې درياب ورانه کړې وه، په هغه ځاي ورسيده. هغه ځای مناره طور ستني وه. دزړو عمارتونو. ولاړه پاتو وه. ملاح وويل چې په دا ځای د بيړۍ خلل شته. که څوک قوت ناك دلاور مردانه ځوان وي، چې په داستنې وخيژي، رسن د بيړۍ ونسي. ګوندې په خيريت له دې ځايه تيره شي. دمشت زن[۱] خود دا غرور دقوت او دمردانګۍ و، حماقت يې هم ورسره مل، له دښمن آزرده نه يې انديښنه ونه کړه، په قول يې دحکماوو عمل ونه کړ، چې يې ويلي دی چې: هرچا ته چې رنج ورسوې که ورپسې سل راحته ورسوې هم يې له مکافاته په امن اوسه. چې تو برې له زخمه په انبور وخيژي. آزار په زړه کې له زړه عجب که په ضرور وخيژي.

## قطعه

څه ښه وې وزير بادشاه ته ديمن[۲]
چې څوك خوږ کړي ځنې مه اوسه ايمن
احتياط له بدانديشه درته بويه
د ده زور که دنيم سير وي ستاوي من

---

۱- (۱- جوان
۲ـ چه خوش گفت يكتاش با خيلتاش

## قطعه

که له لاسه دې تنګي ورسي چا ته
فراغت مه شه آخر به د زړه تنګ شي
که په ګیتۍ دې تندي دچا زخمي کړ
ستا په مات د بل له لاسه په لوی سنګ شي
چاره نشته د هيچا له مکافاته
په دا څه که دچا زردچا په درنګ شي[۱]

هغه نادان ځوان رسن د بیړۍ ترلاس وجاریوست، په ستنې وخوت، ملاح بیړۍ[۲] زر پرې کړه، بیړۍ روانه کړه، دی په مناره ولاړ حیران پاتې شه ،دوه درې ورځي په محنت په مشقت يې په ولاړی په هغه ځاي تیرې کړې. آخر خوب پرې زور وکړ، او بو ته يې پریوست، پس له درې ورځو سیند کنارې ته واچوه. له حيات يې پاتو رمق، پاڼې د ونو بیخونه يې دګیاهانو خوړل، لږ قوت يې حاصل شه. مخ يي په بیابان ونیو، روان شه ، له تندې بې طاقته، له لوږي په ځان شه، په يوه کوهي ورسیده چې خلق پرې جمع شوي وو، پیاله او به يې په بيه ورکولې. ده څخه پیسه نه وه. طلب يې ورځنې وکړ، زاري بیچارګي يې ظاهر کړه، رحمت يې له چا و نه لیده، نور يې تعدئ آغازه کړه، څو تنه يې ووهل، چې پرې ډیر شول وې واهه، زخمي يې کړ.

---

۱ـ ز.
۲ـ دالفظ همداسی لیکلی دی، خو دلته پری( رسی) زيات موزون ښکاري.

## رباعي

ماشي چي ډير شي هاتي په ځان کا
ورځني تنبي ځان ترې پنهان کا
ميږي چي ټول شي اتفاق وکاندي
خيرې خرمن د شير ژيان کا

از راه ضرور خسته اومجروح په کاروان پسې روان شه (افتان خيزان وررورسيده)[1] په شپه په هسی مقامْ ورغله چې له غلونو له قطاع الطريق خطر ډير و، کارواني واړه په لرزه په هيبت وو، له ماله له ځان نا اميد. ده ورته وويل، چې هيڅ غم اندوه مه کاندئ، يو زه په تاسو کې بس يم، چې د پنځو سو قوت ناکو ځوانانو ځواب کړم، چې تاسو هم راسره مددگار واستی. (که ډير وي هم شرمنده به شی)[2] ده په لافو کاروانی قوي دل شول، د ده په صحبت په رفاقت يې خوشحالي وکړه، خوراك يي ډير ورته ټول کړ، دی د ډيرو ورځو وږی تږی و، په اشتهاء تمام هغه آب و طعام نوش جان کړ، ديويې دنس آرام ونيو اوده شو، يو پير مرد په کاروان کې و جهانديده، کار آزموده، وې وې: ای يارانو! زه لکه ستاسې له دی بدرقی په ويره په هراس يم، له غلو نو هومره تشويش نه لرم، لکه نقل دی چې يوه اعرابي خخه څو درم ټول شوو، په شپه به دغلونو له ويرې تنها خوب نه ورته، آخريې يو له ځان سره محرم کړ، چې په شپه يې يو ځای گذران کاوه، وحشت يې برطرف شو، پس له څو

---

۱ـ ز.
۲ـ ح: کسی گفتش حال چيست؟ مگر آن در مهای ترا دزدبرده؟ گفت...

شپو هغه شخص دده له درمو واقف شو، واړه يې ترى يو وړل،بل ملك لره يې سفر وكړ، اعرابي صبا ګريان عريان ګرځيده، كو څه په كوڅه به يې ناري وهلې[۱] چې لا والله بدرقه برد (يعنى سوګند مې دې وي چې مال مي هم هغه يووړ چې ما بدرقه كړى و.)[۲]

## قطعه

چي له خويه له خصلته يې خبر شي
له هغه پس فراغت كښينه له ياره
ډيردښنه چي دوستانو په لباس وي
ورته ورسي آزار ددوى له چاره

مصلحت هم دادى چې دى اوده په ځاى باندى پريږدو، خپل متاع بار كړو، وليږدو. شايد دى هم دغلو نو مل وي، دايې راسره واړه مكر و دغل وي، واړو دده رايې خوښ كړ، له هغه ځايه يې هغه ساعت وكښل، دى يې اوده پريښنه. مشت زن هاله بيدار او خبر شه چې لمريې په سر جلوه ګر شه، كه ستركي يي ومښي نظر يي په هر لوري وكړ، ياران هسي لاړ نه وو، چې په نظر يي كښيوتى، حيران مضطر شو، زړه يې په خپل هلا كت كښيښ، هم په هغه ځاى كښيناست له ځان سره يي دا زمزمه كوله:[۳]

---

۱ـ ز.

۲ـ ج‍ـو مهابى از مشت زن در دل ګرفته.

۳ـ سربر آورد – كار دا نيانرا نديد. بى چاره بسى بګرديد و راه بجاى ندانست. تشنه و ګرسنه لا بى نوار وى بر خاك ودل هلاكت نهاده، ميګفت.

## نظم

چي يې نه وي دسفر محنت ليدلی
هغه نه وي د وطن لذت موندلی
دبې کسو کسَ! فضل په ماو کړې
دوطن په رسيدو مې خاطر ښه کړې
چې خدمت هميش کوم دغريبانو
له محنته خبر شوم د غريبانو

هم هسې رنګ په هغه مقام نااميد له ژوند ونه ناست و، چې يو بادشاه زاده ښکار ته وتلی و، قسمت په ده برابر کړ چې په حال يي دده نظر وکړ، صورت ظاهري پاکيزه ښايسته وليد، پوښتنه يې ورځنې وکړه چې له کومه ځايه راغلې، وطن دې کوم دی؟ سرګذشت يي اول آخر چې څه پرې تير شوی و واړه عرض کړ، دبادشاه زاده شفقت پر باندې وشه، خلعت ډير نعمت يې ورکړ، يو اعتمادي خدمتګار يې ورسره کړ، خپل ښار ته يې ورسوه، پلار يې په ليدلو شادماني وکړه، دده په سلامت حال يې شکر وکړ، په شپه سره ناست وو، د سفر حال ټول واړه پلار ته بيان کړ، حقيقت د بيړۍ دملاحانو د بې مروتۍ دکوهې، دکاروان احوال يي يو يو ورته عيان کړ، پلار ورته ووې: اي زويه ! ماخو درته ويلي وو، چې هر څوك خالي لاس وي، که په زړه په زور تر مزري پاس وي، هر چا ته بې قدره خوار وي، که په خپل ملك وي که په بل ديار وي.

## رباعي

څه ښه ويلي زورور خوار دي
پند به تر اخلي چې څوك هوښيار دي
تر او يا منه زوره سړي ته
زر داور بشې مقدار پكار دي

زوى ورته ووې چې اى پلاره! څو رنځ يو نسى ګنج يونسى، څو دځان خطر اختيار نه كړې په دښمن به ظفر نه مومې،راحت لره به هاله ورسي چې دمحنت په لار دورمي. كه مشقتونه مې وڅكول زرمې راوړل.[1]

## نظم

كه له رزق زيات سړى خوړلى نشي
په طلب كې كاهلي كولى نه شي
غو اصان كه انديښنه كه له نهنګه
تر و په څه به يې ګوهر رسي ترخنګه

پلار ورته ووې: اى زويه! داخل خو بخت درسره مدد وكړ، اقبال د رهبري وكړه چې ګل دې له اغزيو اغزى دې له پښې را ووت، يو صاحب دولت درباندې حضر صفت حاضر شه ستا په حال يې رحم وشه، دستګيري يې دتا وكړه، تر وطن يې له نعمت سره را

---

۱-(۱)- نبينى كه باندك رنجى كه بردم چه راحت آوردم: و نيشى كه خوردم چه مايه عسل بدست آوردم.

ورسولی[۱] ډیر څه یې مفت درانعام کړه، دا هسې په جهان کې نادر واقع کیږي ( النا درکا لمعدوم)[۲] نادر لکه نشت هسې دي . اعتبار لره نه بنایي.[۳]

### بیت

تل به نه اخلي صیاد بهره له ښکاره
یوه ورځ به پلنګ دی یوسي ترغاره

## حکایت[۴]

## [۲۶]

یو له ملوکانو ګوتې یې قیمتي په ځای دنشاني کښېښوه، حکم یې په حکم انداز انو چې دده دمجلس و، وکړ چې دهر چا غشي چې ددې ګوتې تر حلقه و ووت دا دهغه. څو نصوتیر اندازان کښیناستل، ګذارونه یې کول، وارو خطا کړه، مګر یو هلك چې د خپل کور په بام ولاړ و هر لورته یې غشوتې غورځول، باد یو غشي دده راوړ تر حلقه یې دګوتې ویوست، بادشاه نعمت او خلعت او هغه ګوتې ورو بخښل. هغه هلك غشي لینده زر وسول، چا ورته وویل چې ولې دادا فعل وکړ. وې یې چې اول رونق مې په ځای پاتو شي.

---

۱ـ ز.
۲ـ ز.
۳ـ ف: زینهار تا گرد این دام نگردی.
۴ـ ف: چنانچه ( یعنې دا نوی قصه نه ده بلکه تیری قصې سره تړلې ده)

## قطعه

کله کله له دانا تجربه کار
موافق د مراد را نشي تدبیر
تیر انداز حکم انداز نخښنه خطا کا
برابر په نخښنه شي د هلك تیر
(بې قضا نخچیر نیژدې توپچي خطا کا
دشپانه په سنګ ومري هغه نخچیر)[۱]

# حکایت

# [۲۷]

یو درویش و له جهان یې غار اختیار کړی و، لار یې دآمد ورفت دخلق په ځان بند کړې وه، په مسند د قناعت متمکن و، بادشاهان یې دهمت په سترګو کې حقیر ښکاریدل.

## قطعه

چې یې طمع له بادشاه له امرا وي
همیشه ورته محتاج او نیازمند وي
چې حرص له ځانه لرې کا قانع شي
سرکوزی نه کا وچا ته سر بلند وي

---

۱ ـ ز.

یو له بادشاهانو دهغه لوري دده په زیارت ورغی، عرض یې ورته وکړ چې امید له اخلاقه دبزرګانو داد ی چې په حکم ددې چې اجابت دَدَعوت سنت دی دبنده روتۍ قبوله شي. شیخ مهماني دده وخوړه. بله ورځ چې بادشاه په زیارت ورغی، درویش ورپاڅیده، بغل ګیري یې ورسره وکړه، ډیر پرې مهربان شه، اوصاف حمیده یې د بادشاه بیان کړه، چې بادشاه رخصت شه، یو یار ورته عرض وکړ چې نن دې له بادشاه سره په خلاف عادت صحبت ملا طفت وکړ، څه حکمت و؟ شیخ وې: اوریدلې دې نه دي:

## قطعه

چې د چا په بساط کښیني ځان میلمه کړې
په سفره و خورې دده، دده طعام
تلافي یې بیا په تابا ندې واجب شي
چې یې کړې په ښه دعا په ښه اکرام

## حکایت منظومه[۱]

غوږ توانیږي که په عمر تمام دی
آوازونه وري د د فو چنګ ونی
سترګې توان لري که ترك لیدل دباغ کا
له ښه بویه ډیر مدت شکیب دماغ کا
خوله که نه مومي حلوا خوړه شیرینه
لا به ګوره اتوپ ښه تر حلوا خورینه[۲]

---

۱-۱- مثنوی .
۲ - (دې شمیرې ته په چاپي نسخه کې څه نه دی لیکل شوي - مهتمم)

که نهالۍ د بخمل نه وي تر اړخ لاندې
هم خوب کيږي په پوزي په څمکه باندې[۲]
سر هم خوب کابی دپرونو له بالښته
چې يې کيږدي يا په کاڼي يا په خښته
که په غيږ کې د چانه وي ښه دلبره
په ساړه کې دواړه لاس ترسينې وره
(که آس نه وي چې پرې سورپه ډيرآرام شي
هم منزل ته رسيدنه په خپل کام شي)[۳]
اما ګيډه چې خالي نه ده له پيچه
بې ډک واليه قراري نه کا له هيچه



۱ ـ (دې شمېرې نه په چاپي نسخه کې څه نه دي ليکل شوي ـ مهتمم)
۲ـ ز.

# څلورم باب

# په بيان دخاموشی

## حکايت

## [۱]

شيخ وايي چې يو له دوستانو و چې خاموشي يې اختيار کړه. ورته مې ووې: سبب د منع له خبرو څه دی؟[۱] وې يې: غالب اوقات په خبرو کې نيك بد واقع کيږي او سترګې ددښمنانو په عيب بينا د ي، په هنر ړندې، وې مې: بهتر هم دا دی، چې دشمن هنر نهويني:

### قطعه

که په سترګو دغليم عيب هنر شي
ښه چې ګل شي ستا دده دسترګو خار[۲]

---

۱ ـ "يکی را از دوستان گفتم که امتناع سخن گفتم، بعلت آن اختيار آمده است..." (يعني خاموشی شيخ سعدی اختيارکړ ي ده نه چي دوست يي.)

۲ ـ هنر به چشم عداوت بزرگتر عيبی است    گلست سعدی و درچشم دشمنان خار است.

نور افشان لره خدای نمر په جهان باندې
ښاپیرك وربانديې ړوند وسه تل خوار

# حکایت

## [۲]

دیوه سوداګر زر دینار نقصان شول. زوی ته یې ووې چې دا خبره چا ته ونه وایې. زوی ورته عرض وکړ: هر چې ستا حکم ، نه به وایم، اما په داسَر مې واقف کړه چې پکې څه فایده ده، کوم مصلحت په نه ویل؟ وې یې چې دوه زیانه ونشي، یو نقصان شوه سرمایه،بل به خوشحال شي زموږ په زیان همسایه.

### بیت

که اندوه دې په زړه شي چا ته مه وایه احوال
نیکخواهان به دې ملا ل شي دشمنان به دې خوشحال

په دا مقام رباعي د صاحب و قبله ولي نعمی خوشحال ختك حق تعالی دی په قبر نور کاڼا یاده شوه په طریق د تبرك مرقوم شوه:

### رباعي

غم دغلیم و ته له دله دور کړه
خانده هوس کړه ښادي سرور کړه
که مخ دې زیړ شي له دلګیری
ته یې په دواړه څپیړې سور کړه

# حکایت

## [۳]

یو ځوان و، خرد مند، له عمله له فضله بهره مند، له هره فن یې خط حاصل و، اما په مجلس کې به چې ددانشمندانو ناست و، ژبه یې له ګفتار ه بنده وه. ګفتګوی به یې نه کاوه، پلاروړته ووې ته هم چې څه پوهیږې وایه، وې یې: ویریږم چې څوك مې به له هغه پوښتې چې پرې نه پوهیږم شرمسار به شم.

### قطعه

| | |
|---|---|
| یو صوفي د خپلو کوښو | مګر تك وهل میخونه |
| سپاهي وینو تر لستو نې | راشه تك وهه نعلو نه |
| آس مې تلی بې نعلو نشي | ډیر پاسته لري سومونه |
| چې خوله پټه سړی ناست وي | څوك پرې نه کاغرضونه |
| چې تر خولې ویل اظهار کا | نور ترې غواړي حجتونه |
| خاموشي دا ناته ښه ده | که هر څو لري علمونه |

# حکایت

## [۴]

یوعالم معتبر په آیات په حدیث خبر، له یوه ملحد سره یې منازعه واقع شوه. په حجتونو په دلیلونو هغه نامعقول معقول نه

شه، عالم ورځنې روان شه، ورته يې شاکړه. چا ورته ووې: دا هومره ډير علم لرې، ديندارېې، له دې بې دينه سره مباحثه کولی نه شې، ترې وجاروتې. وې يې: زما علم قرآن،حديث ګفتار دعلما وو دی، خبيث دديو معتقد نه دی. نه يې آروي، ما ته آوريدل دده دکفر څه فايده؟

## بيت

تسلی يې دخاطر چې په آيات په حديث نشي
له هغې سره عالم ته ضروري سکوت بايده شي

## حکايت
## [۵]

جالينوس حکيم يو ابله وليده، چې ګريبان يې ددانشمند نيولی و، بې حرمتي يې ورته رسوله. حکيم ووې: که دی دانا وی، له نادانه سره به يې کار تر دې حده نه رساوه.

## نظم

دوه عاقل په هرګز نه کا ځبله جنګ
نه جاهل سره دعوې اهل فرهنګ
که نادان سړی دا نا ته سخت ويل کا
په نرمي ويل دانا نادان خوشدل کا

دوه هوښیار ځبله ساتي سپنسی او مړی
دوه جاهل شلوي دا وسپنو سازپړي
ونیك خوی ته چا بد خوی وکړ ښکنځل
نیکخوی ووې ای نیکخو یه نیك فرجامه
دا چې ته وایې زه ډیر تر دا بتر یم
زما پوهه ده تر تا په ځان تمامه

# حکایت

## [۶]

سحبان وآیل په فصاحت کې بې نظیر و، ضرب المثل شوی دی په عالم کې. په دا سبب چې یو ځل به یې یو لفظ چې بیان کړ، تر کاله به یې هغه لفظ مکرر نه کړ، مذکور به یې په بل بل لفظ کاوه، که اتفاق به هم دهغې ویلې خبرې بیا د ویلو واقع شه، په بل عبارت به یې اداء کړه، دا هم له جمله و دادبونو دی چې یو لفظ بیا ویلی ته بویه.

## مثنوي

که خبرې هر څو ښې وي سحر آمیزه
چې بیا بیا شي آخر شي ملا ل انګیزه
چې یو ځل خبره ووایې نو بس کړه
نه یوه وینا بیا بیا په هر نفس کړه
چې خوږه حلوا دې وخوړه یوځله
زر هغې حلوا ته نشې د زړه ځله

# حکايت

## [۷]

يوه حکيم په خپل نصايح کې ويلي دي چې: هرګز په خپل جهل سړی اقرار نه کا، مګر هغه سړی چې بل خبره کا، دی تر منځ ګډ شي. دهغه خبره ناتمامه پرېږدي، دی خپله خبره آغاز کړه.

## مثنوي

دخبرې هم آغا ز هم يې انجام وي
په خبره کې خبره کا چې خام وي
هر سړی چې روشن رايه صاحب هوش وي
ويل هاله کا آغاز چې نور خاموش وي

## رباعي

چې د خبر و تر منځ خبر ې کا
سپی دی تميږي څوك دېږي کورې کا
چې څوك يې نه پوښتي خاموش دې اوسي
که هر څو تويې ترخولې شکر ې کا

# حکايت

## [۸]

دسلطان محمود له نوکرانو چا حسن ميمندي ته ووې، چې نن تا ته سلطان په فلا نه مصحلت کې څه فرمايلي وو؟ وې يې: له تاسې به هم پټ نه وي. هغه ورته ووې: ( هر چې تا ته وايي مو ږ غوندې سړيو ته کله وايي) وې يې په دا اميد راته وايې چې چا ته به يې نه وايې، پس ولې مې پوښتې؟

### رباعي

سرد شاهانو چې څوك نه ژغوري
په سرېې کانې دبلا وو رى
چې محرمان دي هغه په ځان دي
بې مرضي کله ګوري يا ښوري

# حکايت

## [۹]

شيخ وايي يو سراى مې د سکونت دپاره اخست، په بيع کې متردد وم، چې آخلم که نه آخلم. يو جهود راغى راته يې ووې چې: واخله زه ددې محلت کد خدايم، داځاى هيڅ عيب نقصان نه لري. وې مې: تر دا به بل عيب کوم وي، چې ته مې به همسايه وې.

## قطعه

چې د تا غوندی نا پاك يې همسايه وی
که په لس درمه ارزي دا کور گران دی
چې ته ومرې له هغه پسه که يې اخلې
که پرې زرد رمه ورکاندې ارزان دی

## حکايت

## [۱۰]

يوشاعر په وخت د ژمی مدح وکړه، دغلونو سردار ته يې وروړه، په دا اميد چې څه به را کا، د ژمي له پوشاك به فارغ شم، حکم يې وکړ چې اغوستې جامې ترې وکاږئ، له وره يې بيرون کاندئ.بيچاره په ساړو کې برهنه روان شه، سپي ورپسې شول. لاس يې کښته کړ. چې کاڼی واخلی، سپي له ځانه لرې کا، ځمکه يخ شوې وه، کاڼي يې په لاس نه ورته، وې يې چې حرامزدگان دي، سپی يې پرانتل،کاڼي يې وتړل. دغلونو سردار احوال دده له دريچې وليده، دا دده ويل يې واوريدل، ډيريې وخندل. وې باله، ورته يې ووې: خپل مقصود معلوم کړه، چې حاصل يې کړم[۱] وې يې ستا له انعامه ويزار يم خپلې جامې را وبخښه.

---

۱ـ (۱ـ گفت ای حکيم چيزی بخواه.

## قطعه

د نیکۍ امید سړی له سړي کا ندي
زه دښو طمع له تانه کړم بدمه کړه
(خام طمعي مې دا منگیر شوه تا ته راغلم
خدای رانده له طمع اهل خرد مکړه)[1]

## حکایت

## [۱۱]

یو نجومي کورته راغی له حرم سره یې یو نامحرم په خپل حرم کې ولید چې ښکنځل یې ورته وکړ، هغه هم ورته په ځواب کې بیهوده گویي، یاوه گویي وکړه، شو روغوغا جنگ تر منځ واقع شه، صاحبدل دا حقیقت واوریده وې یې:

## نظم

ته چې نه لرې خبر له خپله سرایه
له آسمانه څه خبر یې راته وایه
(بیگانه سره پرته نه ویني زنه
له نجومه لا فې مکړه دروغزنه)[2]

---

۱ـ ز.
۲ـ ز.

# حکايت

## [١٢]

يو خطيب و، کريه الصوت له آواز يې خلق په ځان وو، اما په سبب دده دجاه بلايې دده بد آوازي ځکوله، هيڅ وينا يې ورته سخته نرمه له دې بابه نه ويله، يو له خطيبانو دهغه محلت چې له ده سره يې عنادو، ورته راغی وي يې: خوب مې ليده چې ستا ډير ښه آواز دی، خلق ستا له خوش آوازۍ په راحت دي. خطيب يو ساعت انديښنه وکړه، وې يې: ډير مبارك خوب دې ليدلی دی، معلوم شول چې آواز ښه نه لرم، خلق زما له بلنده آوازه په زحمت د ي، نور مې عهد کړی، چې خطبه به نرمه لولم، لوړ آواز په پرېږدم.

### قطعه

د يارانو له صحبته آزرده يم
چې زما عيبونه نه ښيي وماته
تر دوی ما وته شوخ چشم غليم ښه دی
دعيبونو آئينه کيږدي مخ راته

# حکايت

## [١٣]

په مسجد کې د بخارا دښار يو مؤذن چې له آواز يې اهل مسجد څه چې اهل محله په تنګ وو، صاحب مسجد مرد نيکو

سیرت او با مروت څوك و، له حیایې منع کولی نشه، چې چیرې آزرده به شي، ورته یې په اشاره وویل چې: ددې مسجد موذنان قدیمي شته، ستا په اذان ویل دوی آزرده خاطر ملول ناست دي، پنځه دیناره مې سالیانه ورکول، تا ته به لس دیناره درکړم که بل ځای لاړ شی، آذان وایې، دوی په دستور اول دلته په دې مسجد کې آذان وایي . ده قبول کړه، لس دیناره یې واخستل روان شه، پس له مدته بیا راغی، صاحب مسجد ته یې وویل چې: تا په ماستم وکړ چې په لس دیناره دې له هغه ځایه لرې کړم، بل ځای ته چې ورغلم شل دیناره راکوي چې بل ځای لره لاړ شه. امیر ډیرو خندل، له ډیرې خندا په زمکه پریوت وې یې: زنهار چې پنځوس درم درنکامه راضي کیږ ه ، ورځنې مه درومه.

## قطعه

له بهشته راوتلی ښه آواز دی
په عالم باندې یې ځکه اثر کیږي
د وزخي به لکه خر هسې آواز کا
په حیوان کې صوت دخرونو انکر کیږي

# پنځم باب

## په بیان د عشق او دځوانی

### حکایت

### [۱]

حسن میمندي ته چاووې چې سلطان محمود هومره ډیر مریونه لري، واړه صاحب جمال، پسندیده افعال، له هیڅ یوه سره دا مهر محبت نه لري، لکه له ایاز سره، څه حکمت دی ، باوجود چې دایاز هومره حسن هم نشته؟ وې یې: هر چې زړه ته پریوځي په سترګو کې کښلي ښکاري.

### مثنوی

| | |
|---|---|
| چې د پادشاه مهرپرې وشي | واړه بد د هغه ښه شي |
| هر سړی چې بادشاه رد کا | خپل پردي یې واړه بد کا |
| زړه بادشاه قالب رعیت دی | په قالب یې حکومت دی[۱] |

---

۱ـ ز

## رباعي

په چا چې و شي نظر د مينې
که هر څو بد وي ته يې ښه وينې
مجنون ته کله ترليلې کښلې وې
که ليلې توره وه نورې سرې سپينې

# حکايت

## [۲]

ديوه دولتمند خدمتګار و، ښايسته نادر الحسن، نظر يې ددوستۍ ورباندې ډير و. يوه مصاحب ته يې وې: دريغه دا مريې زما په دا حسن شمايل چې دده دي، که زبان دراز او بې ادب نه وی. هغه ورته ووې چې: هرګاه اقرار ددوستۍ او دمحبت وکړې توقع خدمت ترې مه کوه. چې عاشق معشوق تر منځ راغله مالکي مملو کي پاځيده.

## مثنوي

چې خواجه دخپل بنده سره عشقباز شي
دده ناز دې په سرو ړي که يې پرې نياز شي
که اول يې دی صاحب و اوس نفر دی
عاشق کله له معشوقه برابر دی

# حکایت

## [۳]

یو پارساو، پرهیزګار، په محبت دیوه شخص ګرفتار، نه یې توان دګفتار، که هر څو یې ملا مت غرامت څکاوه، ترك یې دده دصحبت کولی نه شه. دا به یې وې:

### قطعه

ګمان مکړه ای زما د سترګو نوره
چې لمن به دې پریږدم په تیره توره
نام ناموس که له ماځي پروا دار نه یم
خدای دې نه کاندي ستا مینه له ما دوره

یوه ورځ یوه له دوستانو ملا مت کړ، چې ځان دځه په عالم کې فضیحت کړ، نفسِ خسیس درباندې غالب شه، زړه دې ځکه دهوا په لوري راغب شه، یو زمان یې سر کښته کړ، پس له فکر ته یې داوویې:

### قطعه

چې سلطان دمحبت په خاطر زورکا
ورته کله د تقویٰ استقا مت شي
پاك دامن به لمن څرنګ ساتي پاکه
ترګریوانه غرق په لای دمحبت شي

# حکایت

## [۴]

دیوه زړه له لاسه لاړ و، په خطرناك ځای ننبنتی چې ویره دهلاکت وه.

## نظم

نه په زور په لاس راځي نه په سل زرو
خدای دې نه کا څوك مین په زوره ورو
چې حاصل نشي پرې وصل ددلبرو
تورې خاورې شه په سر دهغو زرو[۱]

چا ورته نصیحت وکړ، چې له دی خیال محال اجتناب وکړه، خلك په دا بند اسیر دی[۲] هیچا ته یې وصال میسر شوی نه دی، که دولتمند که فقیر دی[۳] بیچاره وژړل وې یې:

## قطعه

نصیحت وماته مه کاندی دوستانو
په هر څه کې زه مراد غواړم ددوست
که په مهر راڅښوي شربت دوصل
که په قهر مې وکاږي دسر پوست[۴]

---

۱ـچو درچشم شاهد نیاید زرت — زرد خاك یکسان نماید برت.
۲ـ ح:- و پای در زنجیر. ۳ـ ز .
۴ـ جنگ جویان بزور پنجه و کتف — دشمنان را کشند و خوبان دوست

شرط دیاری دمحبت دانه دی چې له ویرې دځان جانان ته شا کوم.

## قطعه

چې په مینه کې یې غم دخپل وجود وي
مدعي دی لباسي دی د روغزن
که وصال درته حاصل د جانان نشي
په طلب کې یې مردي ګڼه مردن
یا به بخت دیار آستین درکه په لاس کې
یادده دآستانې کړه خاورې تن

هر چې دده متعلقان دلسوز وو، از راه شفقت او دلسوزي نصیحتونه ورته مقرر کول، اما ده به هم دا مکرر ویل:

## رباعي

په سوبه یاره له تانه صبر کړم
یامې به یار شي یا به ځای قبر کړم
عشق مې په مثل د خوني ببر دی
زړه تا په خوله کې دخونې ببر کړم

## قطعه

یوه کنبلی خپل عاشق ته په رموز وې
چې ستا زر مې پکار نه دي مرغلرې

که په مینه کې سرخس ګڼې نیږدی شه
که دسر و یره لرې بد مرغه لرې

چا هغه بادشاهزاده چې دده منظور نظر و، خبر کړ چې دلته یو ځوان دی، خوش طبع شیرین زبان، درد آمیز خبرې ورځنې عجایب آوریدی شي. هسې معلومیږی چې آشفته دی، شور دمینې په سر کې لري، بادشاه هزاده په سواري کې وروجار ووت،ورغی، درویش دل ریش وپوهیده چې عزم ده ته دراتلو لري. په ژړا په واویلا شه وې ویل:

## بیت

هغه چا چې زه وژلی یم را درومي
دلسوزي په خپل مقتول کا ثواب مومي

شاهزاده از روی عاشق نوازي په ملا یمت ورځنې پوښتنه وکړه، چې څوك یې؟ له کومې راغلی یې؟ حال دې څه دی؟ کوم صفت هنر دې حاصل دی؟ هغه درویش هسې په سیند د محبت غرق و چې توان یې ددم دوهلو نه و.

## بیت

که ډیر علم یې حاصل چې آشفته شي
په خاطر یې همه واړه نهفته شي

بادشاهزاده ورته ووې چې ولې له ماسره خبرې نه کړې؟ زه هم داخل په حلقه ددرویشانو یم، بلکه ددوی دحلقه بګوشانو یم،

پس يې په قوت دمعشوق داستيناس او له کمال موانسته سريې ورته پورته کړ، وې يل:

## قطعه

زه په مثل لکه چراغ يم ته مثال د لمر رڼايې
چې دمخ نه وينم سوزم مرم چې مخ راته ونمايې[1]
داعجب دی چې وجود زما باقي ستا په وجود دی
بې تا سوزم په تا مرمه زه مړ ښه يم ته دې پايې

دا يې ووې ، آه فرياد يې په زوره تر خولې ووت ، ځان يې په حق تسليم کړ.

## بيت

په وصال کې که څوك ومري دا عجب مه ګڼه ښايي
عجب دا چې په هجران کې عاشق څرنګ ژوندی پايي

# حکايت

# [۵]

يو له متعلمانو چې صورت سيرت يې کمال درله د معلم په واړو شاګردانو کې په ده ميل زيات و، زجر تنبيه يې لکه دنورو هلکانو کاوه، دده يې کړی نشه. کله به يې چې په خلوت کې بيا موند ورته به يې ووې:

---

۱ـ ز- دا کوم بل شاعر د شعر ترجمه ده.

## قطعه

هسی رنګ په تا مشغول یم آفتاب رویه
تر تا ځار شه که دلبر د ي که دلبرې
که مې سیخ په سترګو سیخ شي خدای دې نه کا
چې به سترګې ستا له مخ کړم لرې برې

یوه روځ هغه هلك ورته وویل چې لکه تربیت مې دعلم کوې، راته یې ښیې هسې مې نظر په اوصاف په اخلاق هم کوه، په ښه بد مې واقف کړه چې تبدیل یې کوم. ذمیمه په حمیده بدلوم. معلم ورته ووې چې دا پوښتنه له بل چا کوه، چې ما ته ستا بې هنرونو عیبونه نه ښکارېږي.

## قطعه

دحاسد د بداندیش سترګې ړندې شه
همیشه دبل په عیب کا نظر
که په ځان کې پېسل عیبه یو هنر وي
په نظر ددوست راځي هغه هنر

# حکایت

## [۶]

شیخ وایې یوه شپه یاد لرم چې یار عزیز تر وره رانته ووت، زه هسې له هوسه په تعجیل بیخوده ورپاځیدم، چې چراغ مې په لستوڼي سره ګل شه،په طریقه دمعذرت مې ورته ووې:

## قطعه

بړ بړ راشه په غابښ در په لبومُله
زنخ سيبه بادام چشمه په مخ ګُله
ددې خونې رڼايې ته يې ته دې ناست وې
نقصان نشته که ډيوه شوه له موړ ګُله

ده راته عتاب آغاز کړ، چې زه دې وليدم، چراغ دې مړ کړ، وې ومې په دوه معنیٰ: يو دا چې ګمان مې وشه، چې لمر وخوت، دويم دا په خاطر راورسيده لکه ظريفانو ويلي دي.

## قطعه

که چراغ ته خزنده مکروه نيژدې شي
زرله زريې په وژلو خوا سره کړه
که دلبر شيرين زبان شکرين لب وي
تر لستونې يې زرنسه شمع مړه کړه

# حکايت

## [۷]

شيخ وايې يو له دوستانو و، ډير مدت مې ليدلی نه و، ناګاه په وره راننه ووت و يې مې چيرته وې ؟ ډيرتا مشتاق وو، وې يې مشتاقي دوصالت بهتر تر ملا لته .

## مثنوي

ډير پس راغلې اى زما يار ه سر مسته
زر به پرې نږدم دتا لمن له دسته
وې يې پس پس ديدن ښه دى اى نادانه
د وصال قدر پيدا شي له هجرانه

ښائسته چې درفيقانو سره درته راشي، و پوهيږه چې نيت د جفا لري، چې تنها درکره قدم رنجه کا ، راشي،عزم دوفا لري.

## نظم

يو ساعت چې له اغيار سره ګډ يارشي
په خاطر مې اندوه غرونه غرونه بارشي
په خندا يې وې زه شمع د مجلس يم
پتنګان به ډير زما له سره ځار شي

# حکايت

## [۸]

شيخ وايې په وقت د ځوانۍ زه يو دوست لکه دوه مغزه د بادام په يوه پوست کې مو به صحبت کاوه، اتفاقاً چيرته يې غربت اختيار کړ، پس له مدته بيا راغى، ګِله يې وکړه، عتاب يې آغاز کړ، چې په دا هو مره مدت کې تا قاصد را نستوه، وې مې:دريغ افسوس ما ته چې سترګې د قاصد ستا په جمال روشن وي،زه محروم.

## قطعه

له غيرته مې زړه تور صورت شي نرم
چې په خط يې مقابل شي د خط توري
ترو په سومې به رشك نشي له قاصده
له ليدو يې زه محروم دی به يې ګوري

## حکايت

## [۹]

يو دانشمند و په محبت ديوه شخص بند و، رازيې د محبت ښکاره و، په عالم يې ګريوان پاره، جوريې فراوان وليده، تحمل يې زيات تر بيان کاوه، يو ځل يوه يار ورته تصيحت په نرمۍ آغاز کړ، چې اګر چې ستا په دا مودت کې علت نشته، اما بِنايې دمحبت په ذلت يبنې ده، لايق دعلما ؤ دقدر نه دی چې ځان په دا مهتم کا او لمن د فضيلت ملوث.جور د بې ادبانو ځکوئل، جفا دجفا کارونو زغمل، تا ته مناسب نه دي، وې يې: وروره ! لاس دعتاب زما له لمن کوتاه پستنه کړه، بار ها دا نصيحتونه ما زړه ته کړي دي، صبر شکيب دده په جفا را باندې آسان دی نه ليدل، دده دمخ راته ګران دي. حکماو ويلي دي: زړه په مجاهده کښيښول سهل دی ، تر منع کول د سترګو له مشاهدې دشاهد.

## رباعي

پند راته مه کړئ برادرانو وداني څار شه دعشق تر ورانو[1]
ږیره په لاس کې دنورو ورکا څوك چې زړه ورکا و دلبرانو[2]

## نظم

تر نباتو لاخواږه دي ستا تر خه ترخه ویل
ډیر دپیر تر دعا بِه دې ستا دخولې ښیرې ښکنځل
دواعظ په نصیحت مې لا په یار مینه زیاتیږي
سرې لنبې دي نه ډیوه ده چې به مړ ه شي په پوکل

## قطعه

هر چې بې له ده روزگار کولی نه شي
که جفا درسره کا بویه چې وړه شي
که په قهر یې سړی په مهر بولي
په هر څه چې دي راضي هم دې هغه شي

## حکایت

## [۱۰]

شیخ وایې چې په وقت مې دځوانی له یوه سره سِر دمحبت و، په حکم ددې چې په خوی په روی ښښتن داعتدال او صاحبِ جمال و.[3]

---

۱ـز.
۲ـح: آهوی پالهنگ در گردن نتواند بخویشتن رفتن
۳ـ۱ـحلقی داشت طیب الاداو خلقی داشت کالبدر فی الدجیٰ.

## رباعي

نن چې په حسن دښکلیو سر دی
هم هغه ښکلی زما دلبر دی
سیرت یې لا تر صورته ښه دی
خدای یې را پرېږده عجب بشر دی

## رباعي

په خوله په ژبه آب حیات و په شونډو شهد و مصريٍ نبات و
دعارض خط یې نوی نبات و ځويې صفت کړم ترهغه زیات و

اتفاقاً په خلاف زما درأی حرکت ورځني صادر شه، چې آزرده مې ځني خاطر شه، لمن مې تر دوستۍ وڅکوله، مهره مې د مهر ورځني واخستله ورته مې ووې:

## قطعه

له دیه پسه ورځه ځان لره خپل کار کړه
چې یې زړه باندې ښه کیږي هغه یار کړه
موږ ماړه شو ستا له نازه ستا له خیاله
له دیه پسه بل پیدا دناز خریدار کړه[1]

اروېدل مې چې راځخه روان شه په تلل کې راته ویل:

---

۱ـ ز

## مثنوي

ښاپیرك دنمر له وصله که محروم شه
په ښایست کې دنمر وایه نقصان کوم شه
چې رونق زما د حُسن د بازار وي
ډیر به تا غوندې زما دناز خریداروي[۱]

زما په زړه ده دیو بیتونو ډیر اثر وکړ، وریسې مې غږ مکرر وکړ،وې مې:

## مثنوي

راشه راشه ما خپل خون درته بخښلی
که په غم دې هر څو زړه وي زما لښلی
ستا له لاسه ستا په تیغ سره مړ ښه یم
په هجران دې که ژوندی پایم ښه نه یم

اما ده پستنه التفات ونه کړ، هم هسې په قهر په غضب روان شه.

## قطعه

ما له شرمه نور څه نه وې ده له قهره
خو هم هسې رنګ له قهره په تلوار ولاړ
هیڅ نظر مې پستنه نه کړ له عاره
داد عمر آ شنا څه بیګا نه وار ولاړ

---

۱ ـ ز

اما شکر منت دباري تعالی چې پس له مدته چې بيا وليد شه هغه صباحت يې په قباحت بدل شوی، دجمال سپوږمۍ يې زوال موندلی، هغه آوازيې چې دلپذير و، کصوت الحمير هسې شوی و، رونق يې دحسن دبازار مات، اميد وار و چې په کنار کې مې به ونسي. ترې کنار شوم وې مې.

## قطعه

هغه ورځ چې ته منظور دخاص وعام وې
تاو وکړی سپك نظر صاحب نظر ته
نن کوم سو د څه فائده د تاله صلح
چې زوړ يار دې هم کتی نشي بشر ته

## نظم

پژ مرده دې اوس د مخ تازه بهار شه
هر يو ګل يې و عاشق ته لکه خارشه
تازه ګل د باغ کښيښول شي په دستارکې
دخاشاك سره پريوځي وچ په نار کې
اوس په موږ باندې ډير خيال تکبر مه کړه
قدر ناز پروسږن تصور مه کړه
اوس هغه و ته ورځه چې دې طالب وي
ګنده خورو ګنده پزو ته راغب وي
انتقام واخلي و ښبته د عا شقا نو
چې ښکاره شي په سپن مخ دسنګدلانو

ستا ویښته لکه کبل کله کمیږي
که هر څو یې پریکوې لا به زیاتیږی

## رباعي

چې دې په زنې ویښته اظهار شي
په تا مین به له تا کنار شي
ښیګړه اوس کړه چې دې مخ سپن دی
هاله به څه کړې چې تیر دې وار شي

## قطعه

په خوږ و شونډو دې دې میږي ټول شوي
که سنبل د مخ په آب دې ټوکیدلي
په خندایې وې د حسن په ماتم کې
مخ تور نمري د ماتم دې آغوستلي

# حکایت

## [۱۱]

یو له نظر بازانو چاوپوښتیده چې څه وایې په باب دامارد،
یعني پې مخیو؟ وې هیڅ خیر پکې نشته، څو چې ویښته یې
په مخ نه وي. خوبصورت لطیف و نازك اندام وي، سختي، درشتي

کاندي او چې حسن ځنې کناره شي. خط يې په مخ ښکاره شي لطافت نزاکت ترې جدا شي (نرمي دصحبت ګرمي دخلقت واخلي.)[1].

## قطعه

چې يې حُسن په کمال کښلی شيرين وي
تندې خوی وي،ترخه وايې جفا کار وي
نيك خويي ګډون کوي چې خط يې راشی
څه فايده څه يې حاصل چې تيريې وار وي

## حکايت

## [۱۲]

يوله علما ؤ چاپوښتيده ، چې که څوك له ښايسته سره ناست وي ، په خلوته کې، ور وي تړلی، غير وي تر منځ وتلی. نفس طالب وي، شهوت غالب وي، ممکن دی چې په قوت دپرهيز سلامت پاتو شي؟ وې يې ممکن دی، اما ممکن نه دی چې له ملامته خلاصی بيا مومي.

## رباعي

څوك چې له کښليو سره انباز وي
که هرڅو نيك وي پارسا پاکباز وي

---

۱_ تلطف کند و دوستی نماید.

نجات یې نه شي له ملا مته
پرې به د هر چا زبان دراز وي

## حکایت(۱)

## [۱۳]

طوطا او کارغه اتفاقاً په یوه قفس کې چا واچول، طوطا دده له لیدو ډیر ملا ل و. دده له مشاهدې یې مجاهدې څکولې. ویل به یې: دا څه کریه الصوت،کریه منظر دی. چې زه پرې گرفتار شوم، بندمې آسان و، دده له صحبت ډیر آزار شوم.

### قطعه

که په مخ یې څوك په وقت د صباح پاڅي
په شامت به له غمه پرې نماښام شي
په صحبت کې ستابل غوندې بایده وو
په صحبت کې د ناجنس کله آرام شي

عجب تر دا چې قارغه هم دده له مجاورته په ځان و، له خپله بخته په فریاد، په آه فغان گریان و، چې څه نا مبارك وخت و چې له هسې ابله ترش روی سره په یوه پنجره کې بند شوم.

---

۱ـ د پیښور په نسخه کې دې قصې ته "مثل" او دلندن نسخه کې حکایت لیکلی دی.

## بيت

يو ساعت که دحکيم قرين رندان شي
په حکيم هغه ساعت دکال زندان شي

ژوندی په سيخ پيلی ښه وم، نه دده سره په ګلستان کې، په ځای دزندان ،رنګ آوازې هيڅ نشته، له خودۍ پور دی، سرې خالي له عقله ډك په غرور دی.

## قطعه

هيڅ سړی به يې په سيوره ناستی نه کا
زشت صورت يې که ځوك نقش په ديوار کا
په بهشت کې که دی وي ورته لازم وي
چې دوزخ دې نور مرغونه ا ختيا ر کا

دامثال په دا راوړشه، و پوهيږئ چې څو د دانا له نادانه وحشت وي هسې دنادان له دانا نفرت.

## قطعه

يو زاهد په سماع ناست و درندانو
ورته ووې په خندا کې يوه کښلي
په صحبت کې که زموږه ته ملول يې
موږ يو واړه ستا د ناستې په غم لښلي

## رباعي

موږ واړه ګل يووپه ګلستان کې
ته وچ لرګی شوی زموږ په ميان کې
ګرمي د مينې درکې هيڅ نشته
يخ يې، يا واوره، په زمستان کې

# حکايت

# [۱۴]

شيخ وايي يو وار موافق زما و، چې مد تونه موسره يو ځای ګذران کاوه، هم په سفر کې سره مله وو، هم په حضر کې، ډير حقونه موځبله دصحبت طرفين ثابت شوي، آخر الامر په لږه خبره روا دار زما د آزر دګۍ شو، په دوستۍ کې سر دي واقع شوه، اما دلبستګي دواړه لوريه لا باقي وه. يوه ورځ شايد په مجلس کې چا زما دا بيتونه ولوستل:

## قطعه

زما يار چې نمکينه خندا وکا
لا پرې زيات شي جراحت د دلريشانو
دريغ سريې دزلفينو په لاس راغلی
ګوندې وشو دستګيري د درويشانو

اهل مجلس واړو په موافق دخپل نیك ظن آفرین و تحسین وکړ، هغه شخص چې زما دده تر میان غبار پریوتلی و، په دا باب یې ډیره مبالغه وکړه، او په فوت یې د صحبت دیر ینه تاء سف اعتراف یې په خپلی جفا وکړ. زه په داحقیقت واقف شوم، وپوهیدم چې دده له لوریه رغبت شته، دا بیتونه مې ورستول، صلح مو ورسره وشوه.

## قطعه

زما ستا ترمیان تل عهد و وفا وو
ما زده نه و چې به ته له ما جفا کړې
له تمامه خلقه ته زړه ته راتیر شوې
بیگانه شوم له هر چاته مې آشنا کړې
تر اول به لا وما وته محبوب وې
که دنیت دصلح وې زما رضا کړې

## حکایت

## [۱۵]

دیوه شخص عورتینه صاحب جماله له دنیا تیره شوه، زړه موریې په علت دکا بین ورکره کښناسته، طلب یې ورځنې دلور د مهر کاوه، دهغه مرد له مجاورته ددې چاره نه وه، چا آشنایانو ورته ووې، څرنګک یې په مفارقت کې دیار عزیز؟ وې یې: نه لیدل دعورتینې په ما باندې هومره دشوار نه دی، لکه لیدل د دې دمور.

## نظم

ګل خزان په ځمکه پریوست پاتو خارشه
خزانه یې ځنې یوړه پاتو مارشه
چې یې مخ وته نظر کیږي په کرکه
له هغه مخه نظر ښه دی په مزکه

## حکایت
## [۱۶]

شیخ وایي دسلطان محمود خوارزم شاه دخطا د بادشاه سره صلح کیده، زه هم ورسره په سیل دهغه ملك روان وم[۱] دکاشغر په مسجد جامع کې ورغلم، یو هلك مې ولید، خوش روی، شیرین کلام، لطیف اندام ،په مکتب کې ناست و، وې مې :

## نظم

معلم درته ښیلې دلبري ده
هومره ناز،هسې جفا ستمګري ده
که پیدا د جبلي دي دا خو یونه
دا ښیوه کهدې آخستې له پري ده

---

۱ ـ ز.

مقدمه يې د نحو[1] علم لوسته چې ضَرَبَ زَيْدٌ عمراً. وې مې:
اى هلكه! خوارزم شاه دخطا د پادشاه سره صلح وكړه، دزيد دعمر
عداوت لا هم هسې باقي دى. ويې خندل، وې يې: دكوم ملك يې؟
چيرته زولى يې؟ وې مې: وطن مې شيراز دى، (په سياحت د دې
لوري راغلى يم)[2] و وې يې: دسعدى له خبرو هم څه ياد لرې؟ عربي
شعر مې ورته ولوست. وې يې: په دا ملك كې اكثر شعر دده فارسي
وايه شي، كه و وايې ګوندې مې ذهن ته ورسي. وې مې:

## نظم

ته سبق لولى مشغول يې تكرار كړې دعلم نحو
په نګاه دې له خاطره زما صبر هوش كړه محو
اى چې زړه زما دزلفو په حلقه شو دتا صيد
زه په تا باندې مشغول يم ته مشغول په عمرو زيد

په صباح چې عزم دسفر مصمم شه، روا نيدم، چاله همراهانو
ورته ووې چې سعدي هم دى و، په دو راپسې راغى، تلطف يې ډير
وكړ، تاسف يې وخوړ چې اول دې ولې راته ځان نه ښيه، چې شكر
مې ستا دليدو په ځاى راوړى وى، ملا مې دخدمت ستا په خدمت
تړلى وى. وې مې:

---

۱-[1]-نحو زمحشرى.
۲-ز.

## بيت

په وجود به ستا زما کله وجود وي
په ختل دنمر ذره ستوري نا بود وي

وې يې: څه به وشي که څو ورځې په دې ښار کې مقام وفرمايې چې ستا له خدمته مستفيد شو. وې مې نه توانيږم په حکم د دې خبرې.

## مثنوي

يو بزرګ مې وليدلی په کوهسار کې
چې کاوه يې ګذران په يوه غار کې
وې يې ولې سکونت په ښهر نه کړې
ګوندې وي چې لرې بارله دله ته کړې
وې يې هورته دي دلبر ښايسته کښلي
چې لای زور شي مست هاتيان پکې ونښلي

دا مې ووې، نور ورسره بوس و کنار شوم. ورته مې ووې.

## رباعي

ځبله که هر څو ډير قربانيږو
د فراق شرح ته نه توانيږو
راشه چې دواړه لوريه دې کښل کړم
تا دخدای ښه ساتي موږ روانيږو[1]

---

۱- (۱) بوسه دادن بروی یار چه سود همدران لحظه گردنش پدرود
سیب گویی وداع بیاران کرد روی زین سوی سرخ زان سوزرد

نور مو ځبله وداع وکړه، او دده سترګې هم له اوښیکو ډکې شوې، په ما باندی هم فراق زورشه.

## بیت

دوداع په وقت له غریوه ګفتار نشي
خوهم هسې ډکه خواله یاره یار ځي

## رباعي

له اوښیو ډکې سترګې نظر کوي
راته د خپلو تللو خبر کوي
چې دجوګیانو جامې دې واغوستې
پوهیږم لرې ملك ته سفر کوې[1]

## حکایت

## [۱۷]

شیخ وایې یوه درویش و، په کاروان کې دحجاز له ما سره رفیق و، دمساز ، یو دامرایانو دعربو یو سل دیناره ورته بخښلي وو چې نفقه یې دعیال کا. ناګاه غلو نه په کاروان ولګیدل، وی

---

۱ـ ز.

واهه، مال يې لوټ کړ، کاروانيو فرياد زاري ډيره وکړه، اما فايده پرې مرتبه نشوه.

## بيت

که هر څو ژړا فرياد زاري کا غلو نه
پستنه نه ورکوي وړي مالونه

مگر هغه درويش چې په خپل حال ثابت و، هيڅ تغير پکې پيدا نه و، ورته مې ووې: مگر هغه ستا مال غلو نه وي وړی؟ وې: وړی دی، اما زما الفت تعلق ورپورې نه و، چې په مفار قت خسته دل شم.

## قطعه

تعلق په هغه څيز چې بی وفا وي
زنهار مه کوه په عقل پوهه کمه
د د نيا دولت په مثل لکه بار دی
کله مخ کا کله شټ کاندي له همه
په هر څه باندی چې زړه دچا ونښلی
قطعيت يې ډير مشکل دی پر الـمه

وې مې: موافق دې زما دحال دا. مقال وکړ، په وقت مې دځوانۍ له يوه ځوان سره چې نهايت خوش صورت و، اتفاق دمخالطت واقع شوی و.[1] سرمايه مې دعمر دده وصال و، قبله مې دسترگو دده جمال.

---

۱ـح: وصدق مؤدت تا بجائيکه.

## قطعه

دآسمان فریښته مګر په دا ښایسته وي
بل دده غوندې بشر نه و په مزکه
چې ښکاره به یې سپین مخ لکه آفتاب کړ
په سپوږمۍ به شوه رڼا د سپوږمۍ ورکه
مستسقي یې زه دکښلي ابدار مخ وم
چې هرګز مې ځنې نه ما تیده سکه[۱]

## نظم

( داښایست چې لکه ستا دی ښایست دارنګې آفتاب نه لري
که یې نور د تاپه شان دی کړه ووړه دا آب و تاب نه لري
کښلې سترګې،وروځې کښلې،پوزه کښلې،خوله خوړه خندایې
هموار غاښ نري سرې شونډې توري زلفې مشکناب نه لري)[۲]

ناګهان یې آفتاب دمخ په مغرب د ګور غروب شو، لکه یونس د لحد په ماهي کې ډوب، څو ورځې یې په قبر په طریق دمجاورت ناست وم، دا مې به له ځانه سره زمزمه کوله :

## قطعه

هغه ورځ چې ستا په پښه داجل خارشه
ما په سر خوړلی تیغ دمرګ په سر وی

---

۱ـ ابدوستی که حرام است بعد از و صحبت که هیچ نطفه چو آدمی نخواهد بود
۲ـ ز.

چې جهان مې بې تا نه لیدی په سترګو
خاورې شوې مې تر تا پخوا بشر وی

## رباعي

چې به ترې نه وو ګلو نه لاندې
خوب به یې نشه په نهالۍ باندې
اوس په لحد کې په خاورو پروت دی
پرې زرغونه دې ګنډیرې سپاندې

پس دده له مفارقت مې عزم جزم وکــــــــــــړ
چې ســـــــــی نــــــــور به له چا سره اختلاط او مجلس ونکړم.

## نظم(۱)

په خزان کې که نظر په ګلو وکا
ښائسته به په خپل حسن زړه ښه نه کا
یو ساعت یې خوشحالي اندوه دعمر
آشنایي دې هیڅوك نه کاندي که ښه کا

## رباعي

که هر څو سود په دریاب کې ډیر دی
موج یې کله د سودا ګر و هیر دی
وصل ژوندون دی د دوو مینو
بلا بلا د هجران شمشیر دی

---

۱ـدا نظم او داسې دوه رباعیانې ددې قطعې په ځای راوړی شوي دي:
رویش چون طاؤس مینا زیدم اندرباغ وصل دیگرامروز از فراق یار می پیچم چومار
سود دریا نیک بودی گر نبودی بیم موج صحبت گل خوش بدی گر نیستی تشویش خار

رباعي

آروې بلبله د بهار څه وايي؟
هر چې ډير نه پايي مينه پرې ته ښايي
نن خو دګلو ښائست کمال دی
دريغه ترګانده پورې که و پايي

# حکايت

## [۱۸]

يودعربو بادشاه ته چا حقيقت دمجنون دمحبت په ليلې ظاهر کړ، چې باوجود فضل و بلاغت سرېې په بيابان ينبی دی، له ډيرې مينې مغلوب العقل شوی دی، بادشاه وفرمايل چې حاضريې کاندئ، هرګاه چې په خدمت يې حاضر شه، ملا مت يې کړ چې په انسانيت کې دې څه خلل وليده، چې خوی د دبهايم واخست؟ ترک دې دسړيونه وکړ، (ګډون کړی له حيواناتو سره په صحرا پيوستون)[۱] مجنون ووې:

### قطعه

ملامت چې ستا په مينه په ما کاندي
دريغه دريغه چې ستا مخ يې وليدلی
چې په ځای يې د ترنجو خپل ورغوی
له حيرته همه وا ړو پرې کو لی

---

۱ـ ز.

دبادشاه په خاطر وګرځيدل چې دليلیٰ جمال کتلی بويه، چې څرنګ صورت لري، وې فرمايل چې طلب يې کاندئ[1] حاضره يې کړه، پادشاه نظر ورته وکړ، مشاهده يې دجمال وکړه، په نظر کې يې ډيره حقيره راغله، چې دده په حرم کې کمتر ينه وينځه په جمال ورځني بهتره وه، مجنون په فراست وپوهيده، وې يې: ای بادشاه ! دمجنون په سترګه ليلیٰ وته وګوره، چې سريې دمشاهدې جلوه ګر شي.

## نظم

دمجنون سترګې پيدا کړه ليلیٰ ګوره
ستا په سترګو به ليلیٰ را درومي توره
په مشتاق باندې حلوا سپوره روټۍ ده
و ماړه وته حلوا لکه ليتۍ ده
روغ هرګز نه وي خبر دچا له درده
ښاد من څه زده دغمجن له آه سرده
چې په عمر لړم نه وي ټك وهلی
پورې خاندې چې آه کا لړم چيچلی
ته چې نه لرې زما غوندې خوږ روغه
دا زما ژړا ده ستا ته په دروغه
بيا در دونه بيروني څوك دروني وي
دروني دردونه سخت تر بيروني وي

---

۱ـح: دراحیای عرب بگر دیدند و بدست آوردند.

هسې رنګک دروني خوږ په تفاوت وي
ثو دځمکې دآسمان په مینځ کې وت وي
هومره خوږ دزړه تر نورو خوږ و ډیر وي
پرې پوهیږي چې دا خوږ ورباندې تیر وي
په دردونو کې درد سخت دبیلتانه وي
له دې درد سره بل درد برابر نه وي
ستا په لاس باندې پرهار زما په دل دی
کار زما لتا په زر بخرې مشکل دی

# حکایت

## [۱۹]

قاضي دهمدان دیوه نعلبند په زوی عاشق شه، نعل یې دزړه په اور کې دمحبت پریوت، طالب یې دوصال و، موافق یې دخپل احوال مشغول په دا مقال.

## رباعي

دغم ساعت و چې راڅرګند شه
په دام دزلفو یې زما زړه بند شه
استاد به تل وي چې نظر بند لره
وهیر مې له دله داستاد پند شه

یوه ورځ په رهګذر کې دقاضي په مخه راغی، شاید چا خبر کړی و، چې قاضي په تا باندې مین دی، ډیر غضب یې وکړ،

ښکنځل يې ورته بې محا با وکړه، کاڼي يې ورته واخست. قاضي ته يې بې حرمتي ډيره ورسوله. قاضي يوه عالم ته چې دده د لا رې رفيق و، وې:

## قطعه

ظاهر عاشق ته ځان خشمګين لري
له قينجه خياله غوټه جبين لري
په خوله ترخه وايي په زړه شيرين لري
ښايسته واړه هم دا آيين لري[1]

## بيت

دحلوا تر نمړى خوږدى ستا له لاسه سوك په خوله
واړه قند شكر ترې دي ستا له خولې ويل ترخه

معلوميږى چې دا هومره غصه يې چې وكړه نيت په زړه كې دمهربانۍ دياري لري، بادشاهان خبرې په صلابت كوي، ننه په زړه كې صلح غواړي.

## بيت

(بادشاهان چې دانايان مغفر شګاف وي
پټه صلح كا ښكاره يې دجنګ لاف وي
په جفا ددلبرانو صبر ورته لازم وي
هر څوك چې له دوى اميد دوفا لري)[2]

---

۱ـ ح: وعرب گويد ضَرْبُ الْحَبِيبِ زَبِيبٌ.
۲- ز.

## بیت

چې ورسي اول په خوله تر وه لګي انګور
که ځوورځې صبر وکړې خو د به شي له خوږ و پور

دا یې ووې، نور راغی په مسند د قضا کښیناست ، څو تنه له بزرګانو چې عادلان وو، دده هم مجلس وو. مزکه یې دخدمت کښل کړه، عرض یې وکړ، که اجازت وي، بعضې خبرې دي و به وایو، اګرچې که ترك ادب کیږي بزرګانو ویلي دي:

## بیت

نه په هر مذکور کې بحث کول روادي
دبزرګانو چې خطا نسي خطا دی

اما په حکم ددې چې هر چې پرورده دنعمت وي، که یو مصلحت ویني چې پکې دده منعم خیرت وي، خبر ې نه کا مخفي یې پریږدي، یو نوع خیانت کیږي، صلاح ددولت دادی چې من بعد ترك ددې خیال کړې، امید قطع ددې هلك دوصال کړې، منصب دقضا بارګاه دی منبع او دا فعل دی شنیع، مناسبت سره نه لري، لمن دپاکۍ په دا ګناه مه آلوده کوه، حریف خود هم دا و چې وې ولیده، خیر یې هم داوې چې دې واوریدلې.

## نظم

| | |
|---|---|
| چې یې مینه په هلك شي | که ډیر درونډ خوان وي هم سپك شي |
| که ښبنتن دلوی عزت وي | هم بې و قاره بې حرمت وي |

چې يې تويه بد خو يې کا      څه به غم د آ بر و يې کا
لوی،هلك.هلك ته يو وي      هغه کاچې يې خپل خو وي

قاضي نصيحت ديکدلو يارانو پسند کړ. ددوی په نيکخواهۍ يې آفرين ووايه چې ستاسې خبره عين صواب ده او مسأله ده بې جوابه اما ويلي دي:

## نظم

که هر څو ورباندې شي ملا متونه
نقصان نه مومي هرگز محبتونه
نصيحت وماته څه کوې نيکخواهه
په ازل ده د زنگي څهره سياهه
که هرڅو مې يار جفا که تل مې زوري
آوښته نشته زما د ده له لو ري
نعل پريووت اوس زما دعشق په اورکې
وينو ځای نال بند دسترگو په سپين تورکې
رايستل دده له سترگو کارمحال دی
چې مې منع ځنې کا دايې خام خيال دی

دايې ووې، نور دقضا دمسنده پاڅيد، خلوتگاه لره ورغی، سړی يې ورپسې ريباران کړه، اميد واريې دنعمت فروان کړه، زري ډير ورستول، (زربازي، نظر بازي چې جمع شي د نعلبند زوی څه ددانشمند زوی به هم دده دکور شمع شي)[1] مثل مشهوردی، هرچې زر لری په ترازو کې هغه زور لري په بازو کې.

---

۱ـ ز.

## مثنوي

زر چې ووينې رستم ورته زبون شي
که هر څو سربلندان وي سرنګون شي
د فولاد و سينه شي په زرو نرمه
ډير دشرم کښلي زر کاندي بې شرمه

آخرالامر يوه شپه خلوت ميسر شه، کوتوال دښار پرې خبر شه، چې قاضي ته دنعلبند زوی ورغلی دی. وريې له خلقه تړلی دی. په مينو شي مشغول دی.

## بيت

(کله لب په لب دجام کله ديار ږدي
په دا شان دنيکبختانو می نوشي ده)[1]

قاضي درسته شپه شراب په سر کې دلبر په بر کې،خوب سترګو لره نه ورته، په دا زمزمه يې ترنم کوه :

## نظم

نن شپه ډير بې وقته بانګ دی دچرګانو
له ياره بس کړي نه دي عاشقانو
چې تروقت پخواداهسې نارې کاندي
چاړه سره شه هم ددوی په وينو باندې
په نظر کې مې نه شاه نه يې وزير دی
روبرو چې راته ناست دکښليو ميردی

۱ـ ز.

څو نوبت يې دبادشاه نه دی وهلی
يا آذان يې دمسجد نه دی ويلی
زه به نه، کړم بيارته لب ديار لبه
سرو مال مې شه فدا له دې طربه
(له بادشاهه مې غم نشته له کوتواله
ساقي پاڅه پياله راکړه مالا ماله
محتسب زما تابع قاضي خود زه يم
له نور چا پروا دار ووايه په څه يم)[1]

قاضی په دامستی په دا احوال کې مستغرق و، يو له متعلقانو ورته راغی، وې يې: څه ناست يې پاڅه تښته، حسودانو دې وقت بيا موند، شحنه يې د ښهر ستا له حاله واقف کړی دی، څو لا اور د فتنې ډير شوې نه دی، فکر يې د مړول بويه، په اوبو نه مړيږي چې لنبه داور شي لويه. قاضی تبسم وکړ وې يې:

## قطعه

په راتلو د سپيو کله پروا دار وي
چې زمري کاندي خپل ښکارتر سينې لاندې
مخ په مخ له ياره ناست وسه غم مکړه
رقيبان که لکه سپي غپهار کاندي

هم په هغه شپه بادشاه چا آگاه کړ، چې ستا په ښار کې دا فعل کيږي، څه فرمايي؟ بادشاه ووې، چې زه دی يو له فاضلانو

---

[1] ز.

ددهر ګنم، له کبار رو عالمانو دښار، شايد معاندانو تهمت پرې
ويلی وي، ځو يې په خپلو سترګو ونه وينم په ويلو مې دچا باور نه
کيږي، حکماؤ ويلي دي:

## بيت

په تندی چې نادان لاس کيږدي په تيغ
عاقبت ورغوي ژوي ددريغ

بادشاه له ځو خواصو سره په خلو تګاه دقاضي راغی، شمع
يې وليده چې بليده، ښائسته ورته ناست شراب توی شوي، پياله
ماته، قاضي له مستی بی خبر پروت و، بادشاه په نرمی په ملا يمت
بيدار کړ، چې پاځه نمرو خوت، قاضي ووې: له کومه لوريه ؟بادشاه وې
چې دمشرق له لوريه، په عادت معهود ويې الحمدلله چې ورد توبې
بند نه دی، په حکم د دې حديث لَا يُغْلَقُ بَابُ التَّوْبَةِ عَلَى الْعِبَادِ
حَتّٰى تَطْلِعُ الشَّمْسَ مِنْ مَغْرِبِهَا اَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ اَللّٰهُمَّ وَ اَتُوْبَ اِلَيْكَ. يعني
نه دی بند ور د توبې په بندګانو ځو نمر له مغربه نه دی راختلی،
ومې بخښې ای پروردګاره و جرار و تم و تاته.

## قطعه

دا دوه ځيزه مې باعث ددې ګناه شول
يو شهوت دويمه پوهه ناتمامه
که تنبيه مې فرمايې هم سزاوار يم
که بخښې مې عفو ښه تر انتقامه

بادشاه ووې دا ساعت ستا توبه نفع نه کاندي.

## قطعه

څه فایده که غله تو به وکاله غلانه
چې کمندیې رسیدی نه شي ترکاخه
له میوې د لاس کوتاه قامت بلند کا
د کوتاه لا سونه نه رسي تر شاخه

دا هسې فعل منکر چې له تا ظاهر شو، خلا صي ستا متصور نه دی، نور دم در حال موکلان دعذاب پرې هر اند شول، قاضي ووې چې: یو عرض مې بل هم په خدمت د بادشاه باقي پاتو دی. بادشاه ووې هغه کوم دی؟ وې یې:

## رباعي

دتا که هر څو قهر و ماته شي　　خما لا طمع و تانه زیاته شي
اسرې د خپلو پردیو پاتو شوې　　اوس مې یوائې اسره و تاته شي

## قطعه

که مړوند مې په تیره چاړه څوك پرېکا
هم به پرینږدم لمن د تاله دسته
که په ما دې بندو بست دولا یت شي
زما سر قربان شه ستاله بندو بسته

بادشاه ووې: دا لطیفه خودې بدیع راوړه، اما محال د عقل او خلاف د نقل دی چې نن ورځ دې فضل او هنر زما د عقوبت له

منګلو، خلاص کا، مصلحت دا وینم چې تا له بامه کښته را وغورځوي، چې عبرت د نورو وشي، نصیحت واخلي. قاضی ووې: ای زما خاونده ! زه پرورده دنعمت ستا دخاندان یم، دا ګناه ما یوازې په جهان کې نه دی، بل یو وغورځوه چې زه پند واخلم. بادشاه وخندل معاف یې کړ، دده و طاعنا توته یې مخ کړ ویې وې :

## رباعي

موږ چې عیبونه د بل اکثر وینو
خپل ځان له نوره خلقه بهتر وینو
سر د جمله و عیبونو دا دی
چې د بل عیب دځان هنر وینو

## حکایت منظومه

## [۲۰]

یو پاکباز په ښایسته کښلی مین و
هم مشهور په ځوانمردی په مردو زن و
دوه لیدل شو په ظاهر په باطن یو وو
ځبله د واړه موافق یکدل یکروو

له قضاو په ګرداب کې پر یو تلي
ملاح هم و په تلوار پسې د نګلي
ځوانمرد ووې وملاح ته چې ما پرېږده
ورشه لاس زما د یار په لاسو کېږده
تصدّ ق شه زما سر د ده له سره
ما به څه کړې لاس دده خلاصي ته وره
که دې خلاص له ډوبیدو کړ زه به خلاص شم
که سیند ډوب کړم لا په مینه کې به خاص شم
که دی ډوب شي ما بیرون کړې له ګردابه
همیشه به شرمنده ګرځم بې آبه
ملاح قصد د ده دیار د وکښو وکړ
په وکښل یې له ګردابه خاطر ښه کړ
بیا یې قصدو کړ دده د خلاصولو
ګوندې وي چې دی هم راشي په منګلو
ناګاه موج ورباندې راغی غرق یې دی کړ
که هر څو ملاح فریاد یایې هی هی کړ
هغه دم چې غرقیده دایې فریاد کړ
خسته زړه یې هم په دا خبره ښاد کړ
شکر شکر چې تریار مې ځان قربان شه
زه شوم ډوب له ډوبیدو مې خلاص جانان شه
محبت یې چې فاني نه وي جاني وي
د رښتینو په دا شان زندګاني وي

هسې رنګک ده یاري کړی ځوانمردانو
دمطلب یار ي یاري وي دزنانو
صدرحمت شه په رښتیني مینه باندې
په لباس چې له چا خاندې په ځان خاندې
اوسنۍ یارۍ یارۍ نه دي غلول دي
یو ځبله وګرداب ته تېل وهل دي
په راحت کې همګی ځبله ځاریږي
په محنت کې ځبله واړه ویزاریږي

# شپږم باب

# په بیان دضعف د پیرۍ

## حکایت

## [۱]

شیخ وایي په مسجد جامع کې ددمشق له علما ؤ سره ناست وم، مباحثه دعلمي تر منځ کوله شوه، چې یو ځوان له وره راننه ووته وې یې: په تاسی کې څوك شته چې په فارسي ژبه پوهیږي؟ اکثر و اشارت زما ولورته وکړ، وې مې څه کاردې دی؟وې یې: دسل پنځو سو کالو سړی دی په حالت دنزع دی، په فارسي ژبه څه وایي، موږ پرې نه پوهیږو ،که ته تصدیع وڅکوې، قدم رنجه کړې، اجربه بیامومې، شاید څه وصیت کوي. چې په بالین یې ورغلم دا بیتونه یې له ځانه سره وې :

### قطعه

څو نَفَس مې دزړه په مراد وکښل

تمام کړی مې لا نه وخپل هوس

ما وې زه به له دې خوا نه بهره اخلم
راته وایې ډیر دې وخوړل نور بس
ه دنفس دتلو راتلو لارې یې بند کړې
وقت مې تنګ شو اوس وکښې نشم نفس

معنی مې ددیو یو بیتونو په عربي ورته ترجمه کړې، واړه تعجب کاوه، دده په درازۍ دعمر او تأسف په تعجیل دعمر تیرویدو او دده په نه مړیدلو. وې مې: څه ووایه! وې یې څه وایم؟( څرنګ بیان کوم.)[1]

## قطعه

نه دي تالیدلي څو سختي په سړي ورشي
غاښ چې په انبور سره وکاږي له دهانه
قیاس وکړه په زړه کې چې څه حال هغه ساعت وي
چې روح له تنه درومي وداع کیږي له جهانه

ورته مې ووې: تصور دمرګ له زړه لر کړه، وهم په طبیعت مه غالب کوه د یونان حکماؤ ویلي دي: رنځ که هرڅو سخت وي نا امیدي دې له ژوندونه نه کا، مزاج که هرڅو مستقیم وي، اعتماد په صحبت نه بویه. که ته وفرمایې طبیت راو بولو چې معالجه دې وکا. سترګې یې راپورته کړې ویې ویل:

## قطعه

طبیبان به زما څرنګ دارو کا ندې
چې په طب کې دزړوالي دوا نشته

---

۱ــ ز.

دزورِ والي دارو مرگ دی مرگ يې خلاص کا
هيڅ اميد و بل طبيب ته زما نشته

## مثنوي

خواجه خود مشغول په نقش دايوان دی
دشورې په سبب کور له بيخ وَران دی
يو پير مرد له زنکدنه په ژړا و
له جها نه بيلده په واو يلاو
پيره زن يې چند رکړ په سر پورې
درد سر به داوس ورك شي خود به گورې
چې مزاج شي مختلف له اعتداله
نه اثر باندې دا و کا نه دسماله

## حکايت

## [۲]

له يوه زاړه نقل شوی دی، چې يوه جن يې په نکاح کړه[1] درسته شپه ورسره په خلوت کې ناست و، حکايتونه، نقلونه يې ورته عجايب غرايب کول، خوشحاله وله به يې، چې شايد موانست واخلي، وحشت پريږدي. يوه شپه يې ورته ووې: بخت دې ښه و، طالع دې بيدار دی چې په صحبت کې دجهانديده، گرم سرد آزموده ،

---

۱ج- وحجره بگل آراسته و به خلوت باا‌ونشسته و دیده و دل دراو بسته.

چې حقونه پيژني،شرط ددوستۍ په ځاى راوړي، مشفق، مهربان، قدردان شيرين زبان داخله شوې.

## بيت

په هر څه کې به دتاله خو يه ساز کړم
که هر څو راباندې ناز کړې زه به نياز کړم
که طوطا غوندې کښل خوراك شکر وي
شيرين ځان به مې هم ځارد تا تر سر وي

شکروکاره چې په لاس دڅوان کبرجن دماغي رانغلې، هرساعت به يې سپك ويل، په لږ تقصير به يې ډير وهل کول، هرځاى به کنبيناست، هرچا کره به ښملا ست . هره ورځ به يې نوى نوى يارنيوه، پتا پورې به يې تعلق دزړه چندان نه و.

## نظم

د وفا اميد به څه کړې له بلبله
چې هردم که آشنايې له هره ګله
ځوان که هرڅو ښايسته پري رخساروي
چې يې خوى دوفا نشته څه پکاروي

پيران روزګار په فضل په ادب کاندي په صحبت کې يې فايده ددين ددنيا حاصل شي، که يې نه زده وي څه ترې زده کا، که ناقص وي ددوى له مجلسه کامل شي.

## بیت

دهغه ناستی او لجه دی چې له تا په علم زیات وي
چې له ځان غونډې صحبت کړي دا صحبت درته آفات وي

په دا قسم مذکورونه يې ډېر ورته بیان کړه، گمان يې و شه چې وحشي زړه يې راته رام شه. ناګاه هغې مه روی آه سر دله پر درد سینی راوکیښ. وې ویل: دا هومره حکایتونه چې تا راته روایت کړه، دیوې خبرې سره چې راته دایې کړې ده، دعقل په تله مې وجو کل، نه برابرېږی، چې دځوانې ښځې په اړخ غښي لك شوي ښه دي، زوړ څښتن يې په څنګ کې ناست ښه نه دی.

## قطعه

چې له کته د ښبتن بې رضا پاڅي
له هغې ښځې تل جنګ وغوغا پاڅي
(په ورځ سل پایزاره ورکړه خوشوقتي کا
چې په وقت دایزاربند خوښه راپاڅي)[۱]
د همسا د درېدو يې څه مزه وي
چې له مزکې په قوت دهمسا پاڅي
(نه دې ځوان زړه کوي نه دی زوړ ځوانه
مخالف چې ځبله ورشي بلا پاڅي)[۲]

---

۱ـ ز.
۲ـ ز.

امکان یې چې دموافقت نه و، آخر یې تر مینځ مفارقت وشو، پس له عد ته په نکاح دیوه ځوان چې تند خوی،ترش روی و، نیست ګار، تلخ ګفتار، داخله شوه، که هر څویې جور جفالید له هم به یې ثنا دحق تعالی ویله، چې الحمدالله له هغه عذاب الیم خلاصه شوم په دی نعمت عظیم خلا صه شوم .

### بیت

که هرڅو یې ستمګار سرکش تندخویه

ستا جفا به په تندي څکوم خوش رویه

### قطعه

کښلی مخ جامې وریښمینې　　خوشبویي هوا هواس

وا ړه ښځو لره بویه　　دمرد خپله مردي بس

### قطعه

تاسره په اور کې زما سول ښه دي　　نه سیل د باغ او دبستان بې تا

بوي د پیاز و ستا دخولې په ما باندې　　ښه لګي تر بوی د مشکو ای بتا.

(تل به ستا نازونه زه په سترګو وړم　　باربه دې په شاخکوم که شي دوتا)[1]

## حکایت

## [۳]

شیخ وایې په دیار کې دبعلبك دیوه کهن سال کره میلمه وم، مال دولت یې فروان وو، یو فرزندیې و ښایسته، یوه شپه یې راته مذکور کاوه، چې زما په همه عمر کې بې له دې فرزنده بل

(۱) ز .

فرزند شوی نه و، دلته یوه ونه ده، زیارت گاه دخلق. هرڅوك په حاجت ور درومي، مراد مومي. ځو شپې تر هغه ونې لاندی به بیدار ناست وم، حق تعالی ته مې به زاري کوله، دا فرزند یې را ته عنایت کړه. آرویدل مې چې هغه زوی یې ورو خپلو رفیقانو ته و ې چې هغه ونه ما ته چاو بنیلی، چې ورغلی دعا مې وکړې چې دا پلار مې ومړي. وې ومې: سبحا ن الله پلار یې خوشحالي کا چې فرزند مې دانا دی، فرزند یې پیغورونه کاندي چې پلار مې زوړ فرتوت شه،له کاره ووت .

قطعه

د دنیا د پاره ځو ملکونه مړې
دخپل پلار په زیارت هیڅرې نه درومې
چې دپلار په حق تا هیڅ نیکي ونکړه
له فرزنده به ته څرنګ نیکي مومې

# حکایت

## [۴]

شیخ وایې یوځوان و، ډیر هوسناك چست وچالاك، لطیف خوی شیرین،زبان روزګاریې په عیش په عشرت و، خنده روی او خوش صورت و، په سبب دحوادث مفارقت تر منځ واقع شه، په ځوکاله ملا قات میسر نه شه، پس له مدته چې ولید شه، واده یې

کړی و، فرزندان يې پيدا شوي وو،له سابق احواله هيڅ ورپاتو نه وو. نهال يې د نشاط له بيخ لوښتی، دهوس ګل يې پژمرده، ساغريې دعشرت او ښتي،ومې پوښتيده چې دا څه حال دی؟ وې يې چې هلکان مې راوړه،هلك والی مې پريښ.

## نظم

دجهان ګردش يې سر کړ بې غروره
ګرفتار يې په اندوه کړ له سروره
خيال دماغ و دځوانۍ ورځنې تښتی
سريې و د ناتوانی په زنګون ښېنی
زراعت چې وقت يې راشی دريو دلو
حظ يې کله مومي سترګې له ليدلو
په پټي کې سبزه ښه تر ګلو نما ی کا
په پخوالي لکه خار زخمي دې پای کا
په زړ والي د ځوانۍ کارونه پريږده
لکه برګ د ريژيدو له غمه ريږده
مکړه نور لکه هلك لوبې با زۍ
نا ز طرب ظرا فتونه طنا زۍ
د ځوانانو خوښي کله زاړه مومي
پستنه تللي جويونه نه رادرومي

## قطعه

زړې ښځې سپين ويښته په لباس تورکړه
ځوانې ښځې ورته ووې په پيغور
که ځواني دې په ويښتو وه داخو تور شو
اوس بايده دي چې دې ځوان شي صورت نور
خولې ته بيا را وله سپين هموار غاښونه
بيا تازه د مخ گلزار کړه نرگس تور
بيا قامت لکه د سروې هسې سم کړه
په سبب چې د زړ والي د ې نسکور
کهل به بيا په مقام نه شې د کنځلو
غوړ ترې لاړ شه پاتو شويدي پوك سپور

## حکايت

## [۵]

شيخ وايي يوه روځ مې از روى جهل و نادانى په آوان ځوانى مورته سخته خبره تر خولې ووته. دا دل آزرده لاړه،په کنج کې کښيناسته، په ژړا کې را ته ووېل: هلك والى دې هير شه چې دا هسې درشتې کوې؟

## قطعه

څه ښه ووې مور و زوی جفا کارته
چې غلط په زور دليچو په خپل تن و
که دې ياد د هلك والي حقارت وي
ستا به ماته هسې کله سخت سخن و

## حکايت

## [۶]

يوه دير ينه سال ته چاووې چې ولی کورنه کوې؟ وې يې له زړو ښځو سره مې الفت نه کيږي. ورته يې ووې ځوانه ښځه وغواړه دولت مکنت لرې، هرڅه درته موجود دي. وې يې: دځوانو ښځو، چې زوړ يم راسره موٶدت نه کيږي.[۱]

## حکايت منظوم

## [۷]

د واده هوس پيدا د يوه زال شه
دولت مست کړ ځوانې ښځې ته يې خيال شه
ښايسته زيبا جينۍ وه ګوهر نامه
زريې خرڅ کړه مور پلاروړکړه کام ناکامه

---

۱ــ دلته د يو ترکي شعر او ديو فارسي شعر ترجمه نشته .

لکه رسم د وا د ه واړه يې وکړ
په راوړه يې و خپل کورته خاطر ښه کړ
چې ورځ تيره شوه هرڅوك په ځاى قرارشه
راغله شپه د دو مينو د راز وار شه
په خلوت چې مينه شوه ځبله ګرمه
دى له خيا له يا له نازه ياله شرمه
ده لاس وروړ وې يې مه اوړه لاس ماته
په دا هومره "مه" د شيخ همسا شوه ماته
په څو ورځې يې پيدا په كور كې جنګك شه
عاقبت يې دقاضي په كور آهنګك شه
كهن سال به وې چې كور يې زما وران كړ
د پلار كوريې په دولت زما ودان كړ
ښځې وې چې نفقه نه را كوينه
بيګناهه مې وهې هم مې ښكنځينه
دوى مشغول په خصومت سعدي داقال كړ
دمجلس عالم يې واړه پرې خوشحال كړ
چې لاسونه په لرزه د كهن سال وي
د ګو هر سو رى كول ورته محال وي
(دهجران به دى له هسې رنګك وصاله
په فراق سره خلاصيږي له جنجاله)[1]

---

۱ـ ز.

# اووم باب

# په بيان دتاثير دتربيت

## حکايت

## [۱]

ديوه وزير زوی و کودن، په حواله يې ددانشمند کړ، چې تعليم يې دعلم او دحلم او ادب کوه، مدت ډير تير شه، هيڅ اثر پرې نه کيده، آخر الامر استاد يې پلار ته جواب واستوه چې ستا فرزند عقل نه اخلي، امازه يې ليونی کړم.

### قطعه

په صيقل دصيقلي صفا نه مومي
په هر تيغ چې درآمد کړی مور چه وي
چې په اصل طبيعت په پوهه کند وي
چې خواري ورپورې کا هغه کچه وي

## قطعه

سپی که هر څو ددریا په اوبو وینځې
وچ نجس وه،چې دې تر کړ نجس تر شه
وخپل اصل ته رجوع دهر څیز کیږي
چې پکې دخره رګك و آخرقچر شه
تر بیت و ته قابل ا صل بایده وي
په بد ذات د تربیت کله اثر شه[1]



# حکایت

## [۲]

یوه حکیم زوی ته پند وایه چې ای زویه! سعی دهنر په زده کولوبویه، چې ملك دولت ددنیا اعتماد لره نه ښایي، زر په محل د خطر دي، که یې غل درځخه په غلا یوسي، که ظالم یې درځنې په رڼا یوسي، که په موافق یې د مراد وخورې زر به درځخه تمام شي، اما هنر چینه ده زاینده، او دولت دی پاینده، که هنر مند له دولته پریوځي هم یې غم نشته چې هنر خود بنفسه دولت دي. هنر مند هر چیرته په قدر په منزلت دی او بې هنر چې له مسنده پریوځي هر چیرې چې درومي آرزو مند دیو لقمې ګرځي، هم یې په خواری مومي.

---

۱ـ و : خر عیسی اگر به مکه رود          چون بیاید هنوز خر باشد

## قطعه

عادت شوی چې په خپل حکم راني وي
چې نور حکم په ده کاندي زنداني وي
ناز پرور د ښبتن نه کا بې دولته
یو دم نه مومي خلاصی له مصیبته

## قطعه

ناګاه پریوته فتنه دشام په ملك کې
واړه خلق یې هر لوري ته پریشان شه
روستایي چې آراسته په فضیلت و
مقرب د هغه ملك دسلطان شه
چې یې علم هنر نه و که اشراف و
په جلو کې دکم ذات سړي روان شه

## قطعه

که میراث غواړی دپلار علم یې زده کړه
په څو ورځې به تمام کړې دپلار مال
د دنیا دولت همه نقصان پذیر دی
د هنر د دولت هیڅ نشته زوال

# حکایت

## [۳]

یوله فاضلا نو تعلیم د بادشاه دزوی کوه. زجر تنبیه یې ډیر کړ، گاه گاه به یې بې محا با بې صرفې و واهه، یوه روځ شاهزاده حقیقت دخپلې بې طاقتۍ دپلار په خدمت عرض کړ، جامه یې لرې کړه، زخمونه یې دوهلو ورته ښکاره کړه، پلار یې ډیر برهم شه، استاد یې طلب کړ، ورته یې ووې: دا نور هلکان چې درعیت داحد الناس فرزندان دي، نه وهې،زجر کم کوې، زما د فرزندانو تنبیه زیات کوې، سبب او حکمت څه دی ؟ وې یې: سبب دادی، چې هر سړی ته لازم دي چې حرکت پسندیده کوي او بې اندیښې گفتار په خوله نه راوړي، اما بادشاهزا دگانو ته لا تر نورو لا زم تر دي. هر اقوال افعال چې له دوی صادر یږي هر ځوك یې خبر ې کا او دعوام الناسو قول فعل چندان اعتبار نه لري.

### قطعه

سل نا پسند ی که صادر شي له عوامه
نور عالم به څنې هیڅ نه وي آگاه
له یوه اقلیمه بل ته خبر ورشي
که غلط شي په خبره کې بادشاه

پس واجب دی معلم لره،چې تر نورخلق ( چې ارازل وي[۱] ) سعې په ترتیب په تعلیم د اشراف خلق ډیره کاندي، علی الخصوص بادشاهزادګان (چې ددوی نفع ضرر وعالم وته رسیږي.)[۲]

## قطعه

(چې بادشاه دملك بدخوی عالم بدخوی شي
خدای دې نه کاندي بدخوی بادشاه دچا
هربادشاه په حقیقت جهان پناه وي
ویران مکړه کر دګار پناه دچا)[۳]

## قطعه

چې یې ونشي ادب په هلك والي
په لوی والي پرې اثر نه کاندي پند
(تنګي نشته په مراد د استاد درومي
وچ لرګی وته یا اور دی یا بند بند)

پادشاه دده په جوابونو آفرین و رحمت باد ووې، خلعت و نعمت یې ورعنایت کړه ، پایه د منصب تر اول بلنده .

## نظم

(هر هلك چې جورنهویني له پلاره
نه زخمي د استادانو له ګلزاره

---

۱ـ ز .
۲ـ ز .
۳ـ ز .

بی ادبه زیست روزګار کا ناز پرورشي
ځو جفا ستم به ویني له روزګاره[۱]

# حکایت

## [۴]

شیخ وایي دمغرب په دیار کې مې یو معلم لیده په مکتب کې ناست،هلکان یې ترش روی، زشت ګوی، مردم آزار، نا پرهیزګار، چې په لیده به یې عیش د مسلمانانو بند شه، چې دسبق له ویلو به خاموش و، ځخو به زړه خورسند شه، یو ځو هلکان ورځخه ناست پاکیزه، یو ځو جونکۍ ورته ناستې دوشیزه، نه یې قدرت دخندا و، نه یې توان دګفتار، په غضب په جفا دده ګرفتار، دیوه مخ به یې په څپیړه شین کړ، د بل یې ساق په لښتو رنګین، پس له ځو ګاهه څه خیانت ورځنې ظاهر شه، ویې واهه له هغه ځایه یې وشړه، مکتب یې په بل یوه وسپاره، دیندار،پرهیزګار، پارسا نیك مرد،زغمونی،باربرد چې خبره یې په ضرور له خولې ظاهریده، هر فعل به چې سبب د چا آزار و په لاس په خوله ترې نه واقع کیده، دهلکانو هغه هیبت داستاد سابق له زړونو لاړ شه، ددویم خوی لکه د فرښتو هسې و، دوی واړه دیوان شول، په امید دده دحلم زده کړې علم و هیر شه، اغلب اوقات به یې په مکتب کې لوبې کولې،

۱ــ ز.

لاس به یې لګول، دتختې و بل به یې بهانه کړه، په سیند کې به یې لنبل.

## نظم

چې استاد د هلکانو کم آزار وي
هلکان به څوك په سیند څوك په بازار وي
(هلکان مریونه هاله ستا په لاروي
چې څپیړې یې په مخ په سر پایزار وي)[1]

پس له دوو هفتو مې بیا په هغه مسجد ګذر وشه، اول معلم یې بیا راوستلی و، وې مې: لَاحَوْلَ وَلَاقُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ بیا یې ابلیس ولې د فرښتو معلم کړ، دی خو مردود شوی و، یوه پیر مرد جهان دیده وار ویدل، وې خندل ویې وې :

## نظم

یو بادشاه فرزند مکتب لره روان کړ
په تخته یې مرقوم ده ته دابیان کړ
د استاد جفا په سترګو وړه پسره!
د مور پلار تر دعا داجفا ده غوره

---

۱ـ ز.

# حکایت

## [۵]

یوه بادشاه زاده[۱] ته میراث د ترونو تر شماره تیر ورسیده، فسق وفجوریې آغاز کړه په لار د شقاوت روان شه، نه و هسی ګناه چې له ده صادر نشه، هیڅ مسکرات نه و، چې د ی پر مسکر نشه، شیخ وایې چې ورته مې وې: دا دې څه پیشه واخسته، خرڅ په اندازه کوه، دخل په معنی آب روان دی. اما خرڅ په مثال لکه ژرنده، ډیر خرڅ کول هغه ته مسلم دي چې دخل معین لري.

### قطعه

چې دې نشته پیدا یشت خرڅ په اندازه کړه

دا وینا وایې ما نړګان په سرودونه

که په سر دکوهستان باران ونشي

وبه نه ویني په سمه څوك رودونه

بویه چې عقل ادب واخلي لهو لعب پریږدي، چې نعمت آخر شي، سختي به له روزګاره ویني، ندامت به هاله سود نه کا، دهغه څوان غوږ ونه په آواز د نی درباب درانه وو، دا زما ویل ورته هیڅ نه وو، بلکه زما په خبرو یې اعتراض وکړ، چې نن راحت پرینبول له

---

۱ـ پارسا زاده.

غمه د صبا دمحنت علامت دحماقت دی، او خلاف رای داهل بصیرت.

## قطعه

نیك بختان به خوري، خوروي تل به خوشحال وي
نه له غمه دصبا تنګدل ملا ل وي
څه ښادي کوه ای یاره دلفروزه
ګرفتار بد بخت ددهر په جنجال وي

زه اوس په مسند دفُتُوت ناست یم، لاس مي د مروت په خاص و عام وادي خبرې زما دانعامونو په هر لوري افشاء دي.

## نظم

چې یو څل په سخاوت په جود علم شي
روخ يې نه دی چې يې بند په چاکرم شي
زما اوس په جهان لاړ د مردۍ نوم دی
چې په بخل يې بدل کړم انصاف کوم دی

وپوهیدم چې نصیحت زما نه اخلي[1] ترك مي يې دصحبت ووې، مخ مي څنې وجار یوست،[2] عمل مي دحکما وو په قول وکړ، لکه ویلي دي:

## قطعه

که پوهيږی چې بدبخت به يې وانه وري
هم بایده دي چې نیکخواه دې کاندي پند

---

۱_ح: دم گرم من در آهن سرد وی اثر نمیکند.
۲_ ترک مناصحت گرفتم دروی از مصاحبت او بگردانیدم.

خیره سرپند ناشنو به زر ووینې
د نکبت زنځیر په غاړه په پښو بند
تل په غابښ دندامت ورغوي ژوي
چې يې نه منل ویل د دانشمند

پس له مدته مې ولیده تر هغه حاله چې زما تصور و، بد تر، خرقه يې په خرقه گنډله، لقمه يې ټولو له، دلسوزي مې دده په احوال ډيره وشوه، مروت مې نه لیده په داسې حال کې ملا مت پرې ویل، په زخم يې مالگه دوړول، هم په دا دوه بیته مې اختصار وکړ:[1]

## نظم

سفله نه کا په کمال کې د مستۍ
هرگز فکر، دزوال د تنگدستۍ
په بهار کې ونې واړه برنثار کا
تمام ژمی برهنه ځانونه خوارکا
(په هر څه کې اندازه ساتلې بویه
مرتبه د توسط وگڼه لویه)[2]

---

۱ـ پس باخود گفتم.
۲ـ ز.

# حکايت

## [۶]

يوه بادشاه زوی په اديب و سپاره چې دا په معنی کې ستا زوی دی، تعليم تربيت يې کوه، لکه دخپلو زامنو. وې يې: فرمان بردار يم، څو کاله چې تير شول هر څو استاد سعی دده په تربيت وکړه، فايده حاصل نه شوه، او نور فرزندان داديب، ښبنتن د فضل وبلاغت شول، بادشاه په دانشمند،چې استاديې و، غصه وکړه چې وعده خلاف شوې، وفا دې په وعده ونکړه، «دخپلو فرزندانو غوندې تا دده تربيت ونه کړ،»[۱] دانشمند غرض وکړه چې تربيت يکسان دی اما طبائع مختلف.

### قطعه

سپين اوسره واړه له کاڼيو پيدا کيږي
له همه کاڼيو سپين وسره نه وي اظهار
په همه عالم تابش دسهيل سم دی
يو څرمن کا او وړی بله ، بلغار

### بيت

«دمرشد و هر مريد ته سم ارشاد شي
تربيت يې موافق په استعداد شي»[۲]

---

۱ـ ز.
۲ـ ز.

# حکایت

## [۷]

یوه له بزرگانو مرید ته ازروی نصیحت وفرمایل چې: که تعلق دآدمي زاد لکه په رزق پورې دی ، په رزق رسووني پورې وی په مرتبه به دفرښتو رسیدلی و.

### نظم

چې نطفه وي دښښتن فضل هیر نه کړي
په امان یې په رحم کې له هر څه کړي
(پرورش یې د تا کړ په څو شانه
عقله شوې بیا مضغه بې استخوانه)[۱]
په رنگ رنگ یې استخوان درکې پیداکړ
اندامونه یې د تاکښلی زیبا کړ
بیا یې روح درته عطا عقل ادراك کړ
بیا اسباب یې درعطا دتا دژواك کړ
په داهومره مقامونو دې گذر شه
درحمت یې په هرځای دتا نظر شه
کم همته فکر وکړه عقل هوش
اوس به کله تا ښښتن کا فراموش

---

۱ ـ ز .

# حكايت

## [۸]

يوه اعرابي فرزندانو ته نصيحت وايه، چې اى زامنو! په قيامت به له تاسې پوښتنه دخوى دعمل شي، چې بد كه ښه دى، نه به پوښتنه دنسب شي چې څوك دى څه دى؟

### قطعه

دكعبې اطلس هرڅوك په ستر ګو مږي
نه په داچې اصل ښه لري نامي شه
يو څوګاهه په صحبت كې دعزيز و
دا عزت يې ځكه بيا موند ګرامي شه

# حكايت

## [۹]

دحكمت په كتابونو كې، راوړى دي، چې دلړم ولادت لكه دنور حيواناتو نه دى، بلكه لړمون دمور وخوري، ګېډه يې څير ې كا، ورځنې راوځي، تار په تار روان شي[۱] شيخ وايې چې دا نقل مې

---

۱ـ ح :و آن پوست ها كه درخانه گژدم ببينيد اثر آنست.

یوه ورځ دیوه بزرګ په خدمت ووې، ده وفرمایل چې زړه مې په صدق ددې نقل ګواهی لې چې هم هسې به وي، په هلك والي له مور سره دا سلوك وکا، ځکه چې دوی لوی شي دهر چا محبوب وي.

## قطعه

یوه پلار و خپل فرزندوته دا پند وړې
اي زما فرزنده یاد لره دا پند
(ځوك چې حق دحق دارانو په ځای نه کا
له هر چا به رسي ده وته ګزند
چې خصلت یې دوفا د مروت وي
په دولت ددین دنیا شي بهره مند
چې حرمت ته دخپل پلار په ځای رانه وړي
ستا حرمت به څرنګ کا د تا فرزند)[۱]

**مثل:** لړم ته چا وویل چې په ژمي ولې ورچنې نه راوځې؟ وې یې: په اوړي مې څه حرمت بیا مونده چې په ژمي هم راوځم.

# حکایت

## [۱۰]

دیوه درویش فرزند نه کیده، وعده یې کړې وه[۲] چې که خدای تعالی مالره زوی راکا بې له آغوستې خرقه نور هر څه چې

---

۱ـ هر که با اهل خود وفا نکند نشود دوست روی دانشمند.
۲ـ درویشی زن حامله داشت مدت حمل او بسر آمده ، درویش را همه عمر فرزند نیامده بود گفت.

زما په ملك كې وي واړه په فقراو نثار كړم، په وعده يې وفا وكړه، هر څه مال ومتاع نقد و جنس يې چې څه درلوده واړه يې په شكرانه د فرزند د زوو لو درويشانو لره وركړه.[۱] شيخ وايې پس له ډيره مدته چې د شام له سفره راغلم، په محله مې د هغه دوست گذر واقع شه، له احواله مې دده خبر واخست،چا راته وويې، بندي خانه شوى دى، په زندان كې پروت دى، وې مې: په څه سبب؟ وې يې:زوى يې خمر خوړلي وو، مست شوى و[۲] خون يې وكړو تښتيده، په توريې دى گرفتار شه، وې مې: دا بلا ده له خدايه په دعا په زارى غوښتې وه .

## رباعي

بار داره ښځه كه ځيني مارزيږي
ښه دى، چې زوى ځنې بدكار زيږي
ځان ته بلا شي مور پلار ته غم وي
زوى ومه زيږه چې ناهموار زيږي

## حكايت

## [۱۱]

شيخ وايې لا هلك وم خورد سال چې يو بزرگ مې وپوښتيده، چې علامت د بلاغت[۳] څه دى؟ وې وې: په كتاب كې

---

۱_ اتفاقاً پسر آورد درويش شادمانی كرد وسفره درويشان بموجب شرط بنهاد.
۲- و عربده كرد.
۳_بلوغ.

يې درى علامت راوړي دي: اول چې د پنځلسو کالونو شي. دويم علامت يې احتلام دى . دريم: ظاهر يدل دآب مني[۱] اما په حقيقت کې يوه نښه لري هغه داده چې په هر کار کې خوشنودي دحق تعالى په خپلې خوشنودۍ مقدمه لري، په هر چا کې چې دا صفت نه وي په نزدې دمحققانو بالغ نه دى.

## قطعه

چې يې ځاى شه په رحم کې ځلوينښت ورځې
له نطفې نه ترکيب شوى دا انسان دى
که يې علم عقل نه وي څهل ساله وي
سړى مه وايه هغه وته حيوان دى
جوا نمر د ي آ د ميت د ى
نه موقوف آدميت په دا صورت دى
ابوذ ر، ابو جهل د واړه آدميان وو
هر ګوره ډيرتفاوتونه يې تر ميان وو
څو دځمکې دآسمان په منځ کې وت دى
د سړي د سړي هومره تفاوت دى
سړي والى که په ږيره په دستار وى
داخو لا ښايسته کښلې په ديوار وى
ځنې کښلې په شنګرف ځنې په زرو
څوک له توره کاني ساز څوک له مرمرو

---

۱ـ (۱ـ آمدن موى زهار.

چې خالي دی له معنو په قدر خوار وي
په معنو دهر څیز قدر په مقدار وي
د انسان چې فضیلت مروت نه وي
یو حیوان دی لاحیوان ورځنې ښه وي
حیوان خو د حیوانیت و ته پیدا دی
دا انسان حیوان ښه بد څنې په دادی
که حجام دحجام زوی شي عیب کوم دی
شاهزاده چې حجام شي نحس دې شوم دی

# حکایت

## [۱۲]

یوکال نزاع ترمیان دحاجیانو پریوته، شیخ وایې زه هم له څو پیاده و سره حاضر وم، (دطرفین مو سره جنګ وجدل ډیر وکړ)[۱] دا دمو دفسق او دجدل ورکړ (دچا سر مات، دچا ږیره وکښلې، دچا ګریوان پاره، له قهره خاورې په مخ مبتلې)[۲] ناګاه یو کجاوه نشین اوریدل مې چې خپل عدیل ته یې ویل: عجب کار دی پیاده دحاج چې عرصه د شطرنج طی کا، فرزین شي، یعنې بهتر، اما پیاده دحاج چې بیا بانو نه پی کا، پر حسد پرکین شي.

۱ـ ز.
۲ـ ز.

## قطعه

دا پیغام زما بد خوی حاجي ته وکړه
چې دهر چا سره جنګ جدل شورو شردی
چې خپل بار وړي د هیچا آزار نه آخلي
حج تا وکړ، اما ښه تر تا ستا خر دی

# حکایت

## [۱۳]

دیوه خام ریش[۱] په سترګو درد پیدا شو، بیطاري لره ورغی، چې زما د سترګو دارو وکړه، بیطاري هغه ته وایي چې دارو د چار پایانو کاندي. بیطاري یې په سترګو دارو پورې کړه، چې د چارپایانو په سترګو یې پورې کول . خو چې دارویې په سترګو کې واچول هغه ساعت ړوند شه، خصومت یې حاکم لره یوور، حاکم ووې: په ده باندې هیڅ نشته، که دی خر نه وی، بیطاري لره به نه ورته. مقصود له دې حکایته دا دی چې هر څوک چې په ناآزموده کار باندې لوی کار وسپاري، آخر به ندامت وڅکوي، او په نزد به دهوښیارانو په حماقت منسوب شي.

## قطعه

د هر چا چې فکر صاف عقل تمام وي
لوی کارونه به نه سپاري په کمین

---

۱ ـ {ـ مردی (لندن نسخه) مردکی (پېښور نسخه).

بوریا باف که بافنده دی په دا څه شو
پرې به کله هوښیاران ووري وریښمین
(لوی کار کم ته، کم کارلوی ته نه جوړیږي
دابه نه کا چې یې فکر وي متین)[۱]

# حکایت

## [۱۴]

دیوه بزرګ زوی وفات شه، چاو پوښتیده چې په صندوق یې د قبر څه و کښنو؟ وې ویې: آیات دقرآن مجید، عزت تر دا زیات لرې. چې په هسې ځای باندی یې څوك وکښي چې البته څو مدت چې پرې تیر شي فرسوده به شي. خلك به پرې تیریږي[۲] دا کمال بې ادبي ده، که ضرور پرې کښل بو یه دا بیتونه پرې وکښئ.

### قطعه

چې سبزه به زرغونه شوه په بستان کې
په لیدو به یې څه خوښ شول زموږ زړونه
هسې رنګ به نور په وقت دبهار ګوري
چې زموږ له خاورو شوي وي ګلونه

---

۱ــ ز
۲ــ و سگان برو شاشند.

## رباعي

دالاله نه دي کښلی رُخسار دي
دا سنبل نه دي ویښته مشکبار دي
دانرگس نه دي دکښلیو سترگې دي
چې خاورې شوي پخپل خپل وار دي[۱]

## حکایت

## [۱۵]

دیو پارسا گذر په یوه ځای باندې وشه چې چا دنیا دار خپل خدمتگار تړلی و، تعذیب یې کاوه، ورته یې ووې: ای ځوانه ! حیاء وکړه له ځانه چې تا غوندې مخلوق یې دتا محکوم کړی دی او ستا یې په ده باندې فضیلت ینبی دی، شکر د باري تعالی په ځای راوړه دا هومره جفا پرې روا مه لره، شاید په قیامت دی تر تا بهتر وي، ته به وربورې شرمنده وې.

## نظم

په بنده باندی ډیر قهر غصه مه کړه
چې یې زړه باندې ښه کیږي هم هغه کړه
ما قبول کړه چې دتادرم خرید دی
ته په ده باندې خواجه دی دې عبید دی

---

۱- ز.

اما ته يې خالق نه، خالق يې بل دی
چې خلقت دهر اشيا له ده حاصل دی
(باندې مه کړه هومره حکم، غرور، زور
چې تر تا په جهان شته زوره ور نور
چرې نه څښتن هغه په تا و ګماري
دتا کار په بل ظالم باندې وسپاري
تاترده نه هغه لا په سختۍ بند کا
په ترل د تا دده خاطر خورسند کا
زور قوت دې که دفيل شي يادشير شي
چيرې نه چې خپل څښتن دې له زړه وهير شي
ته خپل ځان د کمترين رعيت شمارکړه
رعايا سره په خپل موافق کار کړه)[1]

په خبر کښلي راغلي دي، له سرورکائنات صلی الله عيله وسلم چې په قيامت به لوی خسره دهغه وي چې دده بنده په سبب دعمل صالح جنت لره روان کا، او خواجه يې په دوزخ کې په علت دفسق دعصيان کا .

## قطعه

په قيامت به ډير بنده آزار ووينې
چې خواجګان به يې بند شوي په زنځير وي
خواجګي منظوره نه ده بندګي کړه
ګدا يې دلته په عزت ذليل امير وي

---

۱ ــ دا پنځه شعرونه زياتي دي. په اصل کې ددیو په ځای دا يو شعر دی:
ای خواجه ارسلان و آغوش      فرمان ده خود مکن فراموش

# حکایت

## [۱۶]

شیخ وایې چې له بلخ دشام له قافلې سره همسفر وم، په یو ځای ورغلو، چې له حرامیانو یې ډیر خطر و، یو ځوان په طریق دبدرقه راسره مل شه، درشت اندام (شیرین کلام)[۱] نیزه باز و تیر انداز؛لس تنه بایده ووچې دده لیندۍ یې بیلو دی، اما سایه پرورده، گرم، سردیې د جهان لیدلي نه وو، نا آزموده کار و، تر جنگونو وتلي نه و، دتورو بریښنا د غشیو شرهاریې په سترگو په غوږو لیدلی آرویدلی نه و:

### بیت

(چې وبریښي سپینکۍ د لنډ پریو شرهارشي
یو یو زوی وي مور راوړی چې په ځای باندي قرار شي)[۲]

اتفاقاً زه او هغه ځوان په تله هم قدم شو ، په هره ونه چې به راغی له بیخ به یې وکښه، په هره لویه گټه چې به ورغی، له ځایه به یې ورغړه وله، دا وینا به یې ازروی تفاخر وویله:

---

۱ـ ز.

۲ـ ا ـ نیفتاده در دست دشمن اسیر          بگردش نباریده باران تیر

## بیت

مست هاتي وی یا مزری وی ځبله واز میلی زور
ددې نور و حیواناتو خو دښکاره دی زور شور[۱]

په دا حال کې موږ دواړه سره په لار تللو، چې ناګاه یو دوه تنه چې دیوې تیږې پناه ناست وو، را پاڅیدل، قصد یې زموږ دقتال وکړ، دیوه په لاس کې ډانګ و، دبل په لاس کې کاڼي. ځوان ته مې وویل: قضا نیولی په خپلو پښو قبر لره راغله وار دې دی، درنګ نه بویه.

## بیت

خود بخود خون ګرفته راغله و ګورته
ستا هم ډیره غلطي ده وخپل زورته

وه مې لیده چې دځوان اندامونه په لرزه شول، غشي لینده یې له لاسه پریوتل.

## نظم

نه هر څوك چې موشګاف قادرانداز وي
دحملې په وقت یې جنګ و ته وار ساز وي
ډیر په میان کې دغلیم چې چیرته کښیوځي
له هیبته یې وسله له لاسه پریوځي

آخر مو وسله او جامې ورکړې، امان موترې وغوښت، ځانونه موترې سلامت خلاص کړه.

---

۱ـ پیل کو؟ تا کتف و بازوی ګردن بیند شیر کو؟ به کف سر پنجه مردان بیند

## نظم

چې تیر شوی تر جنګونو آزموده وي
هسې ځوان و سرداري ته ستوده وي
که هر څو دلاور زړه لري پیلتن وي
چې لیدلی یې نه جنګ نه یې دښمن وي
اعتبار لره داهسې ځوان نه ښایي
په تنګسه دی له ځان سره نه بیایې

## حکایت

## [۱۷]

یو تونګر بچه و، دپلار په قبر ناست و، درویش بچه سره یې مناظره کوله چې صندوق زما د پلار سنګین، (دی په نقش په نګار ساز شوی.)[1] ستا دپلار په قبر خو یو څو اومې خښتې دي، خاورې پرې اچولې دي، ددرویش زوی ځواب ورکړ: څو ستا پلار له هومره درنو کاڼیو راوځي، زما پلار به په جنت کې داخل شوی وي.

## رباعي

(مرګ یې آسان وی چې سبکبار وي
کوچ د درونډ بار یو هرګور دشوار وي

---

(۱) و کتابه، نګین، و فرش رخام انداخته و خشت فیروزه بکار برده.

مرګ د فقرا و تمام راحت دي
مرګ د چا سخت وي؟ چې دنيا دار وي(۱)

# حکايت

## [۱۸]

شيخ وايي : يو بزرګ مې وپوښتيده له معنى ددې حديث: "اعدا عدوكَ نَفسُكَ اَلتى بين جنبيكَ،" وې يې: په حکم ددې چې هر چې دښمن وي احسان ورسره وکړي دوست شي، مګر نفس، څو له ده سره نيکي او مدار کيږي ده ده طغيان و مخالفت زياتيږي.

### قطعه

دفرښتو په خوی سړی په لږ خوراك شي
چې ډير خوري يا بهيمه شي يا جماد
دهر چا چې مراد پوره کړې ستا تابع شي
مګر نفس چې پوره مشه ده ده مراد

---

۱ـح:- و در خبر است که "موت الفقرا راحة" درویش چیزی ندارد که بحسرت بگزارد.

قطعه

مرد درویش که باربتم فاقه کشید
بدر مرگ همانا كه سبکسا ر آید
وآنکه در دولت و درنعمت و آسانی زیست
مردنش زین همه شک نیست که دشوار آید
بهمه حال اسیری که ز بندی برهد
خوشترش دان زاسیری که گرفتار آید

# حکایت

## [۱۹]

(دشیخ رحمة الله علیه دیوه مدعي سره مجادله واقع شوه، په بیان د تونګری ددرویشی[۱] شیخ وایې یو مې ولیده ددرویشانو په صورت، نه ددوی په صفت چې په مجلس کې ناست وه، دفتر یې د شکایت آغاز کړی و، له توانګرانویې خبره په دا مقام رسولې وه چې د درویشانو لاس د قدرت نشته، دتوانګرانو پښې دارادت نشته

### بیت

چې کریم عالي همت دی ورځخه نشته درم

چې ځښتن دډیر دولت وي همت نه لري کرم

داخبره په ما[۲] سخته ولګیده، وی مې: ای یاره!(یو زمان توقف وکړه، ژبه بند کړه، زما خبره غوږ باسه)[۳] تونګران دخل دمسکینانو دی، ذخیره دګوشه نشینانو، مقصد دزایرانو، پناه دمسافرانو، محنتونه، مشقتونه دسودا ګری دنوکری ددهقانی په ځان اختیار کا، راحتونه فراغتونه ددوی په دولت نور و ته حاصل شي، همسایه ورځنې خشنود، اقارب ورځنې رضا مند.

---

۱ـ دا عبارت په اصل نسخو کې په طور د عنوان لیکلی شوی دی.

۲ـ ح :- ( مرا ) که پرورده بزرگانم.

۳ـ ز.

## نظم

تونګران دی چې وقفونه مهماني کا
سرسایه زکوة عتاق او قرباني کا
(پل مسجد کوهي دلارې ښه سرایونه
ساز وي د خدای دپاره کا خر څونه
د غازیانو دغزا اسباب دوی جوړ کا
دحاجیانو په خدمت سره زړه سوړ کا)[1]
ته به کله ورسیږې د دوی کار ته
ته ددوی په بد ویل بد شوی هوښیار ته
دوه رکعت لمونځ ادا،په سل وسواس کړې
له غروره کښیني ځان افضل الناس کړې

که قدرت وجود دی، که قوت دسجود ، تونګرانو ته موجود دی، که پاکیزه پوشاك دی که لطیف خوراك دی، ددوی ته میسر دی (هغه چا سره چې غم دځان داولا د د پوشاك خوراك و يعبادت به يې کله په حضور دزړه وي.)[2]

## قطعه

زړه تر سل غمونو لاندې په شپه څملی
چې صبا چیرته حاصل داولاد قوت کا
(تونګر شاکر په جمع زړه ولاړوي
درسته شپه طاعت وحی لایمُوت کا)[3]

---

۱ـ ز .

۲ـ (ـ و قوت طاعت در لقمه لطیف است و صحت عبادت در کسوت نظیف.

۳ـ (ـ مورگرد آورد به تابستان تافراغت بود زمستانش

معلوم دی[۱] چې له تهی دسته به څه خیر کیږي، او له پاشکسته څه سیر، فراغت له فاقې سره نه یوځای کیږی، جمعیت له تنګدستۍ سره صورت نه تړي، یوه تړلی تحریمه د نماز خفتن، بل په زیرمه په فکر دخوردن، کله سره برابر وي.

## بیت

یوپه جمع زړه دحق په ذکر مشتغل

بل دقوت په فکر پریشان ګرځه تنګدل

مثل[۲] دی دعربو: «اَعُوذُ بِااللهِ مِنَ الْفَقرا لُمکَبْ وَ مَجاورَةِ الَّذِیْ لاَیحُبِ» په خبر کې راغلي دی: اَلْفَقر سِوَادُ الْوَجْهِ فِي الدَّارَيْنِ، وي يې: دا د اوریدلي دي، هغه د نه دی اوریدلي، چې فرمایلي دی صلی الله علیه وسلم: اَلْفَقَرِ فَخْرِیْ، وې مې: خوله پټه شه، مراد له دې فقر هغه فقیران دي، چې په قضا دحق راضي دي (تر شته په نشته خوښ دي.)[۳]

## بیت

(چې په نشت ددنیا خوښ په شته دلګیر وي

دهغه فقر ښایې وا عتبار ته)[۴]

---

۱ـ ح:- از معده خالی چه قوت آید و از دست تهی چه مروت زاید.

۲ـ پس عبادت ایشان بقبول اولی ترکه جمع اند و حاضر نه پریشان و پراگنده خاطر اسباب معیشت ساخته و باوراد عبادت پرداخته.

۳ـ و تسلیم تیر قضاء.

۴ :

نه هغه چې خرقه یې د ابرار واغوستي وي، او ادرارونه دظالمانو خوري.

## رباعي

ای چې پټ عیب هنر څرګند لرې
طبل خالي یې آواز بلند لرې
(رنګ منظور نه دی مزې پکار ده
که رنګ دسیب لرې دحنظل خوند لری)[1]

داخبره[2] چې مې وکړه، درویش بی طاقته شو، جلب یې د تحمل له لاسه خلاص شو، تیغ یې دژبې دخولې له میانه راویوست، پریشان یې ووې: [3] چې دا څه مناسب دی تا لره چې هومره مدح او صاف داهل دنیا و کوې، ګویا خو هم دوی درنځونو تریاق دي، یا کنجي دخلق دار زاق دی، اهل دنیا څه دی متکبران دي؟ مغرور، له خلقه، نفور مشغول په مال په نعمت، دحق تعالی له یاد و په غفلت[4] پریو تلي په چاه کې دجاه (درانیولو لاس یې اوږده، دورکولو کوتاه، لکه ښځې په رنګا رنګ جامو آرایش دتن کا، لکه

---

۱ـ ر ـ ای طبل بلند بانګ و در باطن هیچ — بی توشه چه تدبیر کنی وقت پیچ
روی طمع از خلق به هیچ ارمردی — تسبیح هزار دانه بردست مپیچ

۲ـدلته د اوږد عبارت حذف شویدی . ممکنه ده چې د کاتب نه پاتې شوی وی. ولې دغه عبارت دکالج او داکیدمی دواړو قلمي نسخو کې نشته .(دلته په چاپی نسخه کې دلمن لیك متن نه لوستل کیږی ځکه را نه وړل شو. مهتمم)
۳ـ اسپ فصاحت درمیدان وقاحت جهانید و بر من دوانید.
۴ـ ز .

چارپايې يا خوردن کا يا خفتن کا، حلال مال ددوی چيرې دی، چې خيرات يې مقبول شي، چې دروغ خوشامد ورته کيږي، خوشحال وي، په رښتيا خبره ملول شي.)[۱] علماو ته نظر په حقارت کوي، وايي حريصان[۲] د ي. فقر او ته چې ورځنی سوال وکا، جواب يې په سفاهيت وکا، (چې بی نمازان فاسقان دي. ورکړه يې هم په هغو عالمان وي چې ددوی مداهنت کا، خيرات يې هم په هغو فقيرانو چې ددوی ستاينه مدحت کا، بتر تر واړو ځان ښه گڼي)[۳] دحکيمانو له قوله بی خبر چې ويلي دي هرڅوك چې په طاعت له نور کم وي په دولت زردار په صورت تونگر دی، په معنی خوار( دولت هغه دی چې په آخرت پکارشي په دنيا کې به څوك تر قارون دنيا دار شي.)[۴]

## قطعه

(که هر څو يې سيم و زر انبار انبار دي
چې يې گنج دعبادت نه وي نيستگار دي
چې نبي پناه له فقره په خدای غوښته
هغه فقر د طاعت ، نه د دنياردی)

## قطعه

ای چې زړه لرې ککړ په غير و مينو
په ظاهر لباس زاهد عارف په خوله يې

---

۱_ز .
۲_گدايی.
۳_و_بفرت مال که دارند و غيرت جاهی که پندارند بر تر از همه نشنيد و خود را بهتر از همه شناسند ، نه آن در سر دارند که سر بکسی فرو آورند.
۴_ز .

زر دانه تسبيح په ګوتو مه جار باسه
مخ له خلقه وجارباسه که ميړه يي[1]

وې مې مذلت ددوی روامه لره، مذمت يې ډير مه وايه ښتن دکرم دي، وې يې غلط دې ووې: بنده ددنيار د درم دي، څه فايده که اوره وي چې نه وريږي (که اوبه دي چې څوك پری نه خړوبيږی)[2] توان يې څه پکار چې ناتوانا نو پکار نه شي، دخدای د پاره چا سره قدم نه ږدي، بی منته دچا په لاس درم نه ږدي، مال په مشقت ټول کا په خست يې وساتي په حسرت يې پريږدي، حکماو وويلي دي: زرو سيم دليم له ځمکې هاله راوځي چې دی په ځمکه ننه ووځي.

## قطعه

(په معنی بخيل جندره دخپل مخزن دی
عاقبت به دا جندره کا اجل ماته)[3]
خزانه به دده نور حريفان يو سي
بی محنته بی کوشه بې آفاته

ورته مې ووی، هيڅوك په بخل دنعمت دخښتنو خبر نه شول، مګر په علت دګدايې هر څوك، چې طمع پريږدې بخيل سخي

---

۱_ په اصل کې ددی دواړو قطعو په ځای دا شعر دی:
ګربی هنر بمال کند کبر بر حکيم کن‌خوش شما ر اګر ګاو عنبر است
۲_ ز.
۳_ا_برنج و سعی کسی نعمتی بچنګ آرد.

پرې برابر شي، محك پوهيږي چې زر مغشوش دی يا خالص[۱] گدای پوهيږي چې فلانی شخص ممسك دی (فلانی جواد و مخلص)[۲] و ې يې په تجربه درته وايم چې دربانان غليظ او شديد په دروازه کې ناست لري، ښه عزيز خلق ورشي بارنه مومي، ده وته دورتلو لار نه مومې،ورته ووايې دلته څوك نشته، په حقيقت کې خورښتيا وايي:

## بيت

د هر چا په علم ورکړه ښه همت عقل رای نشته
ښه ځواب يې دربان ورکا چې خواجه ددې سرای نشته

وې مې: هم يې په سبب د گدايانو د طامعانو له لاسه چې په ځان شوي د ي دربانان يې کښينولي دي، که څوك خواست لره نه ورتلی، رقعه يې ورته نه کښلی، دوی به له چانه پتېدل. محال دعقل دی، چې حريصان د چا په ورکړه ماړه شي، گدايان له سواله ساړه، که دُرشي ريگ د بيابان-ماړه په نه شي گدايان.

## بيت

حريصان به ماړه نشي له درم
لکه چاه چې نه ډکيږی له شبنم

---

۱ـ ۱ـکه زر چيست.
۲ـ ز .

(که هر ځو تلخي ويني سختي ځکوي، لکه مګسان ورپريوځي)[1] حلال حرام نه ګوري.

## قطعه

که سپی وولي په لوټه ځوك له ورايه
له شادی پری حمله کا چې استخوان دی
جنازه که په نظر دګدای کښيوځي
له حرص ګمان و کاندي چې خوان دی

اما دولتمندان له ديو کارونو محفوظ دي،( په خپل کور ناست محفوظ)[2] هر ګز دي ليدلي دي، چې ددولتمند لاس چا پرې کړی دی، چې سارق دی، يا يې دچا پرده دعصمت څيرې کړې ده ؟ کفن يې له قبره وکښلی دی؟ مګر نيستګار ښه پهلوان مزری ځوان په سبب دلوږې دچا کور ماتوي، ونيو شي،ګردن يې لکه د سپي وواهه شي، نفس آماره چې مراد خپل طلب کا، موجود څه نه وي، چې هغه مراد يې پوره شي، خواه ناخواه سری وبلا ته واچوي، که سارقان دی، که قماربازان دي، که ټګان دي، که کفن کشان دي، که کيسه بران دي، واړه خواران تهي دستان دي، يو مفلس چا له يوې بهيمي سره په قبيح حالت وليده، شرمساري ورورسيده، چې واهه يې هم دا به يې ويل چې ای مسلمانانو ! لاس مې دنکاح نه رسي، صبر کولی نه شم، معذور مې کاندئ، جمعيت آرام حق

---

۱-(۱ـهرکجا سختی کشيده و تلخی چشيده را بينی. خود را بشره درکار های مخوف اندازد واز توابع آن نپرهيزد. و از عقوبت آن نه هراسد....

۲-(۱ـ و بحلال از حرام محفوظ.

تعالی توانګرانو لره ورکړي دي، دوی ورځنۍ په امان دي، ښه ښايسته صورتونه چې حلال نکاح ورته ميسر وي څه ضروري دي چې التفات به ناروا فعلونو ته کوي. ډير ستر خلق په سبب د نيستۍ له عفته وتلي دي، لوږه، خواري ډير نيکنام زشت نام کا حاتم طايي که صحرا نشين نه وی، دګدايانو له لاسه به بيچاره و، په عالم به يې ګريوان پاره و، درويش ووې زه ددې په حال رحمت لرم، ځکه دا وايم. ما وې: په مال ددوی حسرت لرې، په دا سبب دا وايې، په دارنګ ګفتار، زه او دی ګرفتار، چې ده به پياده راوړاندې کړ ما په يې دفع کوله، چې ما به شهرخي ورکړه، دی به په غصه شو، آخر يې ترکش خالي کړ، دليل يې پاتو نشه، ذليل مې کړ.

## رباعي

څوك چې زده کړ ي خبر کا ندي
نه چې سپر واخلي دده دوړاندې
دکو ټ دننه سړ ی څو ك نشته
خا لي و سلي دي را آ و يزاندې

نور يې زبان درازي پريښوه، دست اندازي يې آغاز کړه، دی زما ګريبان ګير شه، زه دده ريش ګير. ښکنځل يې راته وکړل، بيهوده مې ورته ويل، خلکو راپورې خندل. مثل دی "پردی جنګ نيم واده وي."

## قطعه

ده په ما لاس لګولي ما په ده وو
ده ګريوان زما نيولی ما يې ږيره

سرتور دواړه محكمې لره روان شو
چې قاضي ته به داحال وايو په څيره

**القصه:** (قاضی لره ورغلو احوال مو ورته طرفين بيان كړ)[۱] قاضي سر په ګريبان دفكر ننه يوست، پس له مدته يې سر پورته كړ، ويې ويل: ای چې په توانګرانو دې ثنا ويله، په درويشانو دې جفا كوله، زده كړه و پوهيږه هرځای چې ګل وي هورته خار وي، هر ځای چې ګنج وي هور ته مار، چې شراب وي خمار ، هورته چې درشهوار وي، نهنګ مردم خوار وي، (ددنيا له عيشه لذت سره دمرګ تلخي دقبر د مارانو چيچل لوړه تنده قبلول هاله بهشت لره ورتلل)[۲].
(هسی رنګ په تونګرانو كې هم حرصناك شته او هم صبور.)[۳]

## نظم

(كه همه خلك په پوهه كې يكسان وی
بايده وو چې حكيم هر يو انسان وی)[۴]
كه ږلۍ غوندې پر يوان په جهان درومي
بازارونه بايده وو، چې ترې پر وی

---

۱ـ(۱ـمرافعه اين سخن پيش قاضی برديم و بحكومت عدل راضی شديم. تا حاكم مسلمانان مصلحتی بجويد و ميان توانگرن و درويشان فرقی بگويد. قاضی چون حيلت ما بديد و منطق ما بشنيد.

۲ـ(۱ـلذت عيش دنيا را الدغه اجل در پس است و تعيم بهشت را ديواز مكاره درپيش.
بيت.

جور دشمن چه كند گر نكشد طالب دوست گنج و مار و گلو خارو غم و شادی بهم اند

۳ـ(۱ـ همچنين درزمره تونگران شاكر اند و كفور و درحقله درويشان صابر اندو منجور

۴ـ ز .

مقربان دحق تعالی تونګران دی درویش سیرت[۱] بهترین دتونګرانوهغه دی چې غم ددرویشانو خوري. بزرګترین ددرویشانو هغه دی چې له توانګرانو امید قطع لري،پس یې مخ له ما وجار یوست، درویش ته یې ووې: ای چې وایي تونګران مشغول په مناهي دي، مست په ملاهي، بعضې هم دغه هسې دي لکه ته وایې. قاصر همت، کافر نعمت دنیا کیږدي نه یې خوري، نه یې ورکوی، (په حسرت یې پریږدي)[۲] ددرویشانو له احواله غافل که څوك له لوږې مري پروا دار نه وي[۳] وایي:

## قطعه

که نور خلك له خوارۍ خراب هلاك شي
نه په چایې دزړه رحم نه تپاك شي
که تمام جهان دنوح په طوفان غرق شي
دهیلیو له طوفانه کله باك شي

اما بعضې تونګران دي چې خوان یې د نعمت عام غوړولی وي، دوست دښمن یې له دولته محفوظ وي، طالب ددین ددنیا دمغفرت، (او دعزت دنیا یې مزرعه داخرت کړې وي، یایې له ځانه سره وړې وي.)[۴]

---

۱_ح : و درویشان اند تونگر همت.

۲_ ز.

۳_ اگر بمثل نبارد و یا طوفان جهان را بردارد با عتماد مکنت خود از محنت درویش نپرسد.

۴_ ز.

## بیت[۱]

(زرزبون سړی ته بد دی نه چې بد دی وښه ځوان ته
وقارون ته زَر بلا شول نه بلا شول سلیمان ته)[۲]

قاضي په شرح بسط احوال دفقیرانو ددنیا دارانو بیان کړ، موږ دواړه سره رضا مند شوو از روی تدارك مو ځبله قدم بوسي وکړه، سره بغل ګیر شو، ختم دخبرې په دا وشه :

## قطعه

(دشکایت دفقیری مه کړه درویشه
پرې شاکر شه که دې توان نشته صابر
له کفرانه پستنه اوسه تو نګره
خو ره خور وه باندې صابر اوسه شاکر)[۳]

---

۱ـ ددی نه وروستو په اصل کې څه عبارت دی چې سوری پکې دخپل ممدوح صفت کړی دی.(په موجوده چاپي نسخه کې نه لوستل کیده، نوځکه هغه فارسي متن رانه وړل شو، (مهتم)

۲ـ ز.

۳ـ مکن زگردش گیتی شکایت ای درویش   که تیره بختی، اگر هم برین فسق مردی
تونگرا چو دل دوست کا مرانت هست   بخور بخش که د نیا و آخرت بردی

# اتم باب

# په بیان دادبونو دصحبت

## حکمت

## [۱]

مال دعمر دآسایش دپاره دی، نه عمر دمال د ټولو لو دپاره، چا یو عاقل و پوښتیده چې نیك بخت څوك دی؟ بد بخت څوك ؟ وې یې: نیك بخت هغه چې وخوري، یوسي. بد بخت هغه چې ومري نور یې تر ې یوسي.

### قطعه

نمونځ هر گز وربانديې مکړه هیڅکاره و
پریږده هسې یې بې نماز په گورکې کښیږدي
چې دنیا په مشقت کاندي حاصله
ترې وانه خلي فائده هسې یې پریږدي

# حکمت

## [۲]

موسی علیه السلام،قارون (علیه اللعنت)[1] ته ډیر نصیحت کاوه چې اَحسِن کَمَا اَحسِنَ اللهُ اِلَیکَ. یعنې احسان کوه لکه حق تعالی احسان کړی له تا سره. نه یې اوریدل،اوریدلی به دې وي چې څه یې ولیدل.

### قطعه

خیریت ددین دنیا که پرې حاصل کړې
پکار هاله ستا دینار شي ستا درم
که دې زړه وي چې بهره له زرو واخلې
پرهر چا باندې عطا کوه کرم

دعربو یو مثل دی جُد وَلَا تمنُنَ لِاَنَّ اَلفَائِدَةُ اِلَیکَ اَلعَایِدَةُ.
یعنې: ورکوه،بخښه،منت په چا مه ږده، چې نفع درته بیا ورسي.

### قطعه

سخاوت په مثال څه دی میوه داره شجره
چې منت ورسره مل کړې ویخ یې سکنې په اره

---

۱ـ ز.

## رباعي

شکر دخدای کړه چې توان يې درکړ
خيرات دې ځکه دفقير ورکړ
(تو نګر به کله اد اد شکر کا
چې بل فقيرشه دی تونګرکړ)[۱]

# حکمت

## [۳]

دوه تنه ومړل، رنځ يې بې فايده وځکوه: يو هغه چې مال يې جمع کړ، پکاريې نه شه، دويم هغه چې علم يې زده کړ عمل يې ورباندې ونه کړ.

## قطعه

که په علم کې هر څو تحصيل تمام شي
چې عمل ورباندې نه کا ناداني ده
کتابونه باندې کښلي دي يو خردی
په نصيب ئې سخت عذاب و پښيماني ده[۲]

---

۱ _ منت منه که خدمت سلطان همی کنم　　منت شناس از و که بخدمت بداشتت
۲ _ح: آن تهی مغز را چه علم و خبر　　که برو هيزم است يا دفتر

## قطعه

(چې عمل يې خپل علم باندې نه وي
لا بتر تر جاهلا نو د انشور دی
که په خره باندې ځوك بار کا کتابونه
هيڅ بزرګی به يې ونشي خر خو خردی)[1]

## حکمت

### [۴]

علم دعمل د پاره دی ؟ نه دجاه، دپاره ددنيا دټولولو .

### بيت

وسيله چې ددنيا علم عمل کا
دنيکۍ خرمن يې ساز کړ اور پرې بل کا

## حکمت

### [۵]

عالم نا پرهيز ګار ړوند وي، مشعله دار. يعنې دی ترې فايده نه اخلي،نور ورځنې مستفيد شي.

۱ـ ز.

بیت

(هر عالم چې متقی پرهیزګار نه وي
وړانده و ته چراغ څه په کار نه وي)[۱]

## حکمت

## [۶]

ملك له خردمندانو جمال مومي ، دین له پرهیزګارانو کمال، بادشاهان محتاج د خردمندانو دي، نه خرد مندان محتاج ددوی.

قطعه

زما پند دزړه په غوږ وواوره بادشاه !
سودمند تا وته هیڅ نشته له دې پنده
خردمند و ته سپارل د عمل بویه
که هر څو نشي عمل له خرد منده

## حکمت

## [۷]

دری څیزه بې درې څیزه پایدار نه وي: مال بې تجارته، علم بې درسه، ملك بې سیاسته .

---

۱ـ (۱ـ بیفایده هر که عمر درباخت    چیزی نخرید وزر بینداخت

## قطعه

ویل هور ته په نرمی په لطافت کړه
چې صادر شي له اصیل ګناه یو ځله
ځای ځای کار ترخه دارو کا ترخه بویه
ګل قند نه بویه هغه ته بې حنظله

## حکمت

## [۸]

رحم کول په بدانو ستم شي، په نیکانو، عفو کول له ظالمانو ظلم کیږی، په مظلومانو .

## رباعي

(ګوره نن ګانده روزګار پسو کیږي
نیکي له بدو بدي له ښو کیږي
چې ظالمان وي بد کار مردار وي
دخلقو مینه هم په هغو کیږي)[۱]

## بیت

د بدذاتو تربیت غریب نوازه
مکوه که کړې بلا به شي درسازه

---

۱ـ ز.

# حکمت

## [۹]

دباداشاهانو په مهربانۍ باور نبويه، نه په خوش آوازۍ دهلکانو اعتماد. د هغه په لږ څه مهر په قهر بدل شي. ددوی آواز تغير شي يا په خوب يا په باد.

## قطعه

(د بادشاه په مهر مينه غلط مشه
نه دوی رګ لري له چانه نسبتونه)[۱]
په هغې معشوقې څه باور دکړو دی
چې په هر لوري ياران لري زرګونه

# حکمت[۲]

## [۱۰]

(هر راز که دې رضا وي چې پټ وي هيچاته مه وايه چې هيڅوك ستا په راز ترتا مشفق تر نشته، اګر چې يار دې وي دهغه به بل يار وي).

## قطعه

خاموشي دراز ساتل سړي ته بِه دي
چې راز ووايې بيا وايې مه يې وايه

---

۱ـ ز

۲ـ ح- هر آن سری که داری بادوست دربیان منه اگر چه دوست مخلص باشد چه دانی که وقتی دشمن گردد و هر گز ندی که توانی به دشمن مرسان که باشد وقتی دوست گردد.

چې اوبه په جوي کې راشي بندیې ګران دی
بویه دا د چینې سر بند شي له ځایه[۱]

# حکمت

## [۱۱]

ضعیف دشمن چې اطاعت قبول کا دوستي ظاهر وي، مقصود یې دا وي چې په دشمنۍ کې قوي شي. هوښیارانو ویلي دي: په دوستۍ ددوستانو اعتماد نشته، په تملق د دشمنانو کوم اعتبار.[۲]

### بیت

ددې وقت دوستان بتر له دشمنانو
کوم اعتبار په دشمنانو دی دوستانو

### قطعه

وژنه هېڅ صرفه پرې مکړه چې لا لږ دي
چې داور لنبې لا نه دي ډېر ې بلې
تر هغه پخوا چې دی لینده په ژۍ کا
د غلیم وینې ته کړه په ځمکه تلې

---

۱_ح:-" سختی درمیان نباید گفت کان سخن بر ملا نشاید گفت"

۲_ج_"وهر که دشمن کوچک را حقیر شمارد بدان که اتش اندک را مهمل گذارد»

# حکمت

## [۱۲]

د دوو دشمنانو تر منځ هسې خبره کړه چې که دوستان شي ته يې تر منځ شرمنده خجل نشې

### نظم

جنګ ددو تر منځ په مثل د آتش دی
سخن چین بدبخت تر منځ هیزم کش دی
دا هغه سره بیا خوش کاندي بد زړونه
تر میان تور د سخن چینو شي مخونه
چې ددوو تر منځ بل اور د عداوت کا
ما اور بل په خپله خو نه په محلت کا

# حکمت

## [۱۳]

هرڅوک چې ستا له دښمن سره صلح لري تا سره يې خیال ددوستی نشته.[۱]

---

۱ـ ۱ـ "هرکه با دشمنان صلح میکند سر آزار دوستان دارد"

## بیت

دهغه له دوستی پریو نیځه لاسونه

چې دشمن سره دې کاندي پیودونه

# حکمت

## [ ۱۴]

چې په دوه کاره کې متر دد شي هغه کار اختیار کړه چې له آزاره لري دی.

## بیت

که عمل کوې په عقل فرهنګونه

چې څوك صلح غواړي مکوه جنګونه

# حکمت

## [ ۱۵]

چې کار په نرمی[۱] ترسره کاوه شي، نه بویه چې ځان په خطر کې اچاوه شي، عرب وایې "آخِرُ الْحِيَلِ اَلسَّيْفُ."

## بیت

چې تر واړ و حیلو کار دسړي تیر شي

له هغه پسه ډلاس توري له ویر شي

---

۱ـ به زر

## حکمت

## [۱۶]

هر څوك چې بد ووژني خلق له بلا خلاص کا، دی له عذابونو .

### بیت [۱]

هیڅ صرفه پرې مکړه وژنه مار لړم
په دوی رحم ، ستم کیږي په آدم

## حکمت

## [۱۷]

نصیحت له غلیمه اروېدل روا دي، قبلول خطا، چې په خلاف دده ویلو کار کول عین صواب دی.

### نظم

په ویل چې ددشمن کوي کارونه
په هغو باندې پریو ځي نا تارونه
سمه لار که غلیم ښیې پرې مه ځه
دکړې لارې په لورې درومه خوځه

---

۲ـ ح : پسند ید است بخشایش و لیکن منه بر ریش خلق آزار مرهم

# حکمت

## [۱۸]

خشم زیات ترحده کول و حشت راوړي او لطف بې وقته دهشت وړي، نه هومره غضب درشتي بویه چې خلك ورځنې ګریزان شي ، نه هومره نرمي چې ګستاخ دې په ځان شي.

### نظم

درشتي نرمي د دواړه موافق وي
چیرته داغ چیرته مرهم ږدي چې حاذق وي
(کم ظرفان په لړه ویره کې زبون شي
چې زایله ځنې ویره شي افزون شي
په محنت کې ځان ګیدړ کاندي یا تروړی
په راحت کې پړانګ دتورې یا دتوری
الا مان له هسې شاه له هسې خانه
پیدا مشه قبیله کا خپله ورانه)[۱]
مه بد خوی شه چې ویزار درځنې خپل شي
مه داهسې چې زړه ور درباندې بل شي
(چې په ځای دګلو ګل شي دخار خار شي
مور وپلار د تر هغو ځوانانو ځار شي)[۲]

---

۱ـ ز.
۲ـ ز.

شپانه وویل و پلار ته خر د منده
سرفراز مې کړه مفید له شاهي پنده
وې يې زويه مهر کړه په خلق باندې
نه شر مخ چې حملې په رمه کاندي

## حکمت

## [ ۱۹ ]

دوه تنه غلیمان دخپل ملك دخپل دين دي: يو حاکم بې حلم بل زاهد بې علم.

### نظم

( هر حاکم چې زغمل نه لري زر زغلي
رعیت یې په آرام کله ثملي)[1]
مه کړه خدای هغه سړی دملك سردار
چې دی نه وي دخپل خدای فرمانبردار

## حکمت

## [ ۲۰ ]

بادشاه ته بایده دي چې په دشمنانو هومره غضب نه کا، چې د دوستانو اعتماد پاځي. دغضب اور اول دغضب کړونی کور وسوزوي پس دنورو.[2]

---

۱ــ ز.

۲ــ پس آنگه زبانه بخصم رسد یا نرسد.

## نظم

ستا څه کار له قهره کبره آدم زاده
ته خاکي يې اصل مه باسه له یاده
ته چې خوښ په دا تندۍ په سرکشي يې
معلومیږي خاکي نه يې آتشي يې

## حکمت

## [۲۱]

چې غلیم په لښکر کې تفرقه پریوځي. ته زړه جمع کړه، که دوی اتفاق وکړ( ته مشغول په سامان سرانجام دجنګ شه.)[۱]

## قطعه

له دوستانو سره ناست او سه عشرت کړه
که اخته دي غلیمان شي په خپل جنګ
که خبر شې چې يې صلح سره وکړه
دوسلې سامان دکوټ کړه د تفنګ

## حکمت

## [۲۲]

سر دمار په غلیم و ټکوه چې دواړه لور په ستا خیر دی.[۲]

---

۱ـ ۱ـ از پریشانی خود اندیشه کن.
۲ـ ح: اگر دشمن غالب آمد مار کشتی و گر نه از دشمن برستی.

## بیت

(که مار چیری پیدا شي مرګ یې حکم په دښنه کړه
په دود کې هر چې و مړ سینه یخه په هغه کړه)[۱]

## حکمت

## [۲۳]

هره خبره چې زړه ته آزار رسوي ته یې مه وایه، پریږده چې بل یې ووایي.

## بیت

(په بلبلو باندې زیری دبهار کړه
بد خبر کارغه ته پریږده ځان وزګار کړه)[۲]

## حکمت

## [۲۴]

احمق تر دسړ یو هغه دی چې دبل په ستاینه ځان غلط کا، خپل افعال اقوال ته نه ګوري.[۳]

---

۱ـ ر: بروز معرکه ایمن مشور خصم ضعیف    که مغز شیر برآرد چو دل زجان برداشت.
۲ـ ر: بلبلا مژده بهار بیار    خبر بد به بوم شوم گزار"
۳ـ ر هر که نصیحت خود رای میکند    او خود به نصیحت گری محتاج است

## قطعه

(که څوك ووايې چې غوږ دتاسپې يووږ
خپل غوږ وګوره له سپه پسې زغله
په پوکل د باد فروشو پر باد مشه
نيك و بد دخپل ځان وګوره په خپله)[۱]

## حکمت

## [۲۵]

په متکلم چې اعتراضونه وشي خبره يې هاله اصلاح پذيرہ شي.

### بيت

په ستا ينه دنادان په خپل پندار
مغرور مشه چې فصيح لرم ګفتار

## حکمت

## [۲۶]

هرسړي ته خپل عقل کمال ښکاريږي،دخپل فرزند صاحب جمال.

---

۱ـ ز.

## قطعه

د جهود د مسلمان مناظره وه
ننداره چیان یې چا خندا کړه ځوک حیران
مسلمان وې که په دا کې زه دروغ کړم
په قیامت پا څم جهود نه مسلمان
جهود ووې په تورات زما څو ګند دی
که دروغ کړم مسلمان شم ستا په شان
که دا عقل له جهانه منعدم شي
هم به ځان ته څوك ونه وایي نادان

## حکمت

## [۲۷]

آدم زاد لس تنه په یوه سفره طعام وخوري، دوه سپي په یوه مرداره ګذران نه کا، حریص به په تمام جهان موړ نشي، قانع په یوه روټۍ موړ شي.(۱)

## قطعه

دسړي ګیډه نیم سیر غله کا ډکه
د حرص سترګې دده کله ډکیږي

---

۱ـ ح. حکما گفته اند: درویشی بقناعت بِه از توانگری ببضاعت.

(که دمزکې نعمتونه و ده ورکا
هسې رنګ یې زړه و نورو ته څوځیږي)[۱]

## نظم

یوه پلار په وقت دمرګ زوی ته پند وې
پټ یې نه وې په عالم کې یې څرګند وې
چې ای زویه د شهوت له اوره ډار کړه
په مړه ول ددې آتش ځان پرهیزګار کړه
د دوزخ له اوره اور د شهوت تیز دی
له دې اوره دنبي ولي پرهیز دی

## حکمت

## [ ۲۸]

هر څوک چې په توانایې کې نیکي ونه کا، په وقت به دناتوانۍ سختي ويني.

### بیت

هر بد بخت چې بداندیش مردم آزار وي
مه کړه خدای چې په محنت کې یې څوک یاروي

---

۱ـ ز

# حکمت

## [۲۹]

هر چې زرېږي کمال وشي زرېږ زوال وشي.

### قطعه

په څلويښت کاله چيني شي پرې شندلې شي سرې سپينې
کودي ګورې په ورځ سل شي خود يې قد ر قيمت وينې

### قطعه

شيشه ځکه ده بې قدره ډك ترې هر چيرې بازار وي
چې هر چيرته مونده نشي لعل ځکه قدر دار وي[1]

# حکمت

## [۳۰]

کار په صبر تر سره کيږي، بيړندی په سر لګيږي.

### قطعه

په اول منزل شاطر تر قاصد تيرشي
په دويم دريم قاصد شي ځنې وړاندې

---

۱_ دا داصل قطعې د دريم شعر ترجمه ده، اولنی دوه شعر ونه چې دلته يې ترجمه نشته دا دي:
مرغک از بيضه برون آيد و روزی طلبد آدمی زاده ندارد خبر از عقل و تميز
آنکه ناګاه کسی ګشت بچيزی نرسيد دين به تمکين و فضيلت بګذشت از همه چيز

دا په دا چې قاصدورو په دمه يون کا
شاطران په لارې تله په شتاب کاندي

# حکمت

## [ ۳۱ ]

نادان لره بهتر تر خاموشي څه نشته، که به دا پوهيدی نادان به نه و.

### بيت

چې دې نشته چندان علم عقل پوهه
خاموشي کوه چې خلاص وې له اندوهه

### قطعه

يو احمق و چې نارې به يې په خره کړې
وربښيل به يې وده و ته حرفونه

يو حکيم ورباندې راغی چې دا څه کړې
په دا کار به په تاشي ملا متونه
ګويا يې بخره خاصه دآدم زاد ده
حيوانات له اصله کله ګويا وونه
ته له دوی نه علم زده دخاموشۍ کړه
چې حاصل دې شي ددوو کونو سود ونه

## نظم

چې په صبر و تحمل نه کا جواب
هغه کله جواب کاندي باصواب
یاسړیو غوندې کړه جواب په هوش
یا چارپایو غوندې ناست وسه خاموش

## حکمت

## [۳۲]

چې له تا دانا وي دهغه سره مجادله ناداني ده .

## بیت

اعتراض د دانا یانو په گفتار
هرگز مه کوه چې نشي شرمسار

## حکمت

## [۳۳]

هرڅوك چې له بدانو سره کښیني،نیکي به نه ویني.

## نظم

که فریښته مصاحبت وکا له دیوه
پرې اثر وشي د دیو له مکرو ریوه
له بدانو زده کول دښو محال دي
چې په سرکې یې داخیال هغه خام خیال دی[۱]

# حکمت

## [۳۴]

پټ عیبونه دچا مه رسوا کوه، دوی به فضیحت کړې ځان به بی اعتباره بې قیمت کړې.

# حکمت

## [۳۵]

هر څوك چې علم وکا عمل پرې نه کا، قلبه ګرځوي، تخم نه غورځوي.

# حکمت

## [۳۶]

که هره شپه شب قدر وي شب قدر به بې قدره و.

---

۱ـ (؟)ـ نکند گرگ پوستیندوزی.

### بیت

که دا کاڼي واړه لعل دبد خشان شي
لعل به هم لکه دانور کاڼي ارزان شي

## حکمت

## [۳۷]

نه هر څوك چې صورت ښه لري، سیرت ښه لري، (قدر مرتبه په موافق دخوی وي، نه د روی، مغز پکار وي نه پوست ظاهر، یو وي دشمن او دوست.)[۱]

### قطعه

په یو دوه ورځې ښکاره د مرد خوی بوی شي
چې دا خوی دایې هنر دای علوم
له باطنه یې ایمن مشه حذر کړه
دنس خبث په کالونو شي معلوم

## حکمت

## [۳۸]

کمزوری چې له قوي سره ستیزه کا، خپل ځان په خپله په خپل تیغ وژني.

---

۱ـ ز

بیت[1]

زر به ووینې سرمات ماغزه وتلې
چې له مړه سره ټکر وهې پرې زغلې

## حکمت

## [۳۹]

پنجه بازی له شیره، مشت زنې له شمشیره، کار د هوښیارنو نه دی.

بیت

په هرکار کې اندازه لره ساتلې
که دې نه دې ددانش سترګې وتلې[2]

## حکمت

## [۴۰]

هر څوك چې نصیحت نه آروې خواهش دملا مت دآرویدو لرې.

بیت

چې نه اروې دنیکخواه نصیحتونه
آخر وشې په هغو ملا متونه

---

۱ـح: خویشتن را بزرگ می بینی
راست گفتند یک دو بیند لوچ

۲ـ جنگ و زور آوری مکن با مست
پیش سر پنجه در بغل نه دست

## حکمت

## [۴۱]

هنر مندان بې تقصیره دبې هنر و بدي شي، لکه دولتمندان دغلونو.[۱]

## حکمت

## [۴۲]

که ګیډه نه وي هیڅ مرغه به په دام کې نه پریووت، بلکه صیاد به دام نه کښیښ.

### بیت

ګیډه بند ده د لاسونو هم زندان ددوارو پښو
چې له دې قیده څان خلاص کا سړی هاله شي په ښو

---

۱ـ بی هنران هنر مند را نتوانند دید. چنانکه سگان بازاری سگ صید را مشغله برآرند و پیش آمدن نیارند. یعنی سفله چون به هنر با کسی برنیابه خبثش در پوستین افتد بیت:

کند هر آئنه غیبت حسود کوته دست — که درمقابله گنگش بود زبان مقال

## حکمت

## [۴۳]

مشورت له زنانو سره تباه دی، سخاوت په مفسدانو ګناه.
(ترحم په ليوګانو ، ستم دی په ګوسفندانو.)[۱]

### نظم

چې له بدوسره ښه کړې  زما جنده دا ښه نه کړې
چې رحمت کړې په ليوګانو  سټ به خپل ورغوی ته کړې
په لستونی کې چې مار يږدي  په خپل ځان به شنده وکړې[۲]

## حکمت

## [۴۴]

پس له فکره ګفتار بويه پس له صبره ګذار.

### بيت

چې ښکاره په خپل ګذار کې ناصبور وي
هميشه يې له نخچيره غشي دور وي

---

۱ـ دادی شعر ترجمه ده : ترحم بر پلنګ تيز دندان  ستمګاری بود بر ګوسفندان
۲ـ په اصل کې دلته دا شعر دی:
ترحم بر پلنګ تيز دندان  ستمګاری بود بر ګوسفندان

# حکمت

## [۴۵]

دحکیم چې له جاهل سره (صحبت واقع شي،)[۱] توقع دې عزت ورځنې نه کوي، که جاهل په زبان آوری په حکیم غالب شي عجب نه دی. یو کانی به ثو جواهرمات کا،( یو کارغه به ثو عندلیبانو خاموش.)[۲]

### بیت

که بلبله له زاغانو په قفس شي

زاغ غوغا کا دبلبلو بندنفس شي

# حکمت

## [۴۶]

په جفا دنااهلو قدر عزت داهلو نه کمیږي.[۳]

### قطعه

آزاده که له سفله جفا ووینی

چیری نه وي زړه آزار کاندي برهم شي

---

۱ـ درافتد

۲ـ ز.

۳ـ په اصل کې دا حکمت نشته.

که په کاني کا پياله دزرو ماته
نه عزت دکاني زيات نه به زر کم شي

## حکمت

## [۴۷]

استعداد بې تربيت دريغ دی، تربيت بی مستعد ضائع، ايرې نسبت علوي لري، پيدا له اوره دي، اما چې په خپل ذات کې هنر نه لرې، له خاورو برابر دی. قيمت د شکر ونه په سبب دگني دی،بلکه خوږ والی خو دخاصيت ددوی جبلي دی.

نظم

چې په اصل کې کنعان و بې هنره
په دا خه که و پيدا له پيغمبره
هنر بويه چې حاصل دخپل وجودشي
گل له خاره ابراهيم دی له آذره

## حکمت

## [۴۸]

مشك هغه د ی چې بوی لري، نه هغه چې عطار صفت وکا، دانا سړی لکه دبلی د عطارانو دی، خاموش هنر نمايي. نادان لکه نغاره آواز بلند منځ خالي.

## رباعي

عالم په میان کې دجاهلانو مصحف په کورکې دکافرانو
کښلی میلمه د بې بصرانو مسجد په کلي کې د بې نمازانو

## حکمت

## [۴۹]

عقل په لاس کې دنفس هسې ګرفتار دی، لکه صالح سړی په لاس کې د بد عورتې.

### بیت

وردې نور دخوشحالی په ځان بند کا
چې په کور کې یې آواز ښځه بلند کا

## حکمت

## [۵۰]

تدبیر بې قوته مکر فریب دی، افسون بې تدبیره جهل دی یا جنون.

### بیت

اول عقل تمیز بویه بیا له پسه سرداري
ملك دولت دنادانانو لوی اسباب دی دخواري

# حکمت

# [۵۱]

هرجوانمرد چې خوري او ورکوي بهتر دی له عابده چې روژه لري، دنیا خوندي کوي.

## بیت

چې قبول دخلقو غواړي هر عابد گوشه نشین شي
دنیا هومره حاصل نه کا لکه لاړو رځنې دین شي[۱]

# حکمت

# [۵۲]

یو یو لښکر شي[۲] قطره قطره سیلاب، یعنی که قدرت دانتقام درخخه نه وي، خوړلي کاڼي ساتلي لره. په وقت دفرصت دغلیم ماغزه پرې وباسه.

## بیت

څاڅکی څاڅکی سره ټول شی باندې نوم جوړ شی دنهر
نهر نهر څبله ورشي باندې نوم کیږدي دبحر[۳]

---

۱ـ دا شعر په اصل کې یو بل پند سره راوړلی شویدی . داصل شعر دادی:
عابد که نه از بهر خدا گوشه نشیند بیچاره در آئینه تاریک چه بیند.
۲ـ ژ ـ اندک اندک خیلی شود.
۳ـ دادعربی دیو شعر ترجمه ده . خو دې سره دفارسی دا شعر یې حذف کړیدی.
اندک اندک بهم شود بسیار دانه دانه است غله در انبار

# حکمت

# [۵۳]

دډیرو کالونو دوستي نه بویه چې زر په دشمنۍ بدلیږي.
چې شل کاله دې له چا وفایدلې وي که جوانمرد یې سل کاله یې جفا یو سه، شل کاله خو جور دده څکول لاژم دي.

## قطعه

بړ بړ رایشه زما دیر ینه یاره!
څو د زړه هو مره جفا کړه بې وسواسه
پرورده د ستا دمهر دوفایم
مکړه خدای چې آزار شي زما له لاسه

# حکمت

# [۵۴]

علماؤ لره بایده دي، چې حلیم متحمل وي، اما نه تردیه حده چې سفیهان پرې زبان دراز شي.[۱]

## نظم

څونرمي ورسره کړې لطف خوشي
لا زیاتیږي د سفله گردن کشي

---

۱-ف- عالم را نشاید که سفاهت از عامی بحلم درگذرد که هر دو طرف را زیان دارد.
هیبت این کم شود و جهل آن محکم.

(کله پلك كله سوهان كله اوبه شه
کله اورله هغه پسه استا د ته شه
هغه ځوك چې په ازل پیدا نیکبخت وي
له پستو سره تل پوست له سختو سخت وي[۱]

## حکمت[۲]

## [۵۵]

نصیب دغني له دنیا آرائش دی، دفقیر برخه آسایش، هغه صورت لري آسوده،زړه لري فرسوده،دا صورت لري فرسوده،زړه لري آسوده، هغه دوزخ دی پټ په شهواتو دا جنت دی پټ په مکاره.

### نظم

دنیا دار جامې اغوستې معطر خوشبو یې
ننه زړه یې واړه خساد ی په بد بوی د بد خویې
که فقیر په صورت خار دی ننه زړه یې درست ګلزار دی
په باطن کې تونګر دی په ظاهر څه شوکه خوار دی

---

۱ـ ز.
۲ـ دا حکمت په چاپ شوو نسخو کې نشته.

# حکمت

## [۵۶]

معصیت له هر چا بد ښکاري له عالم بد تر، علم په معنی دده وسله د ی،دوسلې ښنبتن چې ژوندی په بند بیوه شي، شرمنده تر وي، له هغه چې وسله يې نه وي. (هغه جاهل چې پریشان روزگار وي، بهتر د ی‌له دانشمند چې نا پرهیز گاروي، هغه نا بینا و لاریې غلطه کړه، په لوړ و ژورو کښیوت دا بینا و په کوهي کې پریوت.)[۱]

# حکمت

## [۵۷]

حق تعالی د بنده دوست دی، شیطان یې دشمن، حیف چې په ویل ددشمن مخالفت کوي ددوست.[۲]

### قطعه

په ویلو ددشمن شوې دخپل دوست پیمان شکن
څوك به مرد وایي وتاته چې ته شوې بتر تر زن

---

۱ـ دا عبارت ددوو شعرونو ترجمه ده.
۲ـ۱ـ"جان در حمایت یکدم است و دنیا وجودی میان دو عدم. دین بدنیا مفروش که دین بدنیا فروشان خرند. یوسف را فروشند تا چه خرند."

تف په تا دې تا په عقل څوك دې پرېښ د چا يار شوې
دوست دوستدار لرې بې شماره ته بې دوسته پاتو خوار شوې

# حکمت

## [۵۸]

يوسف عليه السلام[۱] په قحط سالۍ کې چې دمصر بادشاه و په مړه ګېډه يې طعام نه خوړ چې وږی مې له زړه وهيرنه شي.

### نظم

چې يې زيست په تنعم کې په راحت وي
له احواله د خورانو فراغت وي
چې دلوږې يې خوړيږي ننه سږي
ښه پوهيږي هم هغه په حال دوږي
په احوال ددرمانده درمانده ښه زده
چې يې کار همه پوره وي هغه څه زده
ای چې سوريې په نيلي شملې پرېښې
خردې نښتی دی په لا ی خور جي پرېښې
که هرڅوېې آس تازه تزك وي زغلی
هم بايده دي چې سوريون کاندي دېلي

---

۱ـ ح : درتنگی خشک سال.

په ورو ورو رفتار کوه دخدای دپاره
ړانده ګوډ دکاروان شته کاروان سالاره[۱]

## حکمت

## [۵۹]

درویش ضعیف مه پوښته چې څه حال لري . مګر په دا شرط چې مرهم يې په پرهارکیږدي، نقد و جنس هر چې موجود وي ورته پریږدي.

### قطعه

که څوك ووینی چې باریې وي پرتیلی
په یوا ځې ځان يې نشي آچو لی
یا پوښتنه دحال مه کړه ترې درومه
یا مددور سره وکړه ثواب مومه
رسول يې ورته بویه تر منزله
ځان داخل کړه د مردانو په شمار دله

## حکمت

## [۶۰]

دوه څیزه محال دعقل دي: خوراك زيات تر رزق مقسومه، مرګ پخوا تر اجله معلومه .

---

۱ـ ای که برمرکب تازنده سواری هشدار
آتش از خانه همسایه درویش مخواه
که خر خارکش مسکین درآب و گل است
کانچه از وزن او میگذرد دود دلست

## نظم

په هيڅ رنګ به دقضا حکم نور نشي
له ازله به سپين هيچرې تو رنشي
(قسمتونه د ښو بدو په مقدار دي
سپور به غوړ غوړ به دهيڅ سړي سپور نشي)[1]
آه اوه مکوه قضا وته تسليم شه
تبدل د قضا ستا په شر شو ر نشي
(سکندرېي کوښښ وکړ خضر نوش کړې
د ازل له نصيبې سره زو ر نشي
په نيم جام قناعت کړه چې دې قسمت شه
فهم وکړه په حرص چې نسکور نشي)[2]

## حکمت

## [۶۱]

تونګر فاسق کانی دی ملمع دی په زرو، نيستګار پرهيزګار صالح ښايسته دی آلوده په خاکسترو، دا دلق دموسی دی عليه السلام مرقع، هغه ږيره دفرعون عليه اللعنت، مرصع. دولت دنيکانو لکه صبح صادق[3] روز افزون دی، دولت دفاسقانو (لکه صبح کاذب)[4] دم په دم سرنګون دی.

---

۱ـ ز.
۲ـ فرشته که دکيلست بر خزانه باد چه غم خورد که بميرد چراغ بيوه زنی
۳ـ ز.
۴ـ ز.

## نظم

جاه دولت که وسیله دآخرت کړې
تېرى به هاله حاصل ځان ته منفعت کړې
ګنه هيڅ به دې سود نه وي له دولته
که يې جمع په محنت په مشقت کړې
ستا په بحره مشقت نور به يې يوسي
ته به هسې خالي لاس ځنې رحلت کړې

## حکمت

## [۶۲]

حسود په نعمت دحق تعالى بخيل دى او بيګناه خلق لره غليم.

### قطعه

يو مفلوك و سركودن له ډيرې لوږې
مشغول شوى په غيبت داهل جاه
بل يوه ورته آواز کړ بخت ستا بد شه
ددې نورو نيکبختانو څه ګناه

### رباعي

هيڅ بلا مه غواړه په حاسد باندې
دى خو دله ځان سره دشمنى کاندي
نور واړه خلق عيش عشرت کا
د ده په زړه دي بلا هر اندي

## حكمت

## [۶۳]

شاگرد بی ارادته عاشق دی بی زرو، سالك بې معرفته مرغه دی بې پرو، عالم بې عمل و نه دی بې بره، زاهد بې عمله كوټه ده بې دره.

## حكمت

## [۶۴]

مراد د قرآن له تلا وت ښه خوی حاصلول دي، نه په خوش آوازی په مخرج لوستل .

## حكمت [۱]

## [۶۵]

عاصي چې ځان له خلقه بتر گڼي، ښه دی له هغه عابد چې عجب په سر كې ځان بهتر گڼي.

### قطعه

سپاهي چې په خوی ښه وي دلداري كا
له هغه فقيه بهتر چې آزار آخلي

۱ـ ح :عامی متعبد پیاده رفته است و عالم متهاون سوار خفته.

(دنسب حسب هېڅ پوښتنه نشته
دقیامت په ورځ خبرد کردار آخلي)[۱]

## حکمت

## [۶۶]

عالم چې بې عمل وي لکه مچۍ دی چې بې عسل وي.

### قطعه

دا پیغام مچې ته وکړه چې بد خویې
گبینه درڅخه شته دی چیچل مکړه
وممسك ته ووایه که ورکړه نه کړې
فقیرانو ته کنځل او رټل مکړه[۲]

## حکمت

## [۶۷]

هر مرد چې مروت نه لري زن دی، هر عابد چې طامع وي رهزن.

### قطعه

وعالم ته دي ظاهر جامه ده سپینه
دعمل نامه لري واړه سیاه

---

۱- ز.
۲ـ ز.

له دنیا نه لاس کوتاه که میړه یې
که لستوڼي داوږده وي یا کوتاه

## حکمت

## [۶۸]

ددوه تنو به هرګز حسرت او ندامت له زړه لاړ نشي، یو سوداګر چې مال یې په ما ته بیړۍ کې په سیند دوب وي، دویم وارث چې د قلندرانو محبوب مرغوب وي.

### قطعه

مکړه یا د قلندر سره یاري کند د پهوړې کړه تیاري
آشنایې دمهاوت سره نه بو یه یادکور دروازه کړه ترهاتي لویه

## حکمت

## [۶۹]

سرو پای د بادشاه اګر چې عزیز دي، خپله خیرې خیرې جامه ترې عزیز تره. چې وخورې دچا کره طعام الوان الوان، اګر چې عزیز وي دخپل کور سپوره روټۍ په خپل واړه دستر خوان خوړل لذیذ تر.

### بیت

وچ ټوک خپل چې له سرکې وي یا تره
ښه تر برنج ددنیا داربریان بره

# حکمت

# [۷۰]

مخالف دعاقلا نو د فکر دی[۱] ،دارو په گمان خوړل، اولا ر لیدلی نه، په کاروان پسې تلل.[۲]

# حکمت

# [۷۱]

محمدغزالی چا وپوښتیده رحمة الله علیه،چې په دې مرتبه په څه ورسیدې؟ وې یې: هر علم چې مې نه زده و له پوښتنې مې یې ننګ نه کاوه.

## قطعه

امید وار د بیمار هاله دصحت شی
چې طبیب و ته احوال درنځ ښکاره کا
چې دې نزده شرم مکړه له پښتنې
له پښتنې ننګ نا اهل هیڅ کاره کا

---

۱ـ خلاف رای صوابست و عکس رای ابو الالباب.
۲ـ۱ـحد کاروان رفتن.

# حکمت

## [۷۲]

هرچې پوهیږي چې خود به ښکاره شي په پوښتنه یې تعجیل مکوه.[۱]

### قطعه

لقمان ولیده په لاس کې د داود
په اعجاز یې آهن شه په لاس کې موم
هیڅ پوښتنه یې تر ې ونه کړه چې داڅه کړې
خود بخود یې شه احوال ورته معلوم

# حکمت

## [۷۳]

یو له لاژماتو دصحبت دادی چې حکایت مذکور په موافق طبع د مستمعانو کیږي.[۲]

### قطعه

له هر چا سره چې کښیني په مجلس کې
دمجلس په موافق دې شي خبرې

---

۱_ح: که هیبت سلطنت را زیان دارد.
۲_که خانه بپردازی یا با خانه درسازی.

و مجنون ته د لیلې خبرې بویه
که هر څو نورې خبرې وي نادرې

## حکمت

## [۷۴]

هرچې له بدانو سره کښیني که طبیعت اثر پرې ونه کا، په فعل ددوی متهم خوشي. لکه څوك خرابات لره دنمانځه دپاره ورشي منسوب شي په خمر خوارۍ.

### نظم

په خپل ځان دې ناداني وکښي رقم
چې دانا له نادانانو شي همدم
یاد لرم د دانایانو د خولې پند
هرگز مکړه له نادان سره پیوند [۱]

## حکمت

## [۷۵]

لم داوښ معلوم دی، که هلك یې تر مهار ونسي په سمه لارې بیایې، سل کروه به ورپسي متابعت کا، گردن پیچې به نه کا، اما که په بده لارې راولي چې موجب یې د هلاکت وي، مهار ترې وښکوي، اطاعت یې نه کا، چې په وقت ددرشتۍ نرمۍ مذموم ده.

---

۱ـ ح: که گر صاحب تمیزی، خو نمایی— اگر نا دانی احمق تر نمایی

## قطعه

په نرمی چې درته وایې خاك پای شه دنیکانو
که درشت ستېزه‌رو د ی حکم مه وړه دهغه
(په صیقل سره چې زنګ له تیغ نه ځي نور ضرور دی
چې سوهان ورته پیدا شي تراش یې وکاندي ډېر ښه)[1]

# حکمت

## [۷۶]

هر څوك چې دنورو په خبرو کې ګډ شي ، چې که فضیلت مې ښکاره شي جهل یې معلوم شي.

## قطعه

هرسړی چې دانشمند و هنر ور وي
جواب نه کا چې دبله کاندي سوال
چې یې نه پښتي ګډ ګډ شي په خبرو
حماقت یې دی تمام جهل کمال

# حکمت

## [۷۷]

اَعَزّ دخلق از روی ظاهر سړی دی، او اذل دموجودات سپی، په اتفاق د خرد مندانو سپی حق شناس بهتر دی، تر سړي ناسپاس.

(۱) «سخن بلطف وکرم با درشت خوی مگوی - که زنگ خورده نگردد بنرم سوهان پاک»

## قطعه

سپی هرګز نه وهیره وي د تا مړی
چې یې خوري د تا له لاسه ستا له څنګه
په محنت کې په راحت کې له تانه شي
که هرڅو یې په جفا ولې له سنګه
دبد ذات سره تمام عمر نیکي کړه
په لړ بد به عارونه کا ستا له جنګه

## حکمت

## [۷۸]

له نفس پرورده هنر پروري نشي او له بې هنره سروري.

## نظم

رحم مکړه په هغه که هر څو خوار وي
پرورش چې تل دتن کاندي ډير خوار وي
چې یې فکر همیشه څربښت دتن وي
خرغځکی دی که ددوست که ددشمن وي

# حکمت

## [۷۹]

په انجيل کې راغلي دي: اى دآدم زويه! که تو نګر دې کړم مشغول به شي په مال په دولت لما نه، که نيست ګار دې کړم تنګ دله شى پريشان، کله به دما عبادت کوې، په کوم وقت به حلاوت زما له ذکره مومې.

## نظم

په نعمت متکبر مغرور غافل شي
په نکبت کې طاعت کړی نشي تنګدل شي
ته به کله دحق ذکر عبادت کړې
چې حاصل به و خپل ځان ته سعادت کړې

# حکمت

## [۸۰]

نيك بخت هغه دى چې په خپل ياد يې مشغول کړ، که په تخت وي که زمکه.[۱]

## بيت

سليمان به په تخت ناست و د حق ذکر يې مونس و
که يې ځاى دماهي نس و هسې رنګ ذاکر يونس و

---

۱ـ ارادت بيچون را از تخت شاهى فرود آرد و ديگرى را درشکم ماهى نکو دارد.

# حکمت

## [۸۱]

که تیغ دقهر وکاږي انبیاء اولیاءبه واړه له هیبته سرونه کښته کا، که خپل لطف اظهار کا اشرار به واړه اخیار کا.[۱]

# حکمت

## [۸۲]

هرڅوك چې په تهذیب ددنیا لار بیا نه مومې په تعذیب دعقبی گرفتار شي، قوله تعالی:
وَلَنُذِيْقَنَّهُمْ مِنَ الْعَذَابِ الْاَدْنٰی دُوْنَ الْعَذَابِ الْاَكْبَرِ.

### بیت

دا مثل دی و هر چاو ته څرگند  دبزرگانو اول پند بویه بیا بند

# حکمت

## [۸۳]

نیکبختان د گذشتگانو له حکایتونو له قصو پند اخلي، پخوا ترهغه چې نور ددوی له واقعې پند اخلي.[۲]

---

۱_ح: "گر به محشر خطاب قهر کند-انبیاءرا چه جای معذرتست
پرده از روی لطف گو بردار - کا را امید مغفر تست."
۲_ دزدان دست کوته نکنند  تا دست شان کوته نکنند.

## رباعي

هیڅ مرغه به ورنږدې نه شي و دام ته
چې دی وړاندی بل مرغه ووینی بند
پند عبرت له نورو واخله که میړه یې
چې لا نور عالم له تا نه واخلي پند.

## حکمت

## [۸۴]

چې غوږ و نه یې ارادت کانه کړل، کله به آرویدی شي چې په کمندیې دنیك بختۍ ځکوې: څرنګک به نه وردورمي[۱].

## رباعي

چا ته له تا ژاړم بې څوك زه لرم
زما هیڅ نشته ستا دي چې څه لرم
چې ته ورته لار ښیې هغه به ورك نه شي
زه ورك بې له تانه رهبر بل نه لرم

## حکمت

## [۸۵]

ګدای نیك بخت سرانجام بهتر دی تر بادشاه بد فرجام.

---

۱ـ ح: شب تاریک دوستان خدا — می بتابد چو روز رخشدند
این سعادت بزرو باو نیست — تا نه بخشد خدای بخشنده

### بیت

عاقبت يې چې ښادي په غم بدليږي
ځوك به څه له دې ښاديو خوشحاليږي

## حکمت

## [۸۶]

مزکې ته له آسمانه نثار کيږي، له ځمکې و آسمان ته غبار خيژي. كُلُّ اِنَاءٍ يَتَرَشَّحُ بِمَا فِيْهِ.

### رباعي

ای چې ویل کړی و ما ته ښه نه يې
ښه چې زه بد یم ښه چې ته ښه يې
زه به هغه کړم لکه چې زه یم
ته هم هغه کړه لکه چې ته يې

## حکمت

## [۸۷]

حق تعالی د بنده عیبونه ويني ستا ري کا، خلق هیڅ نه ويني بهتان وايي، عمل شماري کا.[۱]

---

۱ـ ح: "نعوذباالله اگر خلق غیب دان بودی کسی بحال خود از دست کس نیاسودی"

# حکمت

## [۸۸]

زرله کا نه په کان کندن راووځي، دبخیل له لاسه په ځان کندن.

### قطعه

سفله نه خوري وايې زرساتلي ښه دي
وايي دا چې امید ښه دی له خوارکه
په صباح یې واغوندي سر و پایونه
نن پرې کا یوه زړه قبایې چا که

# حکمت

## [۸۹]

هرڅوك چې په زیر دستانو رحمت نه لري، په جور یې دزبردستانو ګرفتار کا .

### قطعه

نه هر څوك چې زور قوت لري دلیچو
رسوي و ضعیفا نو ته ګزند
(چې بل څوك پرې زوره ورنه دي خالق دی
مخلوقات دي یو په بل باندې زورمند(۱)

---

۱ـ بردل گزندی که درمانی بجور زورمندی.

# حکمت

## [۹۰]

عاقل چې دچا تر میانه خلاف ویني ترې وتښتي، ځان کناره کاه او چې صلح ویني هورته سکونت اختیار کا، ځکه چې هورته سلامت په کناره کې دی او هلته حلا وت په ګډون کې.

# حکمت

## [۹۱]

اول چا چې[1] ګوتی په لاس کړه جمشید و، چا ورته ووې: زینت لا یق دښې لاس و وکینې لاس ته تاولې ورکړو؟ جمشید ووې: ښي لاس ته دا زینت هم تمام دی چې ښي دی.

### قطعه

فریدون وویل نقاشو ته دچین
چې چا پیره په خرګاو درج کا دا مقال
د بدانو سره ښه کوه هوښیاره!
نیکان خو د دي بزرګان په نیك افعال

---

۲_ح : علم به جامه کرد.

## حکمت

## [۹۲]

نصیحت ویل بادشاهانو ته هغه ته مسلم دی چې نه ویره دسرلري نه امید د زرو.

### قطعه

مؤحذ که یې په پښو کې توی کړي زر
یا یې توره فولادي کیږدي په سر
امید ویره یې هرګز له چا نه نه شي
بنیاد دادی د توحید که له چا وشي

## حکمت

## [۹۳]

دهر چا غاښونه په ترشي پخیږي دقاضي په شیر ینۍ.

### بیت

قاضي که له تا وخوري په رشوت سره بادرنګ
روا به درته باغ دخربوزو کا هغه درنګ

# حکمت

## [۹۴]

لولی چې زړه شي توبه کاله بدو کارونو، کوتوال چې معزول شي ترک کا مردم آزاري.

### بیت

مردهغه چې په ځوانی کې توبه ګار شي
له عصیانه نه زاړه خود بخود لاچار شي

# حکمت

## [۹۵]

یو حکیم چاو پوښتیدو چې دا هومره ونې دي نا مدارې دهیڅ ونی مې په آزاد نشته، مګر سرو ته آزاد ویل شي، باوجود چې میوه هم نه لري څه حکمت دی ؟ وې یې: هره ونه چې میوه داره وي په وقت دمیوي تازه وي چې میوه ترې لا ړه شي، پژمرده شي، مګر سرو چې میوه نه لري همیشه تازه ده.

### قطعه

په هرڅیز چې بقا نه لري زړه مه ږده
ډیر شاهان ددجلې یاد دي دبغداد
که دې لاس رسي کرم لکه خرما کړه
یا له هر څه لکه سرو شه آزاد

# حکمت

# [۹۶]

دوه کسه ومړل حسرت یې یوړو: یوهغه چې درلل یې نه یې خوړل، بل هغه چې پوهیدل نه یې کول.

## قطعه

که عالم وي که فاضل وي چې بخیل وي
خلك واړه بد ګویي ځنې کوینه
دسخا ځښتن که هر څو ګنهګار وي
واړه خلك یې عیبونه پټوینه.

الحمدالله چې په تاریخ دځلورویشتم درمضان دا کتاب چې موسوم په ګلدسته دګلستان دی په اتمام ورسیده .

## قطعه

دا کتاب چې ګلدسته دګلستان دی
که دتاج که ددستار یې درته بویه
چې ګلونه یې لري په سر کې ینبي
چې مجلس د معطر وي له دې بویه

# مننه او کوروداني!

داومر دموسسې له مشر ښاغلي الحاج فضل کريم عبدالرحيم زي څخه چې ددې اثر د کمپوز په لګښت کې يې مرسته کړې .
دپښتو څېړنو دنړيوال مرکز له غړي ښاغلي محقق عبدالرحيم بختاني څخه چې ددې کتاب لومړني پروف يې لوستي دي .
دکابل مجلې له مرستيال ښاغلي عبداللطيف احمدي څخه چې په خپلو هنرمندانه ګوتو يې ددې کتاب د کمپوز او ډيزاين چارې سر ته رسولي، دزړه له کومي مننه کوو او کور وداني ورته وايو.

**دپښتو څېړنو نړيوال مرکز**
**دتأليف او ترجمې څانګه**

# Gul Dasta

**By**

**Abdul Qader Khan Khattak**

*(Pashtu Translation of Gulistan)*

Academy of Sciences of Afghanistan
International Centre for Pashto Studies

Effort by:
Researcher Sayed Mahayuddin Hashami

Kabul -2004